# خوشحالیات او حقائق

(انتقادی جاج)

خواجه محمد سائیل
بهادرکلے پېښور

# خوشحاليات
# او
# حقائق

(انتقادي جاج)

خواجه محمد سائيل بهادر کلے پېښور

د کتاب نوم ــــــــــ خوشحالیات او حقائق

( انتقادی جاج)

لیکونکے ــــــــــ خواجه محمد سائیل

کمپوزنګ ــــــــــ ارشاد خان ،، پښتو اکېډیمی ،،

چاپ کال ــــــــــ جنوری ۲۰۰٦ء

تعداد ــــــــــ پنځهٔ (۵۰۰) سوه

بیعه ــــــــــ یو سل دیرش( ۱۳۰) روپی

چاپ ځائے ــــــــــ

## د موندلو ډډ ځاے

- ❖ یونیورسټی بک ایجنسی خیبر بازار پېښور
- ❖ پشتو اکېډیمی بک شاپ پېښور یونیورسټی

# فهرست

**درېمه برخه**

# څو خپلې خبرې

د دنیا د هرې ژبې ادب په دوؤ برخو کښې وېش دے ـ نثر او نظم ـ اوس کۀ دغه ادب د قیصې ، ناول ، افسانې ، ډرامې یا نظم او غزل په شکل کښې د انسان د ژوند په حقله وی ـ نو دې ته تخلیقی ادب وائ ـ او چې ددې تخلیقی ادب متعلق څوک څۀ لیکی ـ نو دې ته تنقیدی ادب وائ ـ د تخلیقی ادب د وجود نه بغېر د تنقیدی ادب سوچ هم نا ممکن دے ـ تنقیدی ادب د تخلیقی ادب وضاحت او کره کوټه معلومؤل دی ـ د ادب هره فن پاره کۀ هغه په نثر کښې وی او کۀ په نظم کښې ـ د ادیب په دغه تخلیق تنقید نګار حق لری ـ چې هغه خپله رائې ظاهر کړی ـ دغه رائې د اتفاق په شکل کښې وی او کۀ د مخالفت ـ خو نقاد ته حق حاصل دے چې ددغه مضمون شاعری یا تخلیقی ادب پوره جاج او جائزه واخلی ـ او ښۀ بد اړخونه ئې ښکاره کړی ـ داسې نه چې یو نقاد ته اګاهو نه کرښه راښکلے شی ـ چې :

خوشحال ختټکه ! په درنو دروند په سپکو سپکه

یعنی کۀ څۀ نۀ لیکې نو تۀ بڼۀ دروند سنګین انسان یې - او کۀ نۀ څۀ لیکې - نو ډېر سپک بنده یې - د ژوند تعبیر کۀ ادب دے - نو د ادب تعبیر تنقید دے -

دې کښې شک نشته چې د خوشحال خان د کلام په حقله کافی تحقیق وشو - او غالباً د شلو نه زیات د ډاکټوریټ ډګریانې او دغسې د ایم فل سندونه پرې واخستلے شول - ولې دغه ټول کار د هغۀ د ژوند په شاعرانه اړخ دے - کوم چې د قید و بند نه پس دے د هغۀ د منصبدارانه ژوند متعلق ډېر کم کوشش او تحقیق شوے دے د یو شاعر د کلام جاج عموماً د هغۀ د ژوند په نورو اړخونو هم بناء لری - او د ژوند ددغه اړخونو په رڼا کښې د هغۀ د شاعرۍ جاج اخستے شی - یعنی د یو شاعر روز مره ژوند کۀ عیاشۍ سره پېوست وی - او په خپل کلام کښې د روحانیاتو او تصوف اظهار کوی - نو مونږ به د داسې شاعر متعلق څۀ رائې قائموؤ - یا هغه خپل ذاتی ننګ غېرت ته اجتماعی رنګ ورکوی - او یا د خپل مفاد دپاره د نورو جذبات رالړزولو کوشش کوی او یا خپل ذاتی انتقام د ټول قام انتقام ګنی - نو داسې حالاتو کښې د یو کس ذاتی ننګ غېرت یا انتقام اجتماعی او قومی ننګ سره څنګه ممکن کېدے شی -

خوشحال خان بلا شک و شبهات د پښتو ژبې قادرالکلام شاعر دے - خو دې سره سره هغه د مغل شهنشاهیت منصبدار او د

شاه جهان وفادار دے ـ او بقولِ خوشحال خان د اورنګ زېب د لاسه بې وجهې ګرفتار او ازار دے ـ د هغهٔ زامن د هغهٔ د ګرفتارۍ اصلی اسباب نهٔ ښائ ـ البته افضل خان وائ چې غله او د خوراک ښناک په څيزونو د باج د ممانعت د احکاماتو خلاف ورزی د هغهٔ د ګرفتارۍ اصلی اسباب وو ـ د تاريخ د يو طالب علم دپاره د افضل خان دا بيان مبهم او غېر واضح دليل دے ـ

د خوشحال خان متعلق په " اُلفت " رساله کښې څهٔ موده مخکښې چې زما ځينې مضامين چاپ شول ـ نو څو ليکوالو ورونو زما خلاف زهر افشانی ، غېر ادبی او ګستاخانه بازاری ژبه استعمال کړه ـ مدير جريده اسد صافی هم مشکلات سره مخامخ شو چا وئېل چې خواجه سائېل د خټکو مخالف دے ـ او چا وئېل چې دے خوشحال خان پښتون يا خټک نهٔ ګڼی ـ خو زهٔ وايم چې زما څهٔ جرات دے چې چاته د پښتون يا غېر پښتون سند ورکړم ـ البته کوشش کوم چې د خوشحال خان د منصبی ژوند ځينې پټ اړخونه ښکاره کړم ـ

زما رائې سره اتفاق يا مخالفت د هر چا خپل کار دے ـ جمهوريت دے ـ اوس هسې هم ټول په يو ګودر اوبهٔ څښی ـ د مردم شمارۍ د فهرست نه د اصل نسل خانه بهرته ده ـ څوک چې پښتو وائ پښتون ګڼلے شی ـ د اصل نسل پوښتنه نشته ـ قبيلوی نـظام هم هغه وخت ختم شو ـ چې ۱۹۵۰ء کښې د ايکټ ۱۴ شِق

C ۵ تحت کشمیر نژاد وزیر اعلیٰ قیوم خان حق شفعه کښې ترمیم
وکړو - او بندوبستی علاقه کښې یو کنال زمکه ابادی دپاره بلا
امتیاز نسل و مذهب حق شفعه نه مستثنیٰ شوه[1] -

زۀ اوس هم ددې حقیقت قائل یم - چې پښتون پښتون دے
او نور ډېر اقوام صرف په پښتو ژبه وئیل پښتون جوړېدے نۀ شی -
اصلی اصلیت د انسان نسل دے - د حسب و نسب تاریخ خانته یو
مخصوص انداز لری - د یو قوم بل قوم سره اشتراک ګډون او د
ځینې مصلحتونو په سبب یو ځائے وسېدل دا معنیٰ نۀ وی - چې
"هر چه درکان نمک رود نمک شود " د اصل او کم اصل تمیز د دنیا
په هر ذی روح او غېر ذی روح کښې موجود دے - هر کانړے لعل و
جواهر نۀ وی - پیشو د امزری د بچی مثال نۀ لری - هره ونه آم او
انګور نۀ وی - دغه رنګ د قومونو مثال دے - ځوک تور ، ځوک
سپین او ځوک غنم رنګ دی - د چا د مخ ځېره اوږده ، د چا پلنه
ده - د چا قد و قامت لوړ دنګ د چا چیت دے - ځینې قومونه
بهادر ځینې بزدل دی - د بهادر قوم په خوا کښې د بزدلانو وسېدل
دا مطلب نۀ دے چې وصلی هم اصلی شی - نن امریکه په عالمی
نړی کښې د اعلیٰ ټیکنالوجی د صلاحیت په سبب سُپر طاقت دے
د غریب ملکونو بې روزګاره د رزق په تلاش کښې ورمات دی - خو

1 Zafer Hussain Chaudhri " Manual of Pre – Emption Laws .. Lahore 1997 .

دغه خوار غریب محتاج غیر قومونه امریکنیان نهٔ حسابیږی ـ دغسې د پښتون په معاشره کښې هغه وخت راسې اباد نور اقوام چې د دوئ حاجتمند وو ـ او د خپل هنر او کسب په برکت ئې آسُوده حال پښتون معاشره کښې سکونت او اطمینان بیا موندلو ـ پښتون نهٔ شو ـ اصلی سره د وصلی یو ځائے وسېدو یا ډېره کېدو مطلب هر گز دا نهٔ وی ـ چې شال کښې د ټاټ پېوند سره ټاټ ټوټه هم اصلی شال شی ـ د غوری نه تر سوری او سوری نه تر ابدالی پښتانهٔ د هند په دولت مالا مال او اسوده حال وو ـ هنر مند، پېشه ور افراد مختلف علاقو نه د رزق په تلاش د دوئ د خدمت پامته دار شول ـ ځینې د مغل یا انگرېز حکمرانانو د شاهی سرکاری خدمات او ملازمت سلسله کښې دلته اباد شول ـ چې په دوئ کښې ایران نژاد شیعه هم شامل وو ـ چا د پښتنو د اسلام سره د بې کچه مینې نه فائده پورته کړه ـ او د "سید" په نوم د احترام وړ شول ـ دغسې شمشیر زن پښتنو سره د غیر پښتون یو لوئے تعداد اباد شو ـ چې د گزټئیر ډسټرکټ پشاور د مردم شماری نه به ئې په اسانه اندازه لږی ـ

| | ۱۸۹۱ء | ۱۹۰۱ء | ۱۹۱۱ء |
|---|---|---|---|
| پښتانهٔ :- | ۳,۳۹,۰۶۹ | ۳,۷۰,۶۴۳ | ۴,۱۴,۱۰۰ |
| کمین ذات :- | ۱,۷۱,۷۶۱ | ۱,۹۵,۸۶۵ | ۱,۹۱,۵۶۴ |
| نور ذاتونه :- | ۲,۰۰,۹۶۵ | ۲,۲۲,۱۹۹ | ۲,۵۹,۳۴۵ |

اوس کۀ د اصلی پښتنو بالمقابل مونږ د وصلیانو شمار وکړو نو دا حساب به د وصلی خلقو په دې شکل وی ـ

وصلی :- ۳,۷۲,۷۲۶ ــــ ۴,۱۸,۰۶۴ ــــ ۴,۵۰,۹۰۹

د پاکستان جوړېدو نه وروستو د جمهوریت قیام سره د طاقت توازن بېخی بدل شو۔ د تُورې طاقت ځائے سیاست او د شرافت ځائے رذالت او منافقت واخستو ـ د لاس زور خولې ته لاړو د اصلی او نسبی پښتنو بالمقابل وصلی اقوام زیات متحد شول ـ پښتانۀ د تربګنو دشمنو او تربورولی ښکار شول ـ اتحاد او اتفاق ئې ټکړې ټکړې شو۔ او د خوشحال خان ددې شعر برعکس عمل پېرا شول ـ

ما چې ولــــیـــدل اتـلس زره قومه
د خپل ذات سره اُلفت کا هر ګروه

اوس قبیلوی تصور ختم دے ـ چې کمین او نوز ذاتونه کوم قبیلې سره وسی ـ هغوی هم ځان خلیل ، مومند ، داؤدزے ، یوسفزے ، بنګش ، خټک یا نور قبائل حسابوی ـ او دلیل لری چې اصل پښتانۀ مونږ د هنر کسب په سبب ځان نه جدا شماری ـ ګوندې د اصل نسل په لحاظ مونږ هم هسې صفا سوچه پښتانۀ یو ـ لکه ځنګه چې دا نور دی ـ دغه وجه ده چې د حسب و نسب حقیقت نه بې خبر زمونږ ځینې پښتانۀ ملګری د خپل بې ځایه شهرت دپاره دا قسم لیکل یا سیاسی بیانونه فخر ګڼی ـ

بھارتی فلم انڈسٹری کی سب سے خوبصورت اور مشہور ترین اداکارہ ,, مدھو بالا ،، بھی پشاور سے تعلق رکھتی تھی ۔ فلم ,, مغل اعظم ،، کی انار کلی ,, مدھو بالا ،، کے والد نذیر خان پجگی پشاور کے رہنے والے تھے ۔ اور یہ لوگ نسلاً یوسفزئی پٹھان تھے ------------ دھرما تھا ۔ قربانی ، جانباز اور یلغار جیسی فلموں کے ڈائرکٹر اور اداکار فیروز خان اور ان کا اداکار بیٹا فردین خان بھی پٹھان ہیں ۔ ------ قیامت سے قیامت تک ، جو جیتا وہی سکندر ، اکیلے ہم اکیلے تم ، اور جوش جیسی فلموں کی ہدایت کار اور پروڈیوسر ناصر حسین اور منصور خان جیسے لوگ بھی نسلاً پٹھان ہیں --------- امیتابھ بچن کے بعد سب سے زیادہ کامیاب فلمیں کرنے کا اعزاز پانے والے شاہ رخ خان اپنے پٹھان ہونے پر فخر کرتا ہے ------ عین اسی دور میں پاکستان کی فلم انڈسٹری میں کئی پٹھان فنکار اُردو فلموں پر چھائے رہے ۔ ان میں لالہ سدھیر ، آغا طالش ، رنگیلا سرفہرست ہیں ۔ بعد کے ادوار میں جن پختون اداکاروں نے اردو فلموں میں نام کمایا ۔ ان میں ہمایون قریشی ، آصف خان ، محمد قوی خان او عجب گل قابل ذکر ہیں [1] ۔

د اصیل ښووه خپل اصل نهٔ لباس دے

پـــه زربـافـو کښې یا ږم وی یا مریونه

عرض لرم چې پښتنو سره د نورو قومونو او ذاتونو یو ځائے وسېدو مطلب هر ګز دا نهٔ دے ـ چې دلته آباد هر ذات دې د پښتنو په ژبه د خبرو اترو یا د هغوئ د خپل مخصوص رسم و رواج په بنیاد پښتون اعلان شی ـ پښتون پښتون دے ـ او د نورو ذاتونو خپل شناخت او پهچان دے ـ د کپور خاندان بانی پرتهوی راج پښتو ژبې سره د واقفیت په بناء پښتون نهٔ وو ـ رنګیلا د کریم پورې بازار مخکښې د

---

[1] ,, شوبز ایڈیشن ،، روزنامہ مشرق ۲۰۰۴/۴/۹ ء از عقیل یوسف زئی

ملیشیاء (فرنټئیر کور ) ټېکدار شمس الدین دوکان سره جوخت یو زمانه وریته ورږی خرڅول ـ پښتون نۀ وو ـ پېښور چاؤنۍ کښې په زرګونو مېشته چوړیان پښتانۀ نۀ دی ـ د لاهور د بازارِ حُسن اوږدۀ برېتی پښتانۀ نۀ دی ـ چې په پښتو ژبې خبرې کوی ـ د ډېګرۍ بازار ګډېدونکې لختۍ په پښتنو شمار نۀ دی ـ پښتون یو مخصوص ذات دے ـ د هر کس اولاد پښتون شمارل دې قوم سره زیاتی او نا انصافی ده ـ او د حسب و نسب د اصلیت او تاریخ نه ناواقفیت دے ـ پښتو وئېل د هر چا حق دے ـ خو پښتو کؤل د پښتون کار دے ـ

د پښتنو خپلو کښې رقابت ، مخاصمت او تربګنی تربورولی په خپل ځائے ، ولې دوئ ته چې څوک راجوخت شوی دی ـ په وروڼ تندی ئې ورته " هر کلے " وئېلے دے ـ او د هغۀ د شان او مقام ئې خیال ساتلے دے ـ د غېرو په مشری او اجاره داری خوشحال دی ـ خو خپل عزیز تربور مشر نۀ منی ـ

د پښتون قوم په حقله اکثر تواریخونه د غېر پښتنو لاس لیک دی ـ د عثمان المعروف منهاج سراج جوزجانی ۱۱۹۳ء \ ۵۸۹هـ تا ۱۲۶۰ء \ ۶۸۵هـ د غوریانو متعلق په فارسی ژبه طبقات ناصری دے او کۀ د نعمت الله هروی "مخزنِ افغانی " دے د مغل دربار د اهلکارانو د پښتنو متعلق تذکرې دی یا د انګرېزانو د لاس لیکلی کتابونه ، هر چا د پښتنو عادات و اطوار ، جنګجویانه صلاحیت او کمزوری په خپل خپل انداز کښې بیان کړی دی ـ د پښتنو خپل اصل مورخین ګورے کۀ مونږ

د ګوتو په شمېر ووينو - چې مونږ ئې اصلي واقعات و حالات نه خبر ساتلے وے - دغه وجه ده چې نن زمونږ د معلومات ذرائع او ماخذات غېر پښتانهٔ يا وصليان دی - څوک چې د اصلي او حقيقي پښتنو قسما قسم کردار کشي او تصوير عکسي کوی - او هغه پښتانهٔ چې د متو په زور غوری نه تر ابدالي د سلطنتِ هند واکداران وو - په مختلف سياسي او مذهبي حربو او چالونو غلامان ، خادمان او محکوم ساتل غواړیَ - د افضل خان تاريخِ مرصع هم کهٔ يو اړخ ته د مخزن افغاني ترجمه يا د خوشحال خان او اشرف خان هجری سوانح حيات دے نو بل اړخ د مؤلف د اقتدار داستان دے - چې د پښتنو د تاريخ نه زيات د افضل خان خپله خاني او منصب ددغه وخت حالاتو او زوال پزير مغل شهنشاهيت کښې محفوظ ساتل دی - خپله درنه او د بل سپکه ددې تاريخ خاصه ده - چې خپل ځان ددې اهم منصب دپاره موزون شخصيت ثابت کړی -

زهٔ منم چې زما دا معمولي ناقدانه کوشش به د خوشحال خان د ځينې معتقدينو خوښ نهٔ وی - خو د تاريخ د يو ادنیٰ طالب علم په حېث خپل معلومات پټ او د زړهٔ دننه ساتل جرم ګنم - زهٔ خپل نظر او فکر په چا نهٔ تپم - البته غواړم چې ناقدان په ادبي او معياری بنائسته ژبه زما کمزوری په ګوته کړی - چې د خوشحال خان منصبي ژوند واضحه شي - مشکوک انداز فکر ختم شي - او حقائق مېنځ ته راشي -

خوشحال خان په قام قبيله ختک يا کاشغرى وو ـ پښتون وو او يا د مغلو منصبدار او د ختکو "خان" وو ـ ددې فېصله په قارئين او لوستونکو ده ـ خوشحال خان په هر حال د پښتو ژبې همه جهت لوئے شاعر دے ـ او ددې حقيقت نه انکار نمر په گوته پټول دى ـ خو د پښتو ادب په ترقى کښې چې د غېر پښتنو کوم لوئے لاس دے د دوئ برعکس د اصلى پښتنو مالکې برابر شرکت دے ـ بايزيد انصارى ، مرزا خان انصارى يا اخون درويزه د حسب و نسب په لحاظ پښتانهٔ نهٔ وو ـ ولې د هغوئ چې د پښتو ژبې د ودې دپاره کوم خدمات دى ـ د ستائنې وړ دى ـ مونږ اوس هم کهٔ د پښتو ادب د نثر و شعر د مصنفينو او مؤلفينو د حسب و نسب جاج په اصلى معنو کښې واخلو ـ نو شايد چې د نورو قومونو او ذاتونو د کتابونو پنگه درنه وخېژى ـ پښتون د مېدان جنگ تُورزن شهسوار ضرور وو ـ ولې د قلم د اهميت نه بې خبره او غافل وو عن چې پښتنو حاکمانو او شاهانو هم د خپلې ژبې قدر ونکړو ـ ځکه خو خوشحال خان وائ :

چا ئې پلؤ د مخه وانهٔ خېستو
پښتو لا هغسې بِکره پـرتــه ده

**خواجه محمد سائيل**
**بهادر کلے پېښور**

---

# شجرۂ نسب

---

نعمت اللہ ھروی لیکی :

پچھلے زمانوں کی خبریں دینے والے اور قدیم ادوار کے متعلق تلاش وجستجو کرنے والے یہ بیان کرتے ہیں ۔کہ حق سبحانہ وتعالٰی نے اپنے لطف وکرم سے جو ہر خاص وعام پر سایہ ڈالے ہوئے ہے۔قیس عبدالرشید کو جو ,, پٹھان ،، کے لقب سے بھی مشہور ہے۔۔۔۔۔۔۔۔۔۔۔۔تین سعادت منداور شرافت شعار بیٹے عطافرمائے تھے۔بڑے بیٹے کا نام سربنی ،منجھلے کا بٹنی اور سب سے چھوٹے کا غرغشت تھا۔ان میں سے ہرایک کی پشت سے لاتعداد بیٹے بیٹیاں اور بے شمار سلسلے وجود میں آئے ۔بعض مؤرخین کے مطابق ان تمام خاندانوں اور قبیلوں کی تعداد تین سو پچانوے (۳۹۵) تک پہنچتی ہے۔ان تمام میں سے سربنی قبیلوں کی تعداد ایک سو پانچ (۱۰۵) ، بیٹنی قبیلے تعداد میں پچیس (۲۵) ،غرغشتی کے پچانوے (۹۵) قبیلے ،متی کی باون (۵۲) قبیلے اور کررانی قبیلوں کی تعداد ایک سوبیس (۱۲۰) تھی ۔یہ کررانی قبیلے اگرچہ پٹھان کی اولاد نہ تھے۔لیکن پٹھان ہی مشہور ہوئے [1] ۔

---

(۱) مخزن افغانی ص ۴۱۶

### بهادر شاه ظفر لیکي:

سړبني ، غورغشتي او بټني قبائل د قيس عبدالرشيد اولاد دے ـ دا درې واړه طبقې د اصلي افاغنه په نامه هم مشهورې دي ـ ځکه چې د رواياتو مطابق دوئ د قيس عبدالرشيد صلبي اولاد هم دے ـ او د افغنه بن ارميا په اولاد کښې هم شامل دي ـ باقي دوه طبقې يعنې متوزي (غلجي او لودي) او کرلاني په وصلي افاغنه يادېږي ـ ځکه چې دوئ د قيس عبدالرشيد په صلبي اولاد کښې شامل نهٔ دي[1] ـ

### نعمت الله هروي د کراني متعلق ليکي:

وائ چې يو خلې د اورمړ قبيلې دوه کسان چې نومونه ئې عبدالله او ذکريا وو ـ ښکار له لاړ وو ـ هغوئ يو داسې ځائے ته ورسېدل چرته چې هغوئ نه اګاهو دغلته کاروان شپه تېره کړې وه ـ او سحر وختي دغه ځائے نه په کوچ روان شوي وو ـ د خدائے کار وو ـ چې عبدالله دغه ځائے يو بالتے او ذکريا ته يو تازه پېدا شوے هلک په لاس ورغلل ـ چې هم په دغه شپه پېدا شوے وو ـ اتفاقي خبره وه چې د عبدالله هېڅ اولاد نهٔ وو ـ او د ذکريا ګڼ شمېر اولاد وو ـ چې د غربت په وجه ئې د هغوئ دپاره د يو وخت ډوډۍ بندوبست کول هم ګران وو ـ عبدالله ذکريا ته ووې چې دا بالتے تهٔ واخله ـ او پکار ئې راوله ـ او دا ماشوم ماته حواله کړه ـ ځکه چې زما اولاد نيشته

---

[1] پښتانهٔ د تاريخ په رڼا کښې ص ۱۲۶۵

ذکریا چې دا واورېدل نو فوراً راضی شو - او ماشوم ئې عبدالله ته حواله کړو - او د دغه ماشوم په بدل ئې هغهٔ نه بالتے واخیستو - چونکه په پښتو ژبه د وسپنې بالتی ته کراهی هم وائ - نو په دغه اساس عبدالله ددغه ماشوم نوم کراهی کېښودو - چې وروستو د " کرانی " په نوم مشهور شو - هر کله چې دغه ماشوم لوئے شو - نو عبدالله ورله په خپله قبیله کښې وادهٔ وکړو - او د هغهٔ ګڼ شمېر اولاد پېدا شو[1] -

دغه مخزن افغانی وړاندې لیکی :

چې د کرانی دوه زامن وو - کودے او ککے - او بیا ددهٔ د دوؤ زامنو ګڼ شمېر اولاد پېدا شو - چې په مختلفو قبائلو مشهور شول - د کودی دوه ښځې وې - د اولنۍ ښځې نه اوتمان، دلازاک او وردک پېدا شول - د دوېمې ښځې نه مانی ، خوګی ، خټک او منګلی پېدا شول - د دلازاک دوه زامن وو - لوری او یعقوب - د لوری څلور زامن وو - امند ، بېخی ، وتک او عمر خېل او د یعقوب اووهٔ زامن وو - مندی ، امی ، سنی ، متی ، حېدر ، یٰسین خېل او مانی -

تاریخ مرصع دا قیصه داسې بیانوی :-

---

[1] مخزن افغانی یا تاریخ خان جهانی ص ۴۶۷ تا ۴۶۸

وائ چې په زمکه د ایلاق او د قشلاق کرلاڼ له موره تولد شۀ ـ په سبب د واقعې و احشامات ته روان شول ـ دے ئې هېر شۀ ـ هرګاه چې وریاد شۀ ـ اُرمړ چې ورور د هونی وو ـ په طلب د ورارۀ وجاروت ـ بیا ئې موند ـ یو دېګ هم هورته د دوئ نه پاتې شوے وو کرلاڼ ئې په دېګ کښې واچوۀ ـ او دېګ ئې په سر واخست و احشامات ته ئې راوړو ـ د ارمړ خپل زویې نۀ وو ـ وهونی ته ئې ووې ـ ما دا ستا زویې په ډېر مشقت تر دا ځایه راوړو ـ تۀ ئې مۀ اخله ـ زۀ به ئې پرورش کوم ـ دا دېګ تۀ واخله ـ هونے راضی شۀ ـ هرګاه چې عوض معاوضه ئې په دېګ وکړه ـ پښتانۀ دېګ ته کړهے وائ ـ دے په دا سبب د کړهیٰ مسمیٰ په کرلانی شۀ ـ هر ګاه چې عاقل او بالغ شۀ ـ ارمړ لور په نکاح ورکړه ـ اولاد ئې ډېر شۀ ـ څو ګروهه خلق دی چې واړه منسوب په کرلانی دی[1] ـ

بنا غلے پریشان خٹک لیکی :-

شجرہ نویسی کے شوق میں علاقے سے دوری کی بناء پر جب بعض پشتون قبیلوں کا بروقت پتہ نہ چلنے کے باعث اپنے خودساختہ شجرے میں ذکر بھول گئے ـ تو ان کے لئے اپنی طرف سے اپنی کوتاہی کو چھپانے کے لئے تعجب انگیز قسم کے تاویلات وضع کیے ـ انہی میں ایک نعمت اللہ ہروی بھی ہے ـ جس نے مخزن افغانی لکھی ـ خٹک، بنوچی، دوڑ، وزیر محسود، افریدی، بنگش، دلازاک، جدران، اورکزی، اتمان خیل،

---

[1] تاریخ مرصع ص ۲۵۵

خوگیانی ،منگل اور موسیٰ زئی وغیرہ قبائل کے مورث اعلیٰ کرلانڑ کو جس طرح سے پیش کیا وہ قابل افسوس ہے ------ اگر یہ لوگ سڑہ بن ،بیٹن ،غورغشت ،کرلانڑ پشتونوں کے مورث اعلیٰ ہیں ۔تو ان میں تین کا تعلق بھائی کا ہے ۔اور چوتھا یعنی کرلانڑ غیر ہے ۔کسی نے تو کرلانڑ کو سڑہ بن کی اولاد سے بتایا ہے ۔اور کسی نے سڑہ بن کے باپ قیس سے بھی کئی پشتوں میں بزرگ بتایا ہے ۔اور کئی ستم ظریفوں نے اسے ارمڑ قبیلے کے ایک آدمی عبداللہ کا لے پالک بتایا ہے[1] ۔

## تاریخ مرصع لیکي :-

د خان علین مکان نقل دے - چې په بیاض ئې په خپل دستخط کښلی دی - چې اولس د ختټک داخل په اولس د کرلاني دے - کرلانړ پورې او زمونږ تر اولاده پورې شل پېړۍ شي - افضل خان د اشرف خان ، اشرف خان د خوشحال خان ، خوشحال خان د شهباز خان ، شهباز خان د یحیٰ خان، یحیٰ خان د ملک اکوړی ، ملک اکوړی د درویش محمد چې مشهور په چنجو دے - چنجو د تمن ، تمن د حسن ، حسن د شیخ علي ، شیخ علي د عطا ، عطا د بټی ، بټی د انو، انو د برګویټ ، برګویټ د تری ، تری د تور مان ، تورمان د لقمان چې مشهور په ختټک دے - لقمان د ککی ، ککے د کرلانړ ، کرلانړ زویې د هونی دے - او هونے داخل په اولاد د سړه بن دے - چې له اولاده د شرکبون دے[2] -

(۱) پشتون کون ص ۲۹۶
(۲) تاریخ مرصع ص ۲۵۴

## تاریخ مرصع اکثر ځایه لیکی :-

نقل د بیاض د خان علین مکان چې په خاصه دستخط ئې کښلی دی ص ٢٨٩ ـ د تارا گرهـ د مهم احوال دۀ په خپل دستخط کښلی دی ص ٢٠٦ ـ دۀ په خپل بیاض کښې کښلی دی ص ٢٠٦ ـ

## سیف الرحمٰن سید د دغه بیاض متعلق لیکی :-

خوشحال خان بابا نے شعری اور نثری دونوں صنف اور ان کی مختلف شاخوں کے لئے کام کیا۔ یہاں تک کہ ان کا نام مؤرخین میں بھی شامل کیا جاسکتا ہے۔ کیونکہ تاریخ مرصع کے مطابق یہ بات واضح ہوتی ہے کہ وہ اپنی عسکری مہمات کا تاریخ وار روزنامچہ یا زیادہ صحیح الفاظ میں ڈائیری لکھا کرتے تھے۔ جس کو خود خان بابا نے ,,بیاض،، کا نام دیا تھا۔ لیکن افسوس کہ خان بابا کی تحریروں کی باقیات میں ,,بیاض،، نام کی کوئی چیز، کوئی مخطوطہ، کوئی قلمی مسودہ اب تک کسی کو نہیں ملا۔ ایسا لگتا ہے کہ خان بابا کے بیاض سے اقتباسات کی صورت میں استفادہ کرنے کے بعد ,,بیاض،، کو قصداً اور عمداً ضائع کر دیا گیا ہو۔

(تاریخ مرصع کے دو کردار، مشرق ٨ جولائی ٢٠٠٥ء)

خپل ذاتي خیال لرم چې افضل خان کومه زمانه تاریخ مرصع ته ترتیب ورکوؤ ـ د مغل د زور ښکر په ماتېدو وو ـ بادشاه گردی وه تنزل وو ـ د مرکز نه لرې علاقې د آزادی او خود مختاری په تلاش وې ـ افضل خان هم غوښتل چې د خټکو په حاکمیت خان برقرار وساتی ـ د خوشحال خان د بیاض اصلی واقعات او حقائق به د وخت د مصلحت خلاف وو ـ گنه د خوشحال خان د ژوند متعلق دومره اهم کتاب به ولې ضائع کېدو ـ

ښاغلې پردل خان خټک " د حضرت شيخ رحمکار مريدان "
د عنوان تحت د پښتو اکېډيمۍ د رسالې " پښتو " خوشحال نمبر
۱۹۸۰ء په ص ۱۷۷ ليکي :-

" په شيخ ضياء الدين د خوشحال خان لور وادۀ وه - څوک چې د
اشرف خان او بهرام خان سکه خور وه " -

د اشرف خان هجرى تاريخ پېدائش :-

چوں بود وقت بهار و شگفتن گل ها
حساب سال وے آمد بهار اهل شگفت[1]

۱۰۴۴هـ \ ۱۶۳۵ء

د بهرام خان تاريخ پېدائش :-

تاريخش شد که بخت بابا آمد

۱۰۵۳هـ \ ۱۶۴۴ء

زين جمله شود جيم هزار و پنجاه[2]

اوس راځئ چې خپل مدعا ته راشُو - د افضل خان د وينا
مطابق :- چې زما پلار په ۱۰۹۲هـ \ ۱۶۸۱ء کښې قېدېدو نو زما
عمر شپاړس اوولس کاله وو - په دې اساس د افضل خان د پېدائش
کال ۱۰۷۶هـ \ ۱۶۶۶ء يا ۱۰۷۵هـ ۱۶۶۵ء جوړېږی - او دا هغه
زمانه وه چې خوشحال خان د اورنګزېب په قېد و بند وو -

---

[1] تاريخ مرصع ص ۲۵۸ و ۱۱۷۸

[2] تاريخ مرصع ص ۲۵۸ و ۱۱۷۹

دغسې د بهرام خان د یو زوېې معظم خان د وفات کال د عبدالقادر خان بن خوشحال خان مطابق په دې شکل دے چې خوشحال خان هم د هغهٔ په غم کښې یو درد ناکه مرثیه لیکلې ده -

درویشت کاله ددهٔ عمر زر اتـــهٔ نـوی
د هجرت حساب په حکم د کتاب شهٔ

ددې شعر د ۱۰۹۸هـ ۱ ۱۶۸۷ء نه چې درویشت کاله وباسو - نو د معظم تاریخ پېدائش ترې ۱۰۷۵هـ ۱ ۱۶۶۵ء راوُځی - یعنی د اشرف خان هجری زوېې افضل خان او د بهرام زوېې معظم هم عمر وو یا د معظم نـــه افضل خان یو کال کشر وو - او لکه چې ښکاره ده - "دستار نامه " د خوشحال خان د قېد و بند دوران په نثر لیکلے کتاب دے -

دا کتاب چې په پښتو خوشحال انشاء کړو
پخـــوا نـــهٔ دے انشاء کـــړے پښتـانـهٔ
کـــهٔ تـــاریخ ئې د انشاء لـه مانه غواړې
وایـــم دا "بس دے محنت د بیلتـانـهٔ "

۱۰۷۶هـ

"دستار نامه " زمونږ په زړهٔ کښې دا شکوک و شبهات را وچتوی - چې په دې دومره وړوکوالی زمانه د افضل خان په ذات کښې داسې کوم خصوصیات وو - او د معظم په وړوکې تنه کښې داسې کوم کمے

وو - چې خوشحال خان خټک شجره نسب د څو میاشتو د عمر د افضل خان نه دغه سلسله شروع کوی - " د رنتبور ورغلم په کور - علیحده تاریخ به انشاء شی چې ئې تماشه شی - اوس هومره چې دا خبره واضحه شی - ابتداء به ئې له خپله نمسیه وکړم - چې افضل خان دے[1] " -

د خوشحال خان د یو شعر مطابق :-

د بی بی اولاد همه ګیدړ میدړ دی

پــــه افضل پــــه معـظم لړی نظر

د " دستار نامه " لیک او تحریر کۀ مونږ په لږ دقیق نظر وګورو - نو شاید چې داسې ډېر کم اهلِ نظر او د فراست خاوند د خوشحال خان دې بیان څخه اتفاق وکړی -

کتابونه راغخه نۀ وو - او کۀ نه بنۀ تکی مې به په دا کتاب کړے وے - نظم ، نثر ، عربی ، فارسی مې به په اشتهاد پکښې ډېر راوړی وو - اما په عندیات په حافظه خو به دا هومره څۀ کېدۀ - ادراک به هومره رسېدۀ - هره خبره به له روایته بېرون نۀ وی - له حکمته به خارجه نۀ وی[2] -

---

[1] دستار نامه ص ۸۴

[2] ایضاً ص ۱۳۷

زمونږ په نزد د خوشحال خان دې بيان څخه اتفاق کؤل ځکه ګران دی - چې دستار نامه د ډېر زيات معلومات ، مطالعه او د ډېرو کتابونو په ماخذات بناء لري - او د نثر په ژبه د علم و دانش ګنجينه ده - او بيا د ټولو نه لويه خبره دا ده چې هغه دغه خپل بيان په خپله د فراق نامې په اشعارو رد کوی - او وائ چې د رنتنبور په قلعه کښې ما څخه ډېر هندوان او مسلمانان بنديوان دی - او ددې ټولو ما سره ارشه درشه ده -

راتـــه لـــولی کتابونه          راته وائ خپل خوبونه

داسې ښکاری لکه چې " دستار نامه " د افضل خان خپل تصنيف وی - او يا د بل چا تصنيف يا تاليف وی - خو خپل شجره نسب د کرلاڼ څخه د منسوب کولو په سبب د خوشحال خان په نوم په دې وجه ترې - چې د خپل خان اهميت ، او د خپلې مشرۍ او خانۍ رعب واضح او حق بجانب کړی -

به تاريخ پنجم جمادی الثانی سنه 1119 يک هزار يکصد ونوزده - درسرکار زبدۀ خوانين بلندمکان مکرمت نشان مرجع حسنات حسنه، منبع افاضات ذاتيه محمد افضل خان جيوادام الله ارشاده وضاعف آثار اقباله - نسخه معظمه دستارنامه به خط احقر عبدالحليم از حوصلۀ قلم به منصفه تحرير در آمد -

د کتاب اختتامی اشعار هم د توجه وړ دی - چې آيا دا رباعی د خوشحال خان د لاس ليک ده يا د افضل خان - ځکه چې د اشعارو تنه بوده داسې ده لکه چې ممکن ده - د خوشحال نوم څخه افضل

خان منسوب کړی وی - په دې رباعی کښې د صیغهٔ متکلم نه زیات د مخاطب اثر ظاهرېږی -

دستار نامه کښې د قرآن شریف آیتونه ، احادیث ، د بروج حسابات ، د شخصیات او بادشاهانو ذکر لکه امام غزالی ، ارسطاطالیس ، سلطان سنجر اذکار ، د تاریخ روضة الصفا حواله جات او د فارسی د ډېرو شعرونو بیان ، د مختلف کسب و هنر تفصیلات داسې موضوعات دی چې د یادداشت په سطح داسې کتاب لیکل ناممکن معلومېږی - او لکه چې ښکاره ده د خوشحال خان په ځینې کتابونو کښې د افضل خان اختراعات د ځان بالائ او شان و شوکت اظهار شامل دے - ځکه چې هغه دغه زمانه د خټکو سردار او جاګیردار وی - او د خوشحال خان د ټولو تصنیفاتو منظر عام ته په راوړلو کښې د افضل خان ډېر لویې لاس دے - او کهٔ د هغهٔ کوشش توجه او مالی امداد شامل نهٔ وے - نو شاید چې نن مونږ ډېر کم د خوشحال خان او د هغهٔ د کورنی یا اسلاف د حالات نه خبر وے - نو لازمی ده چې افضل خان به په دې کتابونو کښې د خپل فضیلت اهمیت او خصوصیت ذکر شاملوهٔ - عن چې د خوشحال خان خپل ورونه زامن سپک او نا اهل دی - ولې افضل خان په دغه ټول خاندان کښې د اعلیٰ رتبې ، قابلیت او عظمت اهل دے -

هغه ملک واړه بخمـل دے
چې پکښې زما افضل دے

(فراقنامه )

اوس پنځهٔ نمسی لرم افضل خان د اشرف خان
خدائے ئې برخودار کړه په دهٔ ړېــــره لرم طمعه

خوشحال خان خپله شجره داسې بیانوی :- اوس هومره چې دا خبره واضح شی - ابتداء به ئې له خپله نمسیه کړم - چې افضل خان دے - افضل خان د اشرف خان ، اشرف خان د خوشحال خان ، خوشحال خان د شهباز خان ، شهباز خان د یحیٰی خان ، یحیٰی خان د ملک اکوړی ، ملک اکوړی د چنجو ، چنجو د تومن ، تومن د حسن ،حسن د شیخ علی، شیخ علی د هوتی ، هوتی د بټی ، بټی د اتو ، اتو د تری ، تری د تورمان ، تورمان د لقمان (المعروف خټک) لقمان د برهان ، برهان د کودی ، کودے د کرلاڼ ، کرلاڼ د نی دے - لوئے کړے ارمړ دے[1] -

مونږ کهٔ د تاریخ مرصع او دستارنامه شجرات موازنه کړو - نو د دواړو شجرو په سلسله هائے کښې فرق دے -

[1] دستار نامه ص ۸۴

(۱) د تاریخ مرصع بیان دے چې دغه شجره ( یعنی د تاریخ مرصع) خوشحال خان په خپل بیاض د خپل دستخط لاندې لیکلې ده ـ خو افضل خان دې طرف ته متوجه شوے نهٔ دے ـ چې هغه د خوشحال خان د لاس لیکلې کومه شجره په "دستارنامه" کښې بیانوی ـ نو هغه د تاریخ مرصع د شجرې څخه په تفاوت ده ـ

(۲) تاریخ مرصع خپل حسب و نسب د کرلاڼ زویې ککی څخه ترې ـ ولې دستار نامه لقمان د برهان او برهان د کودی زویې او کودے د کرلاڼ زویې ښائ ـ چې د دواړو کتابونو تر مېنځ د خپل حسب و نسب په سلسله کښې زبردست تضاد او تفاوت دے ـ

(۳) افضل خان په تاریخ مرصع کښې لیکی چې د اکوړ خان د پلار نوم درویش محمد وو چې په چنجو هم مشهور وو ـ ولې بل خوا په دستار نامه یا د خوشحال خان په ټول دیوان کښې د درویش محمد ذکر نیشته بلکه چنجو یا جنجو یې بولی ـ او یو نیم ځائے کښې ئې په هتک امېز طریقه هم بیانوی ـ

زویه کهٔ هسې وی لکــــه چې زهٔ لرم
کهٔ هر څو ډېر دی یــو زویــه نهٔ لرم
یو یحیٰ خان نهٔ شو یو اکوړے نهٔ شو
چنجو منجو دی پټ بــه ئې څهٔ لرم

او بل ځائے وائ :-

خټک چې په اس سور شي
درستـــه وتـــړی پـه کونه
شمله د دستـــار پرېـــږدی
په تندی کښې اوږده پلنــــه
ســـايـــه د شمـلې ګوری
د خپـــل اس پـــه تـــرپؤنه
جنجـــو[1] تـــه کا ښکنځلې
پـــه کـــولک کاندې پوښتنه
دعـــوی[1] د خـــانی واخلی
پـــه فساد کانـــدې جستنه

## ښاغلے پریشان خټک لیکی :-

افضل خان نے درویش محمد خان کے لئے صرف چنجو لکھا ہے۔ غالباً افضل خان نے احتراماً چنجی کی جگہ چنجو لکھا ہے۔ چینجے پشتو میں کیڑے کو کہتے ہیں۲ ۔

د ګران مشر او محترم استاد په خدمت کښې عرض لرم چې څوک هم خپل مشر په سپک نوم نهٔ یاده وی ـ د چنجو په اخلاف کښې

---

[1] داسې څهٔ وجوهات وو چې خټکو چنجو ته کنځل کول ـ آیا داسې خو نهٔ ده چې خټک د خپل قام قبیلې نه بهر د بل قوم د خلقو مشری منودو ته تیار نهٔ وو ـ

۲. پشتون کون ص ۲۳۲

خوشحال خان په پنځمه او افضل خان په اوومه پېړۍ راځي پکار وه چې د ملک چنجو نوم " درویش محمد " د خوشحال خان د لاس لیک وے - ولې په اوومه پېړۍ افضل خان ته دا احساس کېږی - چې چنجو یو بې معنٰی او سپک نوم دے - نو په اووم نسل هغه چنجو د " درویش محمد " په نوم لیکی :-

تاریخ مرصع د دلازاک د شجره انساب په بیان کښې مونږ یو بل مشکلات څخه هم مخا مخ کوی - د کوم مطابق چې د هغوئ شجره نسب حضرت علیؓ ته رسوی -

اما په زعم د دلازاکو چې په کرلانی کښې د دوئ اولس لوئے دے - دا رنګ دے - چې دوئ کرلانی ته سید حسینی وائ - په دا ترتیب چې کرلانړ د سید قاف ، سید قاف د سید رجال . سید رجال د سید خاتم ، سید خاتم د سید اسمٰعیل سید اسمٰعیل د امام جعفر صادق ، امام جعفر صادق د امام محمد باقر ، امام محمد باقر د امام زېن العابدین ،امام زېن العابدین د امام حسینؓ ،امام حسینؓ د حضرت علیؓ[1] - ولې بل اړخ د خټک قبائل متعلق دا شعر :-

خټک په اصل کښې ښینے دے
داسې نــــه چې حُسینے دے

---

[1] تاریخ مرصع ص ۲۵۵

**وضاحت** :- د پښتنو په شجرهٔ انساب کښې خټک او دلازاک دواړه قبائل د کرلاڼ اخلاف دی ۔ د یو نیکهٔ اولاد په دوه مختلف قومیتونو یعنی پښتون او سید کښې شمارل ذهن نهٔ منی ۔ ددې دُرستګی ضروری ده ۔

مونږ کهٔ د تاریخ مرصع او " دستار نامه " دَ خټک قبائل متعلق دغه متضاد بیانات لږ په غور وګورو ۔ نو مونږ ترې دا نتیجه ډېر په اسانه اخذ کولے شو ۔ چې د خټک قبائل شجرهٔ انساب د اختراعات تذبذب ، بې اطمینانی او غلط اندراجاتو ښکار ده ۔ مونږ ته دا هیڅ اندازه نهٔ کېږی ۔ چې مونږ خټک د پښتنو په پلړه کښې وتلو ۔ او کهٔ د سیدانو کورنی سره ئې منسلک او مربوط کړو ۔

## میان بهادر شاه ظفر لیکی :-

یہ درست ہے کہ جناب فقیر جمیل بیگ صاحب نے اپنی کتاب میں حضرت شیخ رحمکار کاکا صاحب کا ذکر ان الفاظ میں کیا ہے۔ ,, فقیر غنی شیخ رحمکار خٹک ،،

## میان محمد بادشاه لیکی :-

د کاکا صاحب رح د نسب په باره کښې چې کومه غلط فهمی راپېدا شوې ده ۔ د هغې بنیادی وجه دا ده چې د کاکا صاحب رح زیارت د خټکو په علاقه کښې دے ۔ نو په دې وجه د بعض خلقو دا خیال پېدا کېږی ۔ چې د دوئ قومیت به هم خټک وی ۔ او حال دا دے

چې دا خبره بې بنياده او غلطه ده ـ هيچرې د ځائے د بدلېدو په وجه په نسب اثر نۀ پريوزى ـ د کاکا صاحب رح خاندان په بالمعروف يعنى تبليغ اسلام په سلسله کښې عرب ، عراق ، بخارا ، ترکستان افغانستان او بالترتيب بلوچستان او صوبه سرحد ته راغلے دے ـ او بيا دوئ صاحبانو کښې سخى سرور صاحب مشهور په غالب ګل يا غائب بابا رح د خټکو علاقې ته راغلے دے ـ ځکه بيا ددۀ اولاد په دې علاقه په خټک کښې اباد شو ـ ليکن ددې نه دا مطلب نۀ شو ـ چې دوئ د قومه خټک وو ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ کاکا صاحب رح چې په قوم سيد او وسېدونکے په علاقه د خټک کښې دے ځکه ورته د خټکو رحمکار وائ ـ دا په دې وجه وائ چې د خټکو په علاقه کښې وسېدو ـ نۀ چې په قوم خټک وو[1] ـ

## بهادر شاه ظفر د مير احمد شاه رضوانى د تحفة الاولياء په حواله ليکى :-

کاکا صاحب ابن ابک صاحب ابن مست صاحب ابن غالب صاحب هستند ـ که دراصل از سادات ترکستان بودند ـ مگر بسبب اقامت در ملک خټک به خټک منسوب شدند [2] ـ

---

1 بدرجهان ، جلد اول ( قلمى نسخه نمبر ۸۳۸ پشتو اکيډيمى پېښور ) ص ۲۵۱

۲ (الف) شيخ رحمکار ص ۱۴۵

( ب ) فراقنامه تعليقات ض ۱۷

## عبدالقادر خان ختک ۱۶۵۲ء\ ۱۰۶۲ھ تا ۱۷۱۳ء \۱۱۲۵ھ

### لیکی :-

" دوستِ یزدانی شیخ حقانی شیخ رحمکار قدس الله سره العزیز له قوم د ختکو وو " ( گلدسته ص ٦٦ )

د جمیل بیگ د دل تذکرةالاولیاء دابیان هم تعجب خېزدے

,, کاتب این کتاب جمیل ابن شهباز افغان ختک مرید شیخ رحمکار افغان ختک ا ،،

سید او پښتون دوه جدا ذات دی - سید پښتون نهٔ دے - او پښتون سید نهٔ دے - ددې دواړو امتزاج د فهم و عقل نه بهر بیان دے -

### دوست محمد خان کامل لیکی :-

حضرت شیخ رحمکار کے والد ماجد کا نام شیخ بہادر خان اور عرف ایک صاحب تھا۔ بعض آپ کو سید اور بعض ختک افغان خیال کرتے ہیں۔ (خوشحال خان ختک ص ۲۷ حاشیہ)

### اخون درویزه لیکی :-

لفظ ,,سید ،، در کلام عرب کثیر الاستعمال است - زیرا که هر گاه که شخصے را به نازو کرشمه و ادب ذکر کنند ، بلفظ سید خطاب کنند - خواه که باشد خواه مهٔ باشد ، خواه خواجه ، خواه غلام ، چنان لفظ میان درهندی و لفظ خواجه در فارسی ( تذکرة الابرار والاشرار ص ۱۹۲ )

ترجمه :- "سید " تکے په عربی ژبه کښې ډېر زیات استعمالېږی - کله چې څوک په ډېر ناز و ادب خبرې کوی نو د سید په خطاب

---

۱ مناقب جمیل بیگ ص ٦

یادېږی ـ هغه وی یا نهٔ وی ـ او یا امیر وی یا غریب ـ دغسې په هندی کښې میان او په فارسی کښې " خواجه " تکے دے ـ

راځئ چې دلته د څو نورو لیکوالو د خټک قبائل او د کاکاخېل میان ګانو شجره انساب وګورو ـ چې خټک وائ ـ مونږ پښتانهٔ یو او زمونږ شجره نسب کرلاڼ څخه پېوستون لری ـ چې وصـلی پښتون وو ـ ولې بـل پلؤ د کاکا صاحب میان ګان دغه کرلاڼ د سیدانو کورنی څخه تړی ـ او د هغهٔ شجره نسب حضرت علیؓ څخه تړی ـ اوس کهٔ مونږ کرلاڼ سید وګڼلو ـ نو بیا خټک د کومه لوریه د پښتنو په ذیلی شاخ کښې شامل شول ـ او کهٔ هغه مونږ د پښتنو په قطار کښې ودره وو ـ نو د کاکا خېل میان ګانو د سید ولی څهٔ اهمیت پاتې شو ـ د پښتو ادب د شجره انساب په لړ کښې د کرلاڼ د شخصیت موضوع متنازعه فیه ده ـ اګر کهٔ زمونږ ځینې لیکوال خیال لری ـ چې دا شجره انساب په فرضیات بنا دی خو بیا هم د پښتنو ګڼ شمېر لیکوال دې شجره انساب څخه اتفاق لری د پښتنو د اصل نسل متعلق ځینې عقیدو په دې قوم کښې په قوی او مضبوط انداز جرړې نیولې دی ـ چې څوک ئې اریا النسل ، څوک سامی النسل او ځینې ئې قبطیان ګڼی ـ دغه قیاسیات او فرضیات اوس دومره زیات تقویت لری ـ چې د پښتنو یو یا بل خېل د سامی النسل نظریات د یو یا بل شاخ څخه ځان منسلک

کړے دے - بیا په تېره تېره د قېس عبدالرشید د اولاد شجره نسب خو څۀ نا څۀ مستقل اډانه لری - ولې د کرلاڼ شجره انساب د تردد تذبذب او پرېشانی ښکار دی - د خوشحالیات ماهرین له پکار دی چې د کرلاڼ ذات او شخصیت یا خو صاف سوچه پښتون ثابت کړی - او یا ئې د سیدانو د ډلی په شمار کښې راولی - زۀ دلته د دواړو اړخو د ځینې لیکوالو د شجرۀ انساب د بیان په ذکر اکتفا کؤم - چې لوستونکو ته معلومه شی چې د دواړو ډلو د شجرۀ انساب په ذکر کښې څومره لوئے تضاد او فرق دے -

د بهادر شاه ظفر مطابق به د خوشحال خان د کورنۍ شجره نسب په دې شکل وی :-

"خوشحال خان بن شهباز خان بن یحیٰی خان بن اکوړ بن چنجو بن اوتمان بن حسن بن شیخ علی بن هونی بن بطی بن انو بن برکویټ بن تری بن تورمان بن لقمان بن برهان بن ککے بن کرلاڼ " [1] -

## د عبدالحلیم اثر افغانی مطابق :-

خوشحال خان ابن شهباز خان ابن یحیٰی خان ابن ملک اکوړ (احمد) ابن ملک چنجو ( محمد دروېش ) ابن کریم ابن حسن ابن علی ابن هوتی ابن بطی ابن انو ابن برکویت ابن تری ابن تورمان ابن لقمان

---

[1] پښتانۀ د تاریخ په رڼا کښې ص ۱۳۵۷ ، ۱۳۵۸ ، ۱۳۶۰

المعروف په خټک ابن برهان ابن ککی ابن کرلاڼ ابن دانی ابن غرغشت ابن قیس ( عبدالرشید )[۱] -

اثر صاحب د دغه رسالې په ص ۴۴ لیکی :-

خوشحال خان ابن شهباز خان ابن یحیٰی ابن احمد ( اکوړ ) ابن چنجو ( شمس الدین محمد درویش) ابن اوتمان ابن حسن ( صدر الدین ) ابن علی ( شمس الدین علی لواغری ) ابن اتمان ابن ملک زاده شهاب الدین عبدالکریم ابن سکندر ابن حسین ابن اسماعیل ابن علی الکرم ابن عبدالعزیز ابن سعید الهوتی ملقب به سید شیخ علی" -

د مناقب شیخ رحمکار (فارسی نثر ) از عبدالحلیم گل بابا په قلمی نسخه د حضرت شیخ رحمکار المعروف کاکا صیب یو نمسی برهان الدین خپل شجره نسب په دې انداز مرتب او تحریر کړے دے -

برهان الدین بن شیخ رحم الدین بن حضرت شیخ زین الدین بن حضرت شیخ عبدالشکور بن حضرت شیخ سبرالدین بن حضرت شیخ قیاس الدین بن حضرت شیخ ضیاء الدین بن حضرت غوث الغواث قطب الاقطاب شیخ رحمکار صاحب قدس الله سره العزیز اسم مبارکش مادرزادی شیخ کستیر صاحب مشهور است - بن حضرت غوث الثقلین شیخ بهادر صاحب قدس الله سرهٔ العزیز بن

---

[۱] میاشتنی مجله پښتو خوشحال خان خټک نمبر پښتو اکیډیمی ص ۳۲ مطبوعه ۱۹۸۰ء -

حضرت مست بابا چشتی بن حضرت شیخ غالب بن حضرت آدم بن حضرت شیخ یاسین صاحب بن حضرت شیخ حسین بن حضرت شیخ بطی صاحب بن حضرت شیخ انو دین بن شیخ برکویط بن شیخ عبدالرحمٰن صاحب مشهور به تری است بن حضرت شیخ تورمان صاحب بن حضرت شیخ لقمان صاحب بن حضرت شیخ ککی صاحب بن شیخ کرلان صاحب بن سید قاف بن سید رجال بن سید خاتم بن سید اسماعیل بن امام جعفر صادق بن امام محمد باقر بن امام زین العابدین بن حضرت امام حسین بن حضرت علی کرم الله وجهه بن ابی طالب بن عبدالمطلب بن هاشم بن مناف ـ (ذاتی قلمی نسخه )

د حضرت سید کستیر گل صاحب المعروف شیخ رحمکار یا کاکا صاحب شجره نسب چې د هغوئ د مزار په احاطه کښې د یو کانړی په تخته درج ده ـ په دې شکل ده :-

ضیاءالدین و خلیل گل و عبدالحلیم گل و محمد گل پسران حضرت شیخ رحمکار کاکا صاحب بن بهادر بابا بن مست بابا بن غالب بابا بن ادم بن یاسین بن محبت بن باقر بن محمود بن سید احمد بن سیف الله بن سعید الدین بن علی اکبر بن لقمان بن رجال بن سید جان بن فاتح بن خاتم المعروف علی بن اسماعیل بن جعفر بن محمد باقر بن زین العابدین بن امام حسین بن حضرت علی ـ

ښاغلی سید تنظیم الحق حلیمی " د توچۍ ډبر لیک " د سرخط لاندې " شېره تله " چې د شوال د غرۀ لمن وه ـ او په کال ٢٦٨هـ کښې ددغې علاقې خلق ( استوړن ) پښتانۀ او مسلمانان وو ـ لیکی :-

هر کله چې دا علاقه د کرلانی قبیلو علاقه ده ـ او په کرلاڼ قبیله کښې په دغه دور کښې ایکی یو سید او اٰل رسول حضرت کرلان رحمة الله علیه وو ـ چې دلازاکو سره وصلی قبیله ده ـ او د سید کرلان اولاد دے خپله دلازاک ددغه وصلی قبیلې شجره داسې بیانوی :-

سید کرلان ابن سید قاف ابن سید الرجال ابن سید خاتم ابن سید امام اسماعیل ابن امام جعفر صادق ابن امام محمد باقر ابن امام زین العابدین ابن شهید کربلا حضرت امام حسین رضی الله عنه --------- د روایاتو نه دا هم معلومېږی چې په " شیر تله" کښې کرلانیان شریک وسېدل ـ د کودی او ککی د اولاد فرق په کښې نۀ وو[1] ـ

سید تنظیم الحق حلیمی " د کرلانی سیدان " د موضوع تحت مئ جون ٢٠٠٢ء او جولائ اگست ٢٠٠٢ء پښتو رساله کښې دوباره دوه مضامین شائع کوی ـ او کوشش کوی چې کاکا خېل میان گان د ختک قبائل د نیکۀ کرلاڼ په ځائے د یو بل سید علی کرلاڼ یا سید الرجال ککی بابا بن سید قاف اولاد ثابت کړی ـ د دوئ د بیان مطابق :-

---

[1] پښتو ( ستمبر اکتوبر ٢٠٠١ء ) پښتو اکېډیمی پېښور ص ١٢

افضل خان د ټولو مؤرخینو د یو متفقه نظریې برخلاف بې د څۀ معقول دلیل او بې د څۀ سند نه خپله قبیله ( خټک ) د کودی نه ککی ته اړوی " (پښتو مئ جون ۲۰۰۲ء ص ۲۳ ) ------- " نو ښکاره ده چې کرلاڼ ککے نۀ شی کېدے ـ ددې تاریخی غلطئ ازاله ضروری ده " ـ ( پښتو جولائ اګست ۲۰۰۲ء ص ۹ ) ـ

د تنظیم الحق حلیمی د تحقیق اهمیت په خپل ځائے ، ولې زمونږ علمی او معلوماتی تشنګی په خپل ځائے موجود ده چې د کاکا خېل میان ګانو او خټک قبائل د اسلاف و اخلاف نومونه یو شان ولې دی ـ پښتانۀ سیدان دواړه یو نسل څنګه ممکن دی ـ پکار دی چې دخټک اوسید کورنئ داسلاف واخلاف نومونه جدا جدا وی

میان محمد بادشاه په خپل کتاب مناقب شیخ رحمکار کښې د حضرت کاکا صاحب شجره نسب په دې شکل بیانوی ـ

(۱) شیخ رحمکار المعروف کاکاصاحب بن سید بهادر المعروف ابک بابا بن سید مست بابا بن شیخ غالب ګل بابا بن ادم بابا که مقام دارد درکربوغه برسرکوه اند ـ

(i) بن سید یاسین

(ii) بن سید محبت که مشهور به بطی صاحب است مقام درغزنی دارند ـ

(iii) بن سید باقر که مشهور به ابرکویط صاحب

این سه بزرگان صاحبان درغزنی اند

(۲)

(i) بن سید محمود که معروف به سید شیخ تری اند

(ii) بن سید احمد ضاحب که مشهور به شیخ تورمان هست

(iii) بن سیف الدین صاحب که مشهور به لقمان صاحب است

(iv) بن سید سعید الدین صاحب که مشهور به تورے بابا صاحب هست -

(v) بن سید علی اکبر صاحب که مشهور به شیخ کرلان است

این پنج بزرگان بمقام پشین اند

(۳)

(i) بن سید گل صاحب مشهور به سید قاف صاحب هست

(ii) بن سید رجال صاحب

(iii) بن سید علی صاحب

این هرسه بزرگان در مقام بخارا هست

(۴)

(i) بن شیخ فاتح

(ii) بن سید خاتم

(iii) بن سید اسماعیل

این هر سه درمقام مشهد اند

(۵) بن امام جعفر صادق صاحب در بغداد بن امام باقر صاحب بن امام زین العابدین صاحب در مدینه منوره بن امام حسین صاحب در کربلائے معلی اند ۔

بن مرتضیٰ علی و فاطمه الزهرا بنت محمد ﷺ ۔

شجرۂ عالیه شیخ رحمکار در تصنیف اخون شرف و اخون میان داد و میان ولی صاحب و صدر الدین که از عمده خلفاء حضرت ابک صاحب رح مریدان اند ۔ و اخون یوسف ملتانی که از تابعان حضرت شیخ مست صاحب اند و اخون هلال زُوفر و نورالحق و عبدالخالق ۔ که این همه خلفائے معتبره شیخ رحمکار اند قدسُ سرۂ و از خلفائے حضرت خواجه شیخ گلنور صاحب ۔ اخون ابراهیم و مرزا و درتصنیف جضرت جی صاحب میان یحیٰ اتک نیز اورده اند ۔ که صاحبان می فرمود ۔ که ما همه از نسب شریفه هاشمیان و سیاداتِ هاشمیه ایم ۔ شکے و شبهے ندارند[1] ۔

دغسې میان محمد بادشاه د " بدرجهان معروف به تذکرة المشائخ " چې د آدم علیه السلام نه شروع کېږی ۔ او د هغهٔ تر وخته د شیخ رحمکار صاحب په نمسو کړوسو اختتام مومی ۔ په ځینې ځایونو کښې د خپل مناقب شیخ رحمکار د نظم قلمی نسخې څخه په اختلاف درج ده ۔ لکه د هغهٔ ددغه پښتو نثر د کتاب مطابق :-

---

[1] مناقب شیخ رحمکار از میان محمد بادشاه ۔ قلمی نسخه (نظم) پښتو اکېډیمی پېښور ، نمبر ۸۴۴

سید محبت که مشهور په سید حسېن صاحب

بن سید باقر که مشهور په طی العالم

بن سید محمود مشهور په سید یونس صاحب

بن سید احمد صاحب مشهور په انوس صاحب

بن سېف الدین صاحب مشهور په ابرګویټ صاحب

بن سعیدالدین صاحب مشهور په تورے بابا

بن سید علی اکبر صاحب مشهور په شېخ تومان بابا

بن سید ګل صاحب مشهور په سید لقمان

بن سید رجال صاحب مشهور په ککی بابا

بن سید قاف صاحب مشهور په سید جان بابا

بن شېخ فاتح مشهور په سید الرجال صاحب[1]

## افضل خان په خپل کتاب تاریخ مرصع کښې لیکی :-

" او اولاد د بټی چې هوتے او څینے دے ـ د څینې هم څلور زامن نامدار شول ـ الک ، یاسین ، عیسٰی او بکے ـ د بکی اولاد کم دے ـ او اولاد د الک او د یاسین او د عیسٰی ډېر شۀ ـ دا درې واړه ورونه څونصو پونصو کورونه شول ـ او شېخ بزرګوار شېخ رحمکار یاسین خېل دے ـ پلار ئې شېخ بهادر نومېدۀ ـ په تحقیق بهادر د دین وو

---

[1] قلمی نسخه نمبر ۸۳۸ پښتو اکېډیمی پېښور

معاصر د ملک اکو وو ـ هوتی او څینی دواړو ته بتی خېل وائ ـ ـ ـ
ـ ـ ـ ـ ـ ـ د یاسین اولاد ډېر شۀ ـ ددۀ دوه زامن وو ـ یو دولت خواجه چې اوس ورته ببر وائ او بل بارک[1] ـ

تاریخ مرصع کښې په ص ٥٦٢ درج دی ـ

" ذکر د شیخ رحمکار خټک پښتون کرلاڼ "

د تاریخ مرصع د بیان نه ظاهره ده چې د خټکو او کاکا خېل میان ګانو یو قسم شجره نسب دے ـ او لکه څنګه چې تاریخ مرصع د ملک چنجو نوم درویش محمد او د ملک اکوړ نوم په ملک اکو بدلوی ـ دغسې هغه په ډېر چل او هنر خپله شجره د بَتی خېل خټک څخه مربوط کوی ـ

" بیا ملک جانی چې په هغه وخت سردار د بتی خېل وو ـ عزیزانو پرې ملامت وکړو ـ چې ملک اکو دې په ناحق ازرده کړو ـ بویه چې پوخله ئې کړې ـ دے ورپسې راغے ـ ولې ملک اکو ورسره نۀ تلو ـ د ملک جانی هم دا ملک خوښ شۀ[2] "

---

[1] تاریخ مرصع ص ٢٦١

[2] تاریخ مرصع ص ٢٦۴

خو د تاریخ مرصع ددغه بیان برعکس :- د سید یاسین ځلور زامن وو سید آدم بابا ، سید بهاؤ الدین ، سید سرور الدین او جان خان صاحب چې په جانی بابا هم مشهور دے[1] -

تاریخ مرصع کهٔ یو خوا ملک جانے خپل قرابت دار ښائ -
نو بل اړخ ددغه قرابت داری د مزید تفصیلاتو نه ډډه کوی - ملک جانی ځځه د دوئ ځهٔ رشته او عزیز ولی وه - آیا ملک چنجو د ملک جانی د نورو ورونو اولاد وو - یا د الک ، عیسیٰ او بکی په اولاد کښې وو او یا د هوتی اولاد وو - دغه یاسین کهٔ یو طرف د ختکو نیکهٔ شو - نو بل طرف د کاکا خېل میان ګانو د سیدانو نیکهٔ یاسین بابا ځنګه شو - او ختک ځان پښتانهٔ ، او کاکاخېل میان ګان ځان سېدان ګنی - نو بیا د دواړو شجره نسب یو شان ځنګه ترتیب شو -

## د ډاکټر اقبال نسیم ختک مطابق :-

د درویش محمد د مرګ نه پس د کربوغې د بتی خېلو مشری ملک جانی سنباله کړه - د ملک جانی او ملک اکو تر مېنځه اختلاف پېدا شو - او ملک اکو ترې نه د خوړې په لور مرور په کډه لاړو او په ګواز دره کښې ئې واړول - د ملک اکو د کوچ یو سبب خو دا بیانولے

---

[1] بدر جهان ، قلمی نسخه نمبر ۵۳۸ پشتو اکېډیمی پېښور ص ۱۰۲

شي - چې هغه به د ملکرو سره کاروانونه وهل - او ملک جانی او د هغه نور خپلوان په دې خفه وو[1] "

پریشان خټک د خپل کتاب " پښتون کون " په حاشیه د

کاکا خېل میان ګانو متعلق لیکی :-

اگر چہ انہی مؤرخین کی رائے سادات کے اس گھرانے کے بارے میں مختلف ہے۔ وہ انہیں سینی خٹک بتاتے ہیں۔ مگر یہ بھول جاتے ہیں۔ کہ کربوغہ میں سینی خٹک نہیں بلکہ بارک خٹک رہتے ہیں۔ کاکا خیل سادات کا گھرانہ قبیلہ خٹک کا مرشد گھرانہ ضرور ہے۔ مگران کا ال رسول ہونا ثابت ہو چکا ہے[2]۔

## بهادر شاه ظفر کاکا خېل لیکی :-

غالب گل علاقہ خوست کے گردیز سے نقل مکانی کر کے قبیلہ بنگش وقبیلہ خٹک کے موجودہ علاقے کے ایک سرحدی مقام ,,کربوغہ،، کے قریب جس کو ,,حسن تنگے،، اور ,,ممانڑی غونڈی،، بھی کہا جاتا تھا۔ مقیم ہوئے ـــــ ۱۴۹۵ء / ۹۰۰ھ کے قریب اپنے چند مریدوں کے ہمراہ کربوغہ سے چل کر دریائے سندھ کے کنارے تک آئے۔ اور علاقہ خوڑہ میں جو اُن دنوں میں بہت ہی کم اباد تھا۔ بلکہ غیر اباد تھا۔ موضع مروبہ (نظام پور) کے قریب مقیم ہوگئے۔ یہاں جنگل ہی جنگل تھا۔ اور دور دور تک ابادی کا نام و نشان تک نہ تھا۔ــــــــــ حضرت مست بابا کے مزار کے احاطے میں محترم اکوڑ خان بانیٔ ریاست خٹک کی قبر بھی ہے[3]۔

---

1 پشاور یونیورستی جرنل ۹۶ — ۱۹۹۵ء جلد ۸ شماره نمبر ۸

۲ پشتون کون ص ۳۱۳ ، ۳۱۴

۳ شیخ رحمکار ص ۴۲ و ۴۴

# د خټکو نقل مکانی

---

تاریخ مرصع لیکی :-

اول سکونت د خټک په غرهٔ د شوال وو - چې وطن د وزیر دے له هغه نه ئې نقل و بنون ته وکړو - له هونی او منګلی سره وسېدهٔ - هرګاه چې اولس د هونی او منګلی له عداوته د شیتک او د کیوی اخراج شهٔ - هندوستان ته لاړل - خټک د شیتک سره سکونت کاوهٔ - واله د سدراوڼ د خټک په تصرف وه - پس له هغه په سبب د عداوت په لور د لواغره او د جونو غرهٔ او تیری او کربوغې او شیشم او ښوترې او لاچی او شکر درې لره راغے - تر نیلاب پورې ملک ئې تر ځان لاندې کړو -------- چنجو هم له کربوغې کوچ وکړو - په شیخ تنګی ئې واړول - رفته رفته انوخېل دلته راغلل - نقل دے چې کوهاټ تر ریسی پورې دا ملک د ورکزی وو - بنګښ پرې دپاسه

راغے ـ د ورک زی سره ئې جنګونه وکړهٔ ـ د خټک هم د ورکزی سره ازردګی وه ـ رفاقت ئې د بنګښ وکړو ـ تر کوهاټ پورې تر دا ملک ئې ورک زی پاسؤل ـ بنګش ونیوؤ ـ ریسی ، پټیاله ، زیره تر تورخپره پورې دا خټک ونیوؤ ـ په کربوغه بټیه خېل مېشتهٔ وو ـ له کربوغې نه[1] ملک اکو د عزیزانو نه ازرده شهٔ ـ و خوړې ته راغے ـ په خوړه باندې ماندوری مېشته وو ـ ملک اکو مېشته په ګواز دره وکړه ـ بیا ملک[2] جانی چې په هغه وخت سردار د بټیه خېلو وو ـ عزیزانو پرې ملامت وکړو ـ چې ملک اکو دې په ناحق ازرده کړو ـ بویه پخلا ئې کړې ـ دے پسې راغے ـ ولې ملک اکو ورسره نهٔ تلو ــــــــــــــ ص ۲۶۴ ـ

خټک چې د کوهاټ په علاقه اباد شول نو هغوئ د کوهاټ شمالمشرق پلؤ وادی ته هم راواؤړېدل ـ او د زیره او وادی خوړه

---

[1] تاریخ مرصع په ړومبی ځل نهٔ صرف دا چې ملک چنجو د درویش محمد په نوم یاد کړی ـ بلکه هغهٔ ته د اکوړ نوم هم بې معنٰی او سپک بنکاره شی ـ او د اکوړ نوم په اکو ظاهر کړی ـ

[2] د میان محمد بادشاه د کتاب بدرجهان (قلمی ) ص ۱۰۲ په حواله د سید یاسین بابا څلور زامن وو ـ سید آدم صاحب ، سید بهاؤالدین ، سید سرورالدین او جان خان صاحب رحمة الله علیه وو ـ چې په جانی بابا مشهور وو ـ

نیلاب په علاقه هم قابض شول ـ د کوه چراټ او کوه نیلاب تر مېنځ د خوړه نیلاب وادی اوږدوالے شل میله او پلنوالے شپږ میله دے ـ دغلته د یو غر نوم نیلاب غاښے دے ـ چې ۲۹۷۴ فټه اوچتوالے لری او د زیړه او خوړه نیلاب تر مېنځ حد فاصل دے ـ

مخفی نہ رہے ۔ کہ زمانہ سابق میں قوم خٹک دیار شوال مضاف کوہ سلیمان میں آباد تھا ۔ عرصہ تخمیناً چھ سو سال کا منقضی ہوتا ہے ۔ کہ وہاں سے بصورت خانہ کوچ بنوں میں آئے ۔ اور بنوں سے بحالت عناد و فساد قوم بنوچی اس کوہ میں جو فی الحال بنام کوہ خٹک واقعہ ہے ۔ اور وہ اکثر بے آباد اور کچھ قوم دلازاک کے قبضہ میں تھا بلا مقابلہ کسی قوم کے آکر آباد ہوتے چلے گئے ۔ اور علاقہ ہائے ذیل کربوغہ و ٹیری و چوترہ ولاچی و شکردرہ پر تا نیلاب قبضہ کرلیا ۔ اسی عہد میں اس جگہ اورک زیوں کی قوم بنگش سے کہ وہ بھی تازہ وارد تھے ۔ لڑائیاں ہو رہی تھی ۔ خٹکوں نے قوم بنگش کی اعانت کر کے قوم اورک زئی کو کہ جن سے انکی بھی بدسلوکی تھی بے دخل کر کے علاقہ کوہاٹ پر قوم بنگش کا قبضہ کر دیا ۔ اور اپنا قبضہ بھی کچھ زیادہ بڑھا لیا ۔ یعنی ریسی و پٹیالہ زیڑہ و تورہ چرہ پر متصرف ہو گئے ۔ اور حد فاصل مابین اپنے اور قوم بنگش کے کوہ خٹک واقع حد گداخیل ولاچی مقرر کرلیا ۔ اور بعد اسکے جوں جوں خٹک مترقی ہوتے چلے گئے ۔ توں توں اپنے قبضہ کو ترقی دیتے چلے گئے ۔ حتیٰ کہ یوسف زیوں سے لڑ کر ان دیہات کو جواب شاخ بولاق کے نام سے بنام تپہ بلاقنامہ مشہور ہیں ۔ بزور شمشیر حاصل کیا ۔ اور تپہ بائی زئی مضاف یوسف زی میں بھی بہت سے دیہات پر تصرف کرلیا ۔ اور فی الحال علاقہ مقبوضہ خٹک سرحد شمالی دیہات تپہ ,,بلاقنامہ،، سے حد شمالی کالا باغ و پرگنہ عیسٰی خیل و مروت و علاقہ مقبوضہ قوم وزیری ساکن ضلع بنوں کی حد تک دریائے اٹک کے غربی کنارہ پر ایک ٹیڑھی سے صورت سے سو میل سے کچھ زیادہ طول میں واقعہ ہے اور حد غربی قوم افریدی و بنگش وغیرہ سے ملتی ہے ۔ جس کا عرض اوسط چالیس میل سے کثرے زیادہ ہوگا ۔ (تاریخ پشاور ص ۳۷۶)

بناغلے پریشان خټک لیکی :-

اکوڑ خان درویش محمد خان عرف چنجو کا بیٹا تھا۔ اس نے کہاں سے ہجرت کی۔ اس بارے میں مؤرخین اکثر دہوکا کھا گئے ہیں۔ انہوں نے یہ مقام کربوغہ بتایا ہے۔ اس غلطی کا باعث میرے خیال میں موضع کربوغہ کی وہ شہرت بنی۔ جو کسی زمانے میں سادات کے ایک مشہور گھرانے کا مسکن رہنے کی وجہ سے اسے نصیب ہوئی۔ یہ گھرانہ شیخ رحمکار کستیر گل کا کاصاحب زیڑی بابا کے آباؤ اجداد کا تھا۔ آستانہ داروں کے اس گھرانے نے جب کربوغہ سے موجودہ زیارت کا کاصاحب کے مقام کو ہجرت کی۔ تو کربوغہ کا نام بھی پشاور تک پہنچا۔ اور بعد میں پشاور کے رہنے والے مؤرخین نے ہر نامی گرامی ہجرت کرنے والے کو کربوغہ سے باندھ لیا۔ (پشتون کون ص ۳۱۴ )

ښاغلے پرېشان خټک د افضل خان د تاریخ مرصع د ص ۲۲۴ دا بیان غلط گڼي ـ چې ملک چنجو د کربوغه نه را روان شو ـ شېخ تنگی ته راغلو ـ او بیا انړ خېل ته راغلو ـ د هغوئ په نزد د تاریخ مرصع د ص ۲۲۵ دا بیان هم غلط دے ـ چې ملک اکو د خپل خپلوانو نه خفه شو ـ او خوړه ته راغلو ـ خوړه کښې مندوری اباد وو ـ نو په دې وجه ملک اکو په گواز دره اباد شو ـ وغېره ـ د پرېشان صیب خیال دے چې هر کله د ملک اکو پلار د کربوغې نه ړومبے تللے وو ـ نو ضروری ده چې خپل اٌل اولاد څخه به تللے وی ـ داسې حالت کښې ملک اکو په کربوغه کښې څنگه یوازې پاتې شو ـ چې وروستو د خپلو عزیزانو نه خفه شو ـ او هغه ځائے نه راروان شو ـ د دوئ د وېنا مطابق تاریخ مرصع د اصلی واقعات د قلمبندی په وخت د شش و پنج ښکار شوے دے ـ

( پشتون کون ص ۳۲۴ )

میرا مقصد کربوغہ اور سوترہ کے تقابل سے تھا۔ اور تاریخ مرصع میں افضل خان کی ان تحریروں کے تجزیے سے تھا۔ جن کو بنیاد ٹھرا کر آئندہ کے مؤرخین نے اکوڑ خان کے کربوغہ سے خوڑہ روانگی کو سند مانا ہے۔ اور یہ قبول کیا ہے۔ کہ وہ کربوغہ کا باشندہ تھا[1]۔

د پریشان خټک د بیان نه ظاهرېږی - چې هغوئ ( د تاریخ ضلع پشاور په حواله ) د اکوړ خان راتګ د خوترې نه ګڼی او د افضل خان د تاریخ مرصع دې بیان څخه اتفاق نهٔ لری - چې ګوندې اکوړ خان د کربوغې نه د خوړه نیلاب علاقې ته راغلے وی

لہذا ذہن کو یہ بات اپیل کرتی ہے۔ کہ اکوڑ خان کا تعلق یقیناً بارک خٹک کے ذیلی شاخ اکوڑ خیل سے رہا ہوگا۔ ملک اکو اور کربوغہ سے متعلق یہ قیاس ضرور کیا جا سکتا ہے۔ کہ وہ سوترہ سے پہلے کربوغہ گیا ہوگا۔ جہاں اس کے عزیز بارک خٹک اباد تھے[2]۔

د تاریخ مرصع بیان او د تاریخ ضلع پشاور په بیانات کښې تضاد دے - بناغلے اقبال نسیم خټک د تاریخ مرصع بیان څخه او بناغلے پریشان خټک د تاریخ ضلع پشاور بیان څخه اتفاق لری - حقائق څهٔ دی - ددې درستګی او ددې دواړو تواریخی کتابونو فرضیات او قیاسیات په حقیقت بدلؤل لازمی دی - چې زمونږ د خوشحالیات په موضوعات د تحریرات اساس دی -

دغسې د تاریخ مرصع دا بیان چې اکوړ خان د خپل

---

(۱) پشتون کون ، پریشان خټک ص ۳۲۶

(۲) ایضاً ص ۳۲۳

عزیزانو نه د خفګان او د تاریخ ضلع پشاور دا بیان چې د افلاس په وجه د نیلاب خوړه علاقې ته د رهزنۍ او کاروان لوټلو په غرض راغلے وو ـ تصحیح غواړی ـ او لکه چې دغه خبره د پرېشان خټک صېب دې تحریر نه هم جوتېږی ـ

تاریخ مرصع میں ہجرت کی وجہ عزیزوں سے آزردگی اور تاریخ ضلع پشاور میں افلاس لکھا گیا ہے۔۔۔۔ میں نے بار بار واضح کیا کہ بہتر زندگی کی تلاش میں کوچ کرنا اس زمانے کا عام رواج تھا۔۔۔۔۔۔۔ اکوڑ خان خوڑہ پر مستقل رہائش کی نیت سے نہیں۔مہم جوئی کی غرض سے آیا تھا۔۔۔۔۔۔۔اکوڑ خان پہلے ان جوگیوں کو دعوت اسلام دیا کرتا تھا۔اگر دعوت رد کی جاتی تو انہیں قتل کر دیا جاتا تھا۔ہم اکوڑ خان کی اس حرکت کی تعریف نہیں کر سکتے (۱)۔

خوشحال خان د اشعارو په ژبه خپل حسب نسب په دې شکل بنائ :-

زۀ خوشحال د شهباز خان یم

چې تورزن یم کان په کان

شهباز خان د یحیٰی خان دے

چې بل نۀ وو هسې ځوان

یحیٰی خان د اکوړی وو

چې په توره شو سلطان

---

(۱) پشتون کون ص ۳۲۷ ، ۳۲۸

هم په توره مړنے وو
تیر انداز وو شخ کمان
چې غلیم به ئې پیدا شو
زر ئې ځائے وو ګورستان
هم ئې تېغ وو هم ئې دېګ وو
هم ئې خُلق وو هم احسان
په هغه ستورى پیدا وو
چې پرې زېږى بادشاهان
لا پیدا په جهان نهٔ وو
پرې خبر وُو درویشان
د اکبر بادشاه په دور
شو د خپل اولس تور خان
چې له دهٔ سره به ناست وُو
هغه واړه وُو شیران
ګور ته رنګ په وینو لاړل
چې همه وو سرداران
قبیله شوه سره ډېره
اکثر بنهٔ لائق ځوانان
متفق په هره چاره

نوم ناموس په واړو ګران
د هجرت زر دوه ویشت سن وو
چې زۀ راغلم په جهان
هغه کال پوره پنځوس وو
چې شهید شۀ شهباز خان
- - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - -
- - - - - - - - - - - - - - - - - - - - - -
کال زر یو نوی هجرت دے
هم تحویل دے د میزان

بو بل ځائے لیکی :-

بخره ئې د تيغ راکړه په اصل کښې پښتون یم
پلار په نیکۀ نۀ یم بې دولته بې حشمه
پلار مې سُور کفن و ګور ته لاړ نیکونه واړه
ډېر خلق پرې ومړ خون ئې لاړ شو تر عالمه
پلار مې شهباز خان په سخاوت لکه حاتم وو
زړۀ ئې د مزری په توره تېز وو تر رستمه
څو به نیکۀ ستایم یحیٰی خان جنت ئې ځائے شه
روغ لکه یوسف وو درست تر سره تر قدمه

بل نیکۀ زما ملک اکوړ چې په خټک کښې
دۀ راوړه دا بخره د لویې مقدمه
دېرش[۱] کالونه وشول چې مې پلار دے شهید شوے
مړ کړو یوسف زیو ما هم اور کړۀ باندې سمه

-----------------------------------

-----------------------------------

ځائے ئې ملک پور دے چې ئې سرائے بولی وګړے
قام اولس مې پروت دے تربکنی په غرۀ په سمه

یا

اکوړے یحیٰ[۱] شهباز واړه سرۀ زر وو
په خپل دور واړو بنۀ تېر کړۀ خپل وار
اکوړے یحیٰ[۱] شهباز واړه زمری وو
زۀ هم نۀ یم د ګیدړو په قطار

دغسې یو بل ځائے لیکی :-

له خپله بخته و چاته زار کرم
زر مې اغیار شی چې زۀ ئې یار کرم

نور مې توبه ده کۀ اکوړے راشی
نۀ به ئې یار کړم نۀ به ئې پلار کړم

## تاریخ مرصع مخکښې لیکی :-

نقل دے چې (اکوړ) له کربوغې نه راغے وسونیالې ته - یوه جماعه به ورسره وه - همیشه به ئې تاخت و باخت کوؤ - په هغه اوان دور د اکبر بادشاه او د مرزا حکیم وو - اکبر په هندوستان کښې وو - د کابل صوبه ئې مرزا حکیم چې د اکبر ناسکه ورور وو - سپارلې وه - شاه بېګ چې د مرزا حکیم نوکر وو د مرزا له لوریه په پېښور کښې وو - چې مرزا حکیم مړ شو - کابل اکبر ونیوو - هغه شاه بېګ خان کور شو - بیا خان دوران[1] د کابل صوبه دار شو - وائ چې د اکبر بادشاه په وخت د هندوانو جوګیانو ډېر قدر وو - ملک اکوړی په سبب د غېرت د مسلمانۍ ډېر جوګیان وژلی وو - چې اکبر بادشاه راغے - دا خبره مشهوره وه - اکبر بادشاه ځینې پوښتنه وکړه - چې څو جوګیان دې وژلی‌دی .- دۀ په عرض ورسول - چې نور مې شمېرلی نۀ دی - یوه مندره د غوړو چې مې ئې په مټ کښې ساتلې

---

[1] تاریخ مرصع شاه بېګ خان ارغون او خان دوران دوه جدا حاکمان بنائ - حال دادے چې شاه بېګ خان د مرزا حکیم د وفات نه پس اکبر بادشاه د خپل اړخه صوبیدار د کابل نامزد کړو او د جهانګیر په زمانه د خان دوران په اعزاز مشرف شۀ - ( ماثرالامراء، جلد دوم ص ۶۴۲ )

وه ـ دوه لویې متبونه ځینې ډک شوی دی ـ ارشاد د کلمې به مې ورته ورکړو ـ کهٔ مسلمان به شو ـ امان به مې ورکړو ـ او کهٔ نه مړ به مې کړو ---------- هر ګاه چې اکبر بادشاه په تعاقب د مرزا حکیم راغے ـ هله له قلعه د اټک بنارس بناء شوې نهٔ وه و نیلاب ته راغے ـ په خصمانه د لارې زمینداران ئې طلب کړل ـ عبدالرحمٰن خورم میری خېل او بعضې ډنګر زیو نوم د ملک اکو ورته یاد کړو ـ چې دهٔ خپل ځان نامدار کړے وو ـ حسب الحکم د اکبر بادشاه ملک اکو ورته راغے ـ ملازمت ئې د اکبر بادشاه وکړو ـ دا ملک دهٔ ته مرحمت شهٔ ـ له خېر اباده تر نوښاره پورې ------ ص ۲۴۶ تا ۲۶۵ ـ

**وضاحت** :-د همایون د وفات ۹۶۳هـ (بمطابق۲۸جنوری ۱۵۵۵ء) نه پس جلال الدین محمد اکبر د هندوستان او د هغهٔ ناسکه ورور مرزا محمد حکیم د کابل و پېښور بادشاهان شول ـ ۹۸۹هـ ( بمطابق ۱۵ فروری ۱۵۸۱ء ) مرزا محمد حکیم لاهور محاصره او قبضه کړو ـ خو اکبر اعظم چې دې واقعات نه خبر شو ـ نو د فتح پور سکری نه د مرزا محمد حکیم خلاف را روان شو ـ مرزا حکیم د لاهور قبضه پرېښوده ـ او په تېښته ئې ځان کابل ته را ورسوو ـ اکبر اعظم د مرزا حکیم په تعاقب جون ۱۵۸۱ء کښې دریائے سندھ ته را ورسېدو او دغه ځائے نه د پېښور په لار کابل ته په۹ اګست ۱۵۸۱ء

ورسېدو او کابل ئې قبضه کړو ـ هغهٔ دغه زمانه انجنئیر محمد قاسم ته حکم وکړو ـ چې د دریائے سندھ په شرقی غاړه یوه قلعه تعمیر کړی او دغلته د کیشتو پل وتړی ـ د کشتو پل په دریائے سندھ محض د ژمی په موسم وو ـ چې اوبهٔ به کمې شوې ـ خو د ګرمی په موسم به په دریائے سندھ کښې دومره زیاتې اوبهٔ شوې ـ چې دغه پل به ئې لاهو کړو ـ دا سلسله د انګرېزانو تر دور قائم وه ـ عن چې هغوئ د خیر اباد جنوباً د یو مستقل پل جوړولو بندوبست وکړو ـ

د " دربار اکبری " په حواله محمد قاسم د جړی باران او سیلاب په سبب د کیشتو دغه پل جوړولو کښې کامیاب نهٔ شو ـ او ټول لښکر د کیشتو په ذریعه اټک نه راپورې وتو ـ مان سنګھ ته د پېښور د قبضې حکم وشو : ـ

,, در ۹۸۹ھ/۱۵۸۱ء که جلال الدین اکبر به پشاور آمد ـ شادت خان حاکم این جا را گشت و پشاور فتح کرد به شاه ڈنڈ آمد ـ قریب بالا حصار پشاور اقامت اختیار کردند ـ و در چراگاه شالی پشاور مویشی را چرنده و در همیں سال قلعه اٹک بحکم اکبر بادشاه بناء کرده شد ،،

,, د اکبر عسکری قوت دریائے سندھ ته چې راورسېدو ـ نو د هغهٔ امیرانو سردارانو ته دا ځائے یو نوې دنیا وه ـ د سرزمین حالت نوے ـ ځلور واړه اړخ غرونه ، هر قدم د ځان خطره ، د ځنګل ځناور نوی ، لباس، خبرې او اواز نوے ـ هر منزل د بل نه





سخت ـ په دې اساس هندی لښکر په مخکښې تګ راضی نهٔ وو ـ
خو د اکبر هڅې او ضد دوئ په مخکښې تګ مجبور کړل ،،

( دربار اکبری ، محمد حسېن ازاد ص ۵۴۲)

۲) د ۱۵۸۱ء او ۱۵۸۵ء تر مېنځ داسې هېڅ واقعات د تاريخ په اوراق نشته ـ چې ګوندې د غوری قبائل او يوسف زی تر مېنځ د تلخئ او دشمنئ باعث وی ـ دا علاقه دغه دوران د مرزا حکيم تحت وه ـ او مرزا حکيم به چرې هم د اکبری فوځ مداخلت په خپله علاقه برداشت کړے نهٔ وی ـ او نهٔ د غوری قبائل نه د اکبر لښکر داسې په آسانه په يو متبادل لار پورې را پورې وتے شو ـ

مرزا محمد حکيم په ۹۹۳هـ ( بمطابق ۳۰ جولائ ۱۵۸۵ء )

۱ د زيات شراب خورئ په وجه د يو دېرش کالو په عمر کښې وفات شو ـ اکبر چې د مرزا حکيم د مرګ نه خبر شو ـ نو د کابل په لور يو ځل بيا را روان شو ـ چې د کابل تخت مستقل طور قبضه کړی ـ خو هغه خپل ځانی ددې قابل نهٔ شو ـ چې دريائے سندهـ نه د پښتنو د بغاوت په سبب را پورې وځی ـ حېرانتيا ده چې هر کله هغهٔ دا علاقه قبضه نکړه ـ نو يو غېر مفتوحه علاقه ئې ځنګه اکوړ خان ته حواله کړه ـ

تاريخ ضلع پشاور ليکی چې :-

,, روایت ہے۔ کہ آوان سلطنت چغتائی میں بہ زمانہ جلال الدین محمد اکبر بادشاہ ہندوستان ملک اکوڑہ و حسن نام برادران حقیقی پسر چنجو قوم خٹک موضع چوترہ علاقہ کوہاٹ سے بوجہ افلاس اس جگہ آئے۔ اور مساکن متشتت و دشوار گذار میں بود و باش کر کے پیشہ رہزنی ۱ اشخاص تجار وغیرہ مردمان ساکنین شاہراہ کابل اختیار کیا۔ رفتہ رفتہ جب یہ خبر بادشاہ تک پہنچی۔ تو بفرمان شاہی بہ تعدیات چندکس شاطران ملک اکوڑ گرفتار ہو کر حضور میں طلب ہوا ۔ اور مورد سیاست شہنشاہی و گوشمالی کماینبغی ہو کر آئیندہ کے واسطے امر ناجائز سے ممنوع کیا گیا۔ اس حالت میں نامبردہ نے دست بستہ ہو کر گذارش کیا کہ بہ جز اس پیشہ کے کوئی صورت معاش مایحتاج کی نہیں رکھتا ہوں۔ کچھ وجہ کفاف کی معین فرمائی جاوے۔ تب بادشاہ نے یہ زمین ایک پاؤ دفتر کے منجملہ ۱۶ اثار دفتر پتھر خٹک سے بلا عطائے سند اس کو دے دی۔ بعد حصول ملکیت ملک مذکورہ نے مقام کوٹلی پر جو ایک چھوٹا سا ٹکڑا بنجر کا بصورت ڈھیری کے دریائے لنڈہ کی جنوبی کنارہ پر واقع ہے۔ ایک باڑہ یعنی احاطہ جس کو بہ زبان ملک سرائے نام کرتے ہیں۔ بگرد آوری خار ہائے چوب کنار دشتی وغیرہ کے بنایا۔ تو نام اس سرائے کا بایزاد نام بانی سرائے اکوڑ مشہور ہے۔ کچھ عرصہ کے بعد مورث نے اس جگہ کو جو بہ باعث اتصال دریا معرض خوف میں تھے۔ اور نہ اس کی خویش وقبیلہ کے لوگ اس میں سما سکتے تھے۔ چھوڑ کر تخمیناً ہزار قدم کے فاصلہ پر بجائے ابادی موجودہ حال کے ایک سرا بہ چنائے سنگ وخلاب بطور چاردیواری کے بنائی۔ اور نام اس کا صرف سرا مشہور ہوا۔ اور بادشاہ وقت کی طرف سے واسطے رفاہ مسافرین کے بہٹیارہ لوگ و نان بائی و دوکانداران کا انتظام فرمایا گیا۔ اور روز بروز رونق بڑھتی گئی۔ محصول مکان سرائے کا بھی بادشاہ نے ملک اکوڑ کو معاف کیا۔ تب سے علاقہ قرب و جوار میں نام لبگا کا بہ کثرت استعمال محض مورث کے نام پر اکوڑ نامزد ہوا ہے------ جب ایام زیست افضل خان ولد یحییٰ خان مورث میں جو اپنے وقت کا بڑا نام اور شخص ہوا ہے۔ اور نیز جوں جوں ابادی قصبہ رونق یاب ہوتی چلی گئی۔ توں توں مختلف اقوام کے لوگ گرد و نواح سے مثل اعوان وخٹک و

---

۱ پریشان خٹک لیکی:- اول تو اکوڑ خان کا اصل مقام چوترہ بتایا گیا ہے۔ جو صحیح بھی ہے۔ اکوڑ خان کو رہزن اور ڈاکو بتایا گیا ہے

پٹھان ودلازاک وسید وپراچہ وملاح وبہٹیارہ وموچی وکہٹیک وحجام وارروڑہ وملیار وباغبان ومغل وترکھان وکنجد گروکشمیری ودرانی وغیرہ بھی آکر بہ انواع مختلفہ اصل مورث کی اولاد سے محصل املاک ہوتے گئے۔ چنانچہ اس وقت یہ جملہ اقوام اس قصبہ میں اباد ومالک ہیں۔

۲) ,, ریاست تپہ خٹک قدیم سے اکوڑہ مورث کی اولاد کے قبضہ میں رہی ہے۔ چنانچہ پہلے افضل خان پھر شہباز خان پھر اشرف خان اور پھر محمد افضل خان اور پھر سعد اللہ خان اور پھر سرفراز خان اور پھر اصف خان ونوراللہ خان اور پھر فیروز خان ولد نوراللہ خان اور پھر عباس خان اور پھر امیر خان اپنے اپنے وقت کے رئیس تھے۔ بعدش جعفر خان بڑا نام آور ہوا۔ جواب علاقہ نیلاب ضلع کوہاٹ میں جاگیردار ہے--- -- اگرچہ اپنے اپنے عہد میں ہر ایک رئیس اس خاندان کا بڑا نام آور ہوتا رہا ہے۔ مگر افضل خان اور خوشحال خان اور اشرف خان اور سعد اللہ خان اور سردار سرفراز خان تو بڑے ہی ذی وقعت ووقار ہوئے ہیں۔ چنانچہ سردار سرفراز خان عہد سلطنت تیمور شاہ درانی میں سوائے علاقہ خالصہ وخٹک کے تا دریائے جہلم علاقہ دار تھا--------- کندے اکوڑخیل جو ملک اکوڑ کی اولاد کے قبضہ ملکیت میں ہے۔ کندے حسن خیل جو حسن برادر اکوڑ کی اولاد کی ملکیت ہے۔ کندے متفرق جس میں بعد حصول ملکیت مورثان ہر دو کندی متذکرہ الصدر محصل ملکیت ہوئی۔ باقی اقوام مختلف کے لوگ مختلف اوقات میں آکر مختلف صورتوں سے ملکیت پیدا کرتے رہے ہیں۔ قائم ہے------------ دوکاندار لوگ سب ازقوم اروڑہ ہیں۔ (تاریخ ضلع پشاور، ۳۰۶ تا ۳۱۳)

## گوپال داس یو بل خائے لیکی :-

اولاد لقمان سے ملک درویش محمد ملقب بہ چینجو شاخ حسن خیل زمانہ اکبر بادشاہ میں بڑا نامی دھاڑوی تھا۔ پھر اس کا بیٹا ملک اکوڑ خان اس سے بھی سبقت لے گیا۔ لاہور سے پشاور کا راستہ دریائے اٹک سے اس طرف گویا ارامگاہ مسافرین تھا۔ شاہ وقت نے بہ استمالت وملاطفت ملک اکوڑ خان کو حضور میں بلا کے اور اُس کو سرغنہ زمینداران اس علاقہ کا کر کے خدمت حفاظت شاہراہ اس کے سپرد کی۔ جس کے عوض خیر اباد سے تا نوشہرہ اور نبئی سے موسودرہ تک تمام ملک خٹک کا اس کو جاگیر دے دیا۔ اور محصول میر بحری گذرا

اکوڑہ بھی اس کو معاف کیا گیا۔ ملک اکوڑ دیہات شاخ بلاق سے چہارم رسد پیداوار اراضی زرعی بارانی سے اور دو روپیہ نقدی قلبہ اور پندرہ روپیہ چکوتہ فی چاہ سے وصول کرنے لگا۔ اور جس رعایا کو بلا گت خود کنواں لگوا دیتا تھا۔ تو پچیس روپیہ بالمقطع ٹھیکہ سالانہ لیتا تھا۔ اور جو لوگ اس کے قریبی یک جدی خیر آباد سے نوشہرہ تک شاخ تری خیل کے آباد تھے۔ بہ لحاظ قرابت پیداوار زرعی ہر قسم سے رعایت مناسب کچھ غلہ اور کسی قدر نقد مالیہ بطور لوگ شماری و مال شماری ان سے وصول کرتا تھا۔ اور نمک سبزیاں جٹہ سے فی نوراس نرگاؤ قوم خٹک پر ایک روپیہ اور دیگر اقوام کے فی سات راس سے ایک روپیہ محصول لیتا تھا۔ اسی طرح شتر وغیرہ جانوروں کے بوجھ نمک کا محصول بھی مختلف طور سے مقرر تھا ---------- اکوڑ خان نے برلب راستہ شاہی بنام خود گاؤں اباد کیا۔ جو اب تک اس کے نام پر مشہور ہے۔ یہ شخص تعصب مذہبی سے ہندو جوگیوں کا بہت دشمن تھا۔ جب بعد اکتالیس سال حکومت اور ملازمت شاہی کی عداوت برادری کے باعث حد موضع پیر سباک میں شاخ بلاق کے کئی لوگوں کے ہاتھ سے مارا گیا۔ اس کے یحیٰی خان پسرش رئیس خٹک مقرر کیا گیا۔ اس نے افغانان شاخ مندڑ و یوسف زئی سے عداوت کا سلسلہ جاری کر کے ان سے کئی جنگ کئے۔ مگر جب اخرالامر اکسٹھ سال حکومت کر کے معہ عالم خان بیٹے کے یوسف زیوں کے ہاتھ سے مقتول ہوا۔ تب دوسرا بیٹا اس کا شہباز خان نامی بجائے اس کے حاکم خٹک ہوا۔ اگرچہ یہ شخص اپنے وقت کا مدبر آدمی خیال کیا جاتا تھا۔ مگر اقتضائے انا نیب نے اس کے طفیل بھی بہت سے لڑائیوں میں بے شمار خٹکوں اور یوسف زیوں کے خون بہائے۔ اخر جب وہ بھی بہ حالت تعاقب ڈاکوؤں کے پتھر لگنے سے سخت چوٹ کھا کر اکتیس سالہ حکومت کے پیچھے تپہ کمال زئی میں مارا گیا۔ تو شاہ جہان بادشاہ نے خوشحال خان خلفش کو رئیس خٹک کر دیا[1]۔

## پښتانهٔ د تاریخ په رڼا کښې لیکي :-

د ختکو د ریاست او خانی بانی ملک اکو وو - چې د درویش محمد عرف چنجو زوی وو - د مهاجرت نه پس د ختکو په قبیله کښې د

---

[1] تاریخ ضلع پشاور ص ۳۷۸

بطی خپلو ځانګه په کربوغه کښې مېشته وه ـ ملک اکو په ځهٔ خبره د خپلو عزیزانو نه خفه شو ـ او خوړې ته راغے ـ په دغه ورځو کښې په خوړه کښې مندوری استوګن وو ـ نو ملک اکو په "ګوز دره" کښې استوګنه اختیار کړه ـ ملک اکو د ځان سره د ځوانانو یوه ډله تیاره کړه ـ او په شاهی سړک به ئې تاخت و باخت کؤلو ـ په هغه زمانه کښې د کابل صوبه د مرزا حکیم په تحویل کښې وه ـ چې د اکبر مېړنے ورور وو ـ په هغه ورځو کښې چې اکبر د مرزا حکیم په تعاقب کښې نیلاؤ ته راغے ـ او د اټک د قلعه د تعمیر اراده ئې وکړه نو د شاهی سړک د حفاظت تابیا ئې هم وکړه ـ د علاقې زمینداران او سپین ږیری ئې را وبلل ـ او ددې سړک د حفاظت ذمه واری ئې پرې واچوله ـ ولې دوئ په اتفاق ددې کار دپاره د ملک اکو نوم پیش کړو ـ چنانچه اکبر بادشاه ملک اکو ته د شاهی سړک د حفاظت کار وسپارلو ـ او ددې خدمت په بدل کښې د بادشاه د لوری نه د خېر اباد نه تر نوښاره او د پبو نه تر موسیٰ درې پورې علاقه په جاګیر کښې ورکړے شوه ـ ځلوزی او سپین خاک هم ددهٔ په جاګیر کښې شامل شول ـ دې جاګیر نه علاوه په شاهی سړک د محصول وصولولو حق هم ورکړے شو ـ او ددې وخت نه د ملک اکو په کورنۍ کښې ریاست قائم شو ـ

ملک اکو یو هوښیار او مدبر سړے وو ـ هغهٔ د شاهی سړک د حفاظت په غرض خپل سړی مقرر کړل ـ او د لنډی سیند په سویلی غاړه ئې مصری باندې ته مخامخ یو کلے اباد کړو ـ چې تر اوسه ددهٔ په نوم په سرائے اکوړه مشهور دے ـ او هغه وخت به ورله ملک پوره هم وئیلے شول[1] ـ

" یحیٰی خان چې د ختکو سردار مقرر شو ـ نو ځینې ختک ئې په مخالفت را پورته شول ـ لښکر ئې وکړو ـ راغلل ـ کوټ د سرائے ئې محاصره کړو ـ په هغه اوان د سرائے کوټ نهٔ وو ـ د سرائے خاربندی ئې کړې وه ـ څو ورځې جنګ وشهٔ ـ اخر حق تعالٰی فتح یحیٰی خان ته ورکړه[2] " ـ

## تاریخ ضلع پشاور د اکوړی د ګذرګاه متعلق لیکی :-

,, قصبۂ اکوڑہ کے پاس ہونے سے بہ این نام موسوم ہے------جس شخص نے تپہ خٹک سے تحصیل یوسف زئی کو جانا ہووے ـ اس کو اس راہ سے عبور کرنا ہوگا ـ کسی سوداگر کا رہگذر نہیں ـ اس جگہ دریا عریض نہیں ـ تیز رو ہے ـ مگر کشتی بے خوف ہے ـ ایک کشتی اور چھ ملاح اس پر موجود ہے ـ ٹھیکہ محصول میر بحری گذر مقرر ہے ـ اس میں سے تین حصہ حق سرکار اور دو حصہ حق ملاحان ہے [۳] ،،

---

1 پښتانهٔ د تاریخ په رڼا کښې ص ۱۳۸۲

2 تاریخ مرصع ص ۲۶۷

۳ تاریخ ضلع پشاور ص ۱۸

.. عہد سکھاں میں واسطے حفاظت راستہ کے سردار بھنا سنگھ سندھانوالیہ نے قلعہ اکوڑہ بنایا تھا۔ اور موضع ہی کے نام پر مشہور ہوا۔ سرکار کی طرف سے یہ قلعہ احمد خان صوبہ دار کو ملا ان کے کہ اس کی زمین پر یہ قلعہ بنوایا گیا تھا۔ اور نیز ایک خیر خواہان سرکار سے وہ گنا جاتا تھا۔ اب وہ یہاں معہ اپنے عیال و اطفال کے رہتا ہے ۱؎ ..

## خوشحال خان لیکی :-

رحمت په اکوړی شه چې ئې ونیوهٔ خائے سرائے
چې بنهٔ فهم ئې اوکړے باور وکړه خائے دے خائے
تور غر ئې د هودی دے تر تیراه پورې سم تللے
نیلاب و لندی دواړه عجب سر اینبے په پائے
پرې سازه لویه لار د هندوستان ده
گذر ئې د اټک دے چې ترې ترس کا شاه گدائے
کهٔ سوات کهٔ اشنغر کهٔ پښبنور دے دا ملکونه
رجوع لری ودهٔ ته فیض وردرومی د هر خائے
پکښې مهشته مې زویه خپلخانه نمسی اولس دے
چې څوک پکښې مهشته دی په امان اوسه د خدائے
آسمان خینې جدا کړو لاس د چا رسی آسمان ته
خوشحال له سرایه نهٔ دے جدا شوے پخپل رائے

## تاریخ مرصع لیکی :-

،، ملک خیرآباد واکوڑہ جاگیر بادشاهی است واز قدیم الایام مامردم را بادشاهان در تنخواه منصب داده اند چنانچه خدمت شاهراه و بندوبست اولس کرده میشود [۱] ،،

د معز الدین خټک " دلیل العلیل " چې د طب په حقله په پښتو نظم ۱۱۷۲هـ / ۱۷۵۹ء کښې د سرفراز خان د خانۍ دوران لیکلے شوے دے ۔ او بیا ئې ۱۲۷۰هـ / ۱۸۵۴ء کښې قلقاء الدین کتابت کړے دے ۔ ددغه کاتب مطابق په دریائے کابل د کیشتو پل په دریم ځل ډیر وروستو انګریز دور کښې جوړ شوے دے ۔

" تم تمام شد کتاب دلیل العلیل من علم طب از دستخط قلقاء الدین بروز سه شنبه از ماه شعبان در دوران حکومت فرنگیان در زمانۂ پل کیشتی ساختن ایشان به گذر نوشهره شروع ------ تمام است همین گذشته ۱۲۷۰هـ / ۱۸۵۴ء "

میان محمد بادشاه د ډیرو کتابونو په حواله د غالب ګل بابا ( وفات ۹۲۱هـ / ۱۵۱۵ء ) د ذکر په ضمن کښې لیکی :-

او بیا ئې د کفارو سره غزا شروع کړه ۔ او د خوست نه د مسلمانانو معتقدو فوج ئې راجمع کړو ۔ او غزا ئې شروع کړه ۔ او د خوست نه تر اباسیند تر غاړې پورې کفار ئې ووهل او ملک ئې ترې خالی کړو ۔ او کوم خټک چې په خوست کښې وسېدل ۔ هغه ئې له هغه ځائے نه را روان کړل ۔ او د خوړې علاقې ته سره د بال بچ

---

[۱] تاریخ مرصع ص ۴۷۲

راغلو ـ او په دغه ځائے کښې ډېره شو ـ چرته چې ئې اوس مزار شريف دے ـ او دغه ځائے ته مروبه وائ ـ او د نظام پور په خوا کښې ده ـ او په دغه وخت کښې ددۀ سره ډېرش زره منجوران يعنی قوم خټک راغلی وو ـ او ددۀ د لنگر خوراک ئې خوړو ـ او لاس په نامه خدمت ته ولاړ وو[1] ـ

د ميان محمد بادشاه د کتاب "بدرجهان" متعلق بهادر شاه ظفر ليکی : ـ

حضرت شیخ رحمکار کا کا صاحب کے جن اجداد کرام کے مختصر حالات میں نے اس کتاب میں لکھے ہیں۔ وہ ایک قلمی مسودے سے اخذ کئے گئے ہیں۔ جو محترم میاں محمد بادشاہ کاکاخیل مرحوم کی ملکیت تھی۔ اور اب سنا ہے۔ کہ میاں صاحب مرحوم کے قلمی مسودات کا وہ ذخیرہ پشتو اکیڈیمی پشاور یونیورسٹی نے حاصل کیا ہے۔ میاں صاحب مرحوم نے اپنی زندگی کا بیشتر حصہ حضرت شیخ رحمکار اور ان کے اجداد کے حالات معلوم کرنے میں صرف کیا تھا۔ اور اس سلسلے میں انھوں نے افغانستان و ہندوستان کے کئی حصوں کے کئی بار سفر کئے تھے۔ اور بلا شبہ اپنے زمانے میں کاکاخیلوں کے سلسلے میں اپنی معلومات کے لحاظ سے ایک زندہ تاریخ تھے ---------- اس قلمی مسودے میں حضرت شیخ رحمکار کا کا صاحب کے اجداد میں سے ہر شخصیت کا حال جس کتاب سے ماخوذ ہے۔ اس کتاب کا نام، مصنف کا نام، نیز باب، صفحہ اور جلد وغیرہ غرض تمام تفصیلات لکھی ہوئی ہیں۔ اور ہر شخصیت کی تاریخ پیدائش و وفات سالوں اور لفظوں میں لکھی ہوئی ہے۔ اور بعض کے ساتھ ایسے اشعار یا مصرعے بھی لکھے ہوئے ہیں۔ جن سے ان کی تاریخ ولادت و تاریخ وفات بحساب ابجد معلوم ہو سکتی ہے۔ اور حضرت رحمکار کے جن اجداد کرام کا دوسرے اولیاء اللہ سے روحانی رابطہ رہا ہے۔ ان کے نام بھی میں نے اسی قلمی مسودے سے اخذ کئے ہیں۔ غرض یہ قلمی مسودہ حضرت رحمکارؒ اور ان کے اجداد کرام کے حالات معلوم کرنے میں نہایت مفید ہے [2] ـ

---

[1] بدرجهان حصه اول ، قلمی نسخه پښتو اکېډيمی پېښور نمبر ٨٣٨

[2] شيخ رحمکار ، ص ٢١ ، ٢٢

## میاں بہادر شاہ ظفر لیکی :-

۹۰۰ھ / ۱۴۹۵ء کے قریب اپنے خاندانی روایات کے مطابق آپ (غالب گل بابا) اپنے چند مریدوں کے ہمراہ کربوغہ سے چل کر دریائے سندھ کے کنارے تک آئے۔ اور علاقہ خوڑہ میں جوان دنوں میں بہت ہی کم اباد بلکہ غیر اباد تھا۔ موضع مروبہ کے قریب جہاں آج کل آپ کا مزار واقع ہے۔ مقیم ہوگئے۔ یہاں جنگل ہی جنگل تھا۔ اور دور دور تک ابادی کا نام ونشان تک نہ تھا[1]۔

غالب بـابـا چې د ارام خپل

مـروبـــه ئې کړه مقام خپل

بناغلے پرېشان خټک د یو داسې قبالې په حواله چې سن تحریر ئې معلوم نۀ دے - اکوړ خان په یو نوی روایتی افسانوی رنګ کښې په دې شکل پېش کوی :-

بادشاہ نے ملک اکوڑ کے پاس ایلچی بھیجا۔ اور اسے اپنے دربار میں طلب کیا۔ اکوڑ خان مقررہ دن اپنے عزیز واقارب کو ساتھ لے کر دربار کی طرف روانہ ہوا۔ گھوڑے، علم، ڈھول سرنا اور بے شمار لوگ اس کے جلوس میں شامل تھے۔ قریب آکر ایسی ترتیب بنائی۔ اور اس شان سے دریا کی طرف بڑھنے لگے۔ کہ جب خیر آباد کے مقام پر جلوس نمودار ہوا۔ ڈھول سرنا کی آواز سن کر دریا کے دوسرے کنارے پر شاہی دربار کے لوگ بھاگ بھاگ کر تماشے کے لئے نکل آئے۔ تو شور کی آوازیں بادشاہ نے بھی سنیں۔ وہ بھی جلوس دیکھنے کے لئے باہر تشریف لے آیا۔ اکوڑ خان کی یہ شان دیکھ کر پکار اٹھا۔ کہ لوگوں نے اس آدمی کو ڈاکو بتا کر غلط بیانی کی ہے۔ یہ شان وشوکت بادشاہوں والی ہے۔ لہٰذا دیکھتے ہی اکبر کے دل میں اس کے لئے عزت پیدا ہوئی۔ جب اکوڑ خان پہنچا۔ تو اس کی اوبھگت امتیازی حیثیت سے کی گئی[2]۔

---

۱ شیخ رحمکار ، ص ۴۲

۲ پشتون کون ، ص ۳۲۹

## بناغلے روشن خان مرحوم لیکی :-

یہ افغان قبیلہ (خٹک) کرلانی کی ایک شاخ ہے۔اور دو ذیلی شاخوں میں تقسیم ہے۔ایک تورمان جس کی دو ذیلی شاخیں ہیں۔تری اور ترکی۔اور دونوں ملکرتری کہلاتے ہیں۔جو خوشحال خان کا قبیلہ ہے۔ دوسرا ابولاق جو ساغری نندرک اور مروزئی کہلاتے ہیں۔پھر ان کے بھی بہت سی ذیلی شاخیں ہیں۔ابتدأ خٹک جنوبی وزیرستان میں اباد تھے۔اور بعد میں علاقہ کوہاٹ اور موسٰی درہ میں جا آباد ہوئے۔شیخ ملی کی تقسیم میں نوشہرہ سے خیرآباد تک کا علاقہ خلیل مہمند اور داؤدزئی کا مشترکہ طور پر چراگاہ کی صورت میں رکھا گیا تھا۔اور ان کی باقبضہ ملکیت تھی۔مغلوں نے ان کے اس علاقہ پر قبضہ کر کے خٹکوں کے حوالہ کیا[۱] ۔

## گوپال داس لیکی :-

اس زمانے میں مردم قوم غوری خیل اولاد ابراہیم غوری بن گند بن خرشبون یعنی بزرگان مردمان اقوام خلیل، مہمند، داؤدزی ۔ پہلے غور اور غزنی میں اور اس کے بعد بہ نواح کابل اور ملک ننگرہار میں مقیم رہے۔پھر ضلع پشاور میں آکر تپہ خلیل و تپہ مہمند و تحصیل داؤدزئی پر قابض و متصرف ہوئے۔اور مردمان قوم خٹک پہلے کوہ شوال میں جو کوہ سلیمان کی ایک دھار ہے۔مقیم تھے۔اور وہاں سے اٹھ کر بہ اتفاق مردمان اقوام منگل ہنی ضلع بنوں مین اور اس جگہ سے چل کر ضلع پشاور میں آئے۔اور تحصیل نوشہرہ میں آکر دیہات آباد کئے [۲] ۔

---

۱ تاریخ حافظ رحمت خانی از پیر معظم شاہ ، ص ٦٠٦

۲ تاریخ ضلع پشاور ص ۴۰۹

## گوپال داس وړاندي ليکي :-

جب مردمان قوم افغان ضلع پشاور میں آکر بہ اختیار کاشتکاری بہ تحصیل مایہ معاش مشغول ہوئے۔ اس زمانہ میں ان کے درمیان میں اراضی منقسم نہیں تھی۔ اور نہ حصص معین تھے۔ جس قدر زمین کسی کی قبضہ میں آگئی۔ اس کا وہ مالک اور کاشتکار تھا۔ اس واسطے بہ حرص زیادہ طلبی بہ ہم دگر فتنہ وفساد برپار کھتے تھے۔ بلکہ نوبت بہ جدال وقتال پہنچتی تھی۔ اور اس زمانہ میں ہہفت اقوام کلان سے جو بفصل گذشتہ مذکور ہوئی۔ چھ قوم کے لوگ اس ضلع میں ساکن وقابض تھے۔ اور قوم خٹک کے لوگ اس ضلع میں وارد نہیں ہوئے تھے۔ چنانچہ جن زمینوں پر اب قابض ہیں۔ وہ بالکل غیر آباد تھی۔ اخر کار خرشبون ابن سڑہ بن کی گیارہویں پشت میں قوم اکازئی سے ایک شخص شیخ ملی نام پیدا ہوا ------------- چونکہ اس زمانہ میں الفاظ پرگنہ و تپہ مشہور نہیں تھے۔ اس واسطے زمین مقبوضہ ہر قوم کا نام مقرر ہوا۔ یعنی ہر شش قطعات مذکور چھ نام سے موسوم ومشہور ہوئے۔ ملک یوسف زی، ملک محمد زئی، ملک گگیانی، ملک داؤدزئی، ملک خلیل، ملک مہمند------------ کہ زمین تپہ خالصہ اس وقت شامل ملک مہمند تھی۔ اوراب یہ قبضہ مردمان اقوام مختلف غیر افغان ہیں۔ اس زمانہ میں مردمان قوم مہمند یعنی اصلی مالکان زمین مذکور کو علی الاکثر غیر آباد تھی۔ چھوڑ کر کوہستان خارج ضلع ہذا میں مقیم ہوئے [۱]۔

اور شیخ ملی کے وقت کے بخروں کی تعداد بتلا نہیں سکتے۔ اور حال تقسیم اندرونی کیفیت ہر تپہ میں مشروح ہے۔ اور بعد تقسیم زمین وحقابہ مردمان موجود سے نوگروہ ذیل اولاد غوری = تین گروہ

چار حصہ = خلیل یک حصہ، داؤدزئی یک حصہ، مہمند = دو حصہ

اولاد خشی = تین گروہ

چار حصہ = یوسف زی یک حصہ، ترکلانی یک حصہ، مندڑ یک حصہ، مکہہ = یک حصہ

اولاد خویشکی = یک گروہ

---

۱ تاریخ ضلع پشاور ، ص ۴۱۰

اولاد محمد زئی = یک گروہ

خٹک = یک گروہ

بنائے۔ اور چونکہ اس وقت بروئے شمار مردوزن و بچہ بلاتمیز بالغ ونابالغ حصہ دیا گیا۔ پس اولاد مہمند بڑا بھاری گروہ تھا۔ جو دو حصہ کا مالک مقرر ہوا۔ اور حصہ اولاد یوسف زی ومندڑ ملا کر دو حصہ کا مالک گروہ یوسف زئی ٹھہرا۔ اور گروہ خویشکی ومحمد زی وخٹک کا تعداد مردم دوسرے گروہ سے مساوی نہیں کیا گیا تھا۔ باقی گروہ کا حصہ اور تعداد مردم ایک دوسرے سے برابر تھا۔ یہ نہیں کہا جا سکتا کہ ہر ایک کی اولاد کا تعداد مساوی تھا۔ بلکہ اس وقت مردم دیگر قوم بھی ہر ایک قوم کے ساتھ شامل کر کے حصہ پورا کیا گیا تھا۔ چنانچہ ہر ایک کے شجرہ نسب سے ظاہر ہوتا ہے۔ کہ دیگر قوم کے لوگ شامل ہر گروہ کے ہوئے ہیں۔ چونکہ بروئے تعداد مردم گروہ خویشکی ومحمد زی وخٹک دوسرے گروہ مردم کے ساتھ مساوی نہ تھے۔ اس لئے بروئے پوچہ اندازی اولاد خویشکی کو جو یہاں موجود تھے۔ وہ ٹکڑا جواب بنام نہاد خویشکی موسوم ہے۔ دیدیا ہے۔ اور اولاد محمد زی کو ہشت نگر، اور مردم قوم خٹک کو بدین باعث کہ وہ دراصل اولاد مورث افغان سے نہ تھے صرف کوہستان ملا۔ پھر عہد بادشاہی سلاطین چغتائی میں اس کی قوم سے جب ایک شخص اکوڑہ بارک کو واسطے حفاظت مسافرین کے جن کو رہزنان سے نہایت رنج پہنچتا تھا۔ مقرر کیا گیا۔ اس نے قصبہ اکوڑہ بنایا۔ اور پھر زمین میدانی بھی اس کی ملکیت میں آئی۔ ورنہ پہلے یہ زمین شاملات مہمند و خلیل و داؤدزئی کے ہوتی تھی[1]۔

دوہم دا خٹک اقوام دی

پہ پردی اولس قیام دی

---

[1] تاریخ ضلع پشاور ص ۴۱۷

قوم خٹک نے ملک مقبوضہ حال پر کہ جہاں سابق میں اکثر بانڈہ جات خلیل ومہمند اس ضلع میں ہوا کرتے تھے۔ اور کہیں کہیں باقی ماندہ دلازاکوں کا بھی قبضہ تھا۔ جب تصرف پایا اور علاقہ کوہاٹ و بنوں میں کربوغہ وٹیری، ولاچی وشکردرہ و ریسی وزیڑہ وپٹیالہ وتوڑہ وچیرہ متعلقہ ان کوہستان پر جو فی الحال اس قوم کی سکونت کے سبب بنام کوہ خٹک مشہور ہے۔ قبضہ کیا۔ اور بعد اس کے وہ دیہات جو اب شاخ بولاق کے نام پر مشہور ہیں۔ یوسف زیوں سے بزور شمشیر حاصل کئے------------اور رفتہ رفتہ اس قوم کے گروہ بھی دو جگہ ہوگئے۔ ایک وہ لوگ ہیں۔ جو اولاد لقمان سے اکوڑہ میں آکر حاکمانہ صورت پر متصرف رہے۔ اور اکثر اسی قبیلہ سے بروئے حصول ترکہ زمین پاکر اس ضلع میں دیہات آباد کرلئے۔ اور دوسرے وہ لوگ ہیں جو اولاد دیگر برادران لقمان (یعنی عثمان، اوتمان اور جدران) سے ملک کوہاٹ وبنوں میں نصف اخیر یعنی ۳۲ سیر دفتر کے مالک ہوئے۔ جس کا تعلق ریاست ٹیری سے رہا[1]۔

## میاں بهادر شاه ظفر ليکی :-

مغل باچا اکبر اعظم چې د خپل ميرنی ورور مرزا حکيم د غوړونو تاؤلو په غرض د يو لښکر سره کابل ته را روان شو ـ نو چې اټک ته راغے ـ نو دغه وخت ئې د موجوده قلعه د تعمير حکم هم وکړو ـ او د علاقې د زميندارانو او ملکانو په مشوره ئې ملک اکوړ خان د شاهی سړک د حفاظت په غرض مقرر کړو ـ او دغه شان دې کورنۍ کښې د خټکو د خانۍ او سردارۍ ابتداء وشوه ـ چې بانی ئې ملک

---

[1] تاریخ ضلع پشاور، ص ۳۳۳ ، ۳۳۴

اکوړ خان دے ـ او دغه وخت نه د خټکو نوم په تاریخ کښې هم وځلېدو ـ ولې چې ددې نه وړاندې نۀ خو د لودیانو د حکومت په زمانه کښې نۀ د بابر او همایون په وخت کښې د خټکو څۀ ذکر په تاریخونو کښې موندلے شی ---------- هم په دې ډول نۀ خو د شیر شاه سوری په امیرانو او منصبدارانو کښې د خټکو نوم ښکاری او نۀ د اسلام شاه په امیرانو او منصبدارانو کښې ------ ددې وضاحت نه زما مدعا داده چې دا د خټکو خوش بختی وه ـ چې د اکبر له خوا د شاهی سړک د حفاظت ذمه داری ملک اکوړی ته وسپارلے شوه ـ کۀ چرې دا ذمه واری د پښتنو یو بل مشر ته سپارلے شوے وے ـ نو ډېره ممکنه ده چې د خټکو د ذکر نه به د تاریخ پاڼې د انګرېزانو تر راتلو خالی پاتې وے[1] ـ

**وضاحت** :- ظهیرالدین محمد بابر په هند کښې د مغل سلطنت بانی دے ـ چاچې ۱۵۲۶ء کښې د ابراهیم لودی یو لوئے لښکر ته د پانی پت په مېدان کښې شکست ورکړو ـ او د دهلی تخت ئې پښتنو نه قبضه کړو ـ دغه بابر د خپل ژوند ټول واقعات په یو کتابی شکل کښې د " تزک بابری " په نوم قلمبند کړی دی ـ او مونږ په ډېر وضاحت ددغه وخت ځینې پښتنو قبیلو لکه یوسف زی ،

---

۱ " پښتو " خوشحال نمبر ۱۹۸۰ء ص ۱۰۰

مومند ، افریدی ، اورک زی ، بنگش ، دله زاک ، ګګیانی ، محمد زی ، لوهانی ، نیازی ، خلجی او وزیر قبائل یا ځینې شخصیات او علاقو څخه متعارف کوی - او بیا دې نه پس د مغل بادشاهانو د زمانې حالات نهٔ یوازې په سرکاری بلکه په نجی سطع هم د حکومت وخت کارکردګی ، مهمات او واقعات په ښهٔ واضح طور په تحریری شکل کښې زمونږ مخې ته راځی - چې په دغه کښې د ګلبدن بیګم همایون نامه ، د ابو الفضل ائین اکبری او اکبر نامه - د جهانګیر تزک جهانګیری ، د شاه جهان د زمانې بادشاه نامه از عبدالحمید لاهوری او د اورنګ زېب د بادشاهت د اولنی دور د څو کالو حالات و واقعات یعنی عالمګیر نامه او غیر سرکاری کتابونه لکه تاریخ فرشته ، د محمد صالح کنبوه عمل صالح شاه جهان نامه د نعمت الله هروی مخزن افغانی ، د اخون دروېزه تذکرة الابرار و الا شرار ، د علی محمد مخلص حالنامه د محمد ساقی مستعد خان ماثر عالمګیری ، یا رقعات عالمګیری - او بیا وروستو د صمصام الدوله شاه نواز خان " ما ثرالامرا " د خا فی خان " منتخب اللباب " او د سید غلام حسین طباطبائی " سیرة المتاخرین " په خصوصی توګه د ذکر قابل تواریخی کتابونه دی - د اکبر بادشاه د زمانې په اکبر نامه او ائین اکبری کښې او یا دغه نور کتابونو د مغل د حکومت د وخت د ورکوتې نه ورکوتې واقعه هم په دغه کتابونو

کښې درج ده - خو کمال دادے چې د اکوړ خان د ژوند د حالات متعلق دغه کتابونه بېخی خاموش دی - البته تاریخ مرصع ، تاریخ ضلع پشاور حیات افغانی یا صولت افغانی د اکوړ خان د ژوند حالات په یو افسانوی انداز کښې مونږ ته پېش کوی - د ابو الفضل د لاس لیکلی دغه تحریرات کښې د اکوړ خان متعلق ددې دومره اهم واقعات ذکر خو پرېږده چې د هغهٔ نوم قدر هم په نظر نهٔ راځی

د ملک چنجو یا د اکوړ خان د ژوند حالات چې په کوم انداز په تاریخ مرصع کښې ذکر دی - نو د یونان د دیو مالائی یا د الف لیلیٰ د هزار داستان د قیصو په طرز دغه لیکلے داستان یا افسانوی قیصه لوستل خو د وخت تېری یا طبع تسلی دپاره ښهٔ ده ولې د تاریخ هېڅ یو لوستونکے به ددغه واقعات حقیقت څخه اتفاق ونهٔ لری - ځکه چې :-

(۱) خوشحال خان په خپل دیوان کښې د چنجو یا دستارنامه کښې د هغهٔ د شجره نسب ذکر خو کوی - ولې په دې کښې د هغهٔ دغه غټ پنډ کتابونه د ملک چنجو د ملک جانی نه د خفگان په وجه خوړه نیلاب ته د هجرت ذکر نهٔ کوی -

(۲) د راجه مان سنگهـ ، جگت سنگهـ ، مادهو سنگهـ ، راجه بهگوان داس، ټوډرمل، شاه بېگ خان ارغون بن ابراهیم بېگ چریک (خان دوران) زېن خان کوکا ، قلیج خان ، لشکر خان ، قلی بېگ

تخته بېګ ، تاش بېګ وغېره غونډې مضبوط مغل جرنېلانو سپه سالارانو او منصبدارانو په موجودګۍ کښې هغهٔ دا دومره زيات هندوان څنکه ووژل ـ چې دوه متونه ئې د موندرو نه ډک شول ـ بل دغه دور داسې حالات هم موجود نهٔ وو چې بلا وجه يا د اسلام د قبوليت ترغيب په زور او شمشير وو ـ بلکې د مسلمان او د هندو تعلق معاندانه نهٔ وو ـ او په پاک و هند کښې د مسلمان او د هندو تر مېنځه تعلقات سم ښهٔ او دوستانه وو ـ او هندو معاشی طور خوشال وو ـ د تاريخ مرصع دغه ټول واقعات محض يو افسانه ښکاری ـ چې اکوړ خان يې د يو پُر افسانوی شخصيت په حېث لوستونکو ته څرګند کړے دے ـ

(۳) جلال الدين محمد اکبر ۱۵۵۶ء کښې د خپل پلار محمد همايون د مرګ نه پس د څوارلس کاله په عمر کښې بادشاه شو ـ د بادشاهت نه اګاهو د هغهٔ د وړوکوالی ټوله زمانه د هغهٔ د ترهٔ کامران د پښتنو لښکر او د خپل پلار محمد همايون د قزلباش لښکر تر مېنځه جنګونه وو ـ په دې وجه د پښتنو نه نفرت او هېڅ يو اهم عهده دوئ ته سپارودل د هغهٔ د تجربې او مزاج خلاف کار وو ـ

(۴) په کومه زمانه چې همايون د شير شاه د لاسه ايران ته فرار شو نو دغلته شاه ايران طهماسپ هغهٔ ته دا خاص مشوره ورکړه چې پښتانهٔ په حېث د يو سوداګر وساتی ـ او د سلطنت په اهم عهدو

راجپوت مقرر وساتی ۔ د شاه ایران دغه خبرې او نصیحت همایون خپل زویې اکبر ته د وصیت په توګه پرېښودې وې ۔ او ددغه نصیحت اثر د اکبر په ذهن دومره زیات ثبت وو ۔ چې هغهٔ هېڅ یو پښتون د سلطنت په اهم مرتبه نهٔ مقرره وو ۔

(۵) په ۳۰ جولائ ۱۵۸۵ء مرزا حکیم په حق ورسېدو ۔ اکبر اعظم د کابل د تخت د قبضې په غرض خپل آوښے راجه مان سنګهـ راولېږلو ۔ او په ۲۲ اګست خپل ځانی هم یو لوئے لښکر څخه د کابل په لور را روان شو ۔ په ٦ دسمبر ۱۵۸۵ء د راولپنډی په مقام مان سنګهـ د مرزا حکیم دوه ورکوټو زامنو شهزاده فراسیاب او شهزاده کېقباد څخه د کابل نه واپس راورسېدو ۔ دواړه شهزادګان ئې د اکبر اعظم حواله کړل ۔ او د کابل نظم و نسق دپاره واپس کابل ته ستون شو ۔ ۱۰ دسمبر ۱۵۸۵ء وو چې غوری قبائل د راجه مان سنګهـ نامزد ګورنر برائے پېښور سید حامد بخاری قتل کړو ۔ او د پېښور قلعه ئې معاصره کړه ۔ او د خیبر لار ئې بنده کړه ۔ اکبر اعظم په ۱۳ دسمبر ۱۵۸۵ء حسن ابدال او په ۲۳ دسمبر ۱۵۸۵ء د دریائے سندهـ مشرقی غاړه اټک ته را ورسېدو ۔ خو دا جرات ئې ونکړے شو چې اټک نه راپورې وخی ۔ او هر کله چې اټک نه اکبر اعظم را پورې وتے نهٔ شو ۔ نو دغلته د کیشتو پل تړل هم ذهن نهٔ منی ۔ ځکه چې دغه زمانه غوری قبائل او یوسف زی لکه د ورونو

متحد وو ـ د دریائے کابل شمالاً یوسف زی او جنوباً غوری قبائل
بنۀ مضبوط قابض وو ـ چې دغه کښې د خوړه نیلاب وادی هم
شامل وه ـ حیرانتیا ده چې اکبراعظم داسې حالات کښې یو غل
ډاکو د دوئ د سرکوبی دپاره ځنګه مقرر کړو ـ چې هغه په خپل
ځان هم دوئ نه خائف او په ویره وو ـ او پورته غاړه ترې را پورې
وتے نۀ شو ـ اکبر اعظم د دریائے سندھ په شرقی غاړه درې میاشتې
او دولس ورځې ایسار وو ـ هغۀ دې دوران زین خان کوکلتاش تحت
یو لوئے لښکر د پښتنو د سر کوبی دپاره مقرر کړو ـ چې د دانش
کول په لار باجوړ کښې داخل شو ـ د یوسف زو کورونه ئې لوټ
تالان او وسوزول ـ بیا د سوات په فتح روان شو ـ چکدره کښې ئې
یوه قلعه تعمیر کړه ـ دې ځائے نه د بنیر د قبضې په غرض روان شو
اکبر اعظم ورته مزید کومک د راجه بیر بل او حکیم ابو الفتح تحت
ور ولیږلو ـ خو په ۱۶ فروری ۱۵۸۶ء د کړاکړ په مقام د اکبر اعظم
یو لوئے لښکر د پښتنو د لاسه شکست وخوړو ـ او نیست و نابود شو

اکبر اعظم په ۳ اپریل ۱۵۸۶ء اټک نه لاهور پلؤ په دومره
سست رفتار او زړۀ ماتی روان شو ـ چې ایله په ۲۷ مئ ۱۵۸۶ء
لاهور ته ورسیدو ـ

د تاریخ حافظ رحمت خان مؤلف روشن خان لیکی :-

،، شجرۂ نسب کاکا صاحب مشہور بہ شیخ جی صاحب از کتب تواریخ معتبرہ بزرگان مثل تصنیف شیخ یحییٰ صاحب المعروف حضرت جی اٹک صاحب کہ مرید جمیل بیگ معروف بہ فقیر بابا بود ،،

،، شیخ جی ۹۸۳ھ/ ۱۵۷۶ء بہ بستم سال جلوس اکبر بادشاہ پیدا شدند، و ۱۰۶۳ھ/۱۶۵۳ء بہ ۲۶ جلوس شاہ جہان وفات شدند ،،

ددې کتاب يو بل غټ وصف داد ے ـ چې په دې کتاب کښې د خوشحال خان خټک او شهباز خان د پېدائش او وفات نه علاوه د يحيٰی خان د وفات کال ۱۰۱۹هـ \ ۱۶۱۱ء د انور خان المعروف اکوړ خان د وفات کال ۹۹۸هـ \ ۱۵۹۰ء او د ملک چنجو د وفات کال ۱۰۱۵هـ \ ۱۶۰۷ء درج دی ـ چې د خوشحاليات په موضوعات تحقيق کونکو دپاره د خوشحالی باعث تحريرات دی ـ

بهادر شاه ظفر کاکا خېل د يو اندازې مطابق د اکوړ خان د وفات کال ۱۰۱۰هـ \ ۱۶۰۲ء او د يحيٰی خان د وفات کال ۱۰۳۵هـ ۱۶۲۶ء ښائ[1] ـ

د افضل خان د تاريخ مرصع په حواله او د خوشحال خان خټک د خپل الفاظ مطابق :-

" چې زما پلار شهباز خان ، نيکهٔ يحيٰی خان او غُر نيکهٔ اکوړ خان د پنځوس کاله په عمر کښې د شهادت جام نوش کړو" ـ نو په دې اساس مونږ وئيلے شو چې :-

---

[1] وګورئ خوشحال خان خټک نمبرپښتو رساله ۱۹۸۰ء. ص ۱۰۳ و ۱۰۵

شاه بېگ ارغون ولد ابراهیم بېگ چریک ترک النسل وو ـ اول د مرزا محمد حکیم ملازم وو ـ اود پېښور حاکم وو ـ د مرزا حکیم د وفات ۱۵۸۵ء نه پس ئې د اکبر اعظم ملازمت اختیار کړو ـ د سید حامد بخاری د قتل نه پس شاه بېگ د سوات او باجوړ په علاقه د یوسف زو خلاف مهم کښې ډېر زیات شهرت بیا موندو ـ د خوشاب په سیمه د جاګیر مالک شو ـ او دوه نیم زری منصبدار شو ـ بیا وروستو د بنګش حکمران شو ـ چې ۱۵۹۴ء پورې ددغه خائے حکمران وو ـ

۱٦۰۷ء کښې جهانګیر بادشاه د پانچ هزاری منصب او د خان دوران په منصب سرفراز کړو ـ

اکبر اعظم ۱۵۸۹ء کښې په دریم ځل د پېښور په لور را روان شو ـ هغه په ۳۱ اګست ۱۵۸۹ء \ ۹۹۷هـ اټک نه خېر اباد پلۀ را پورې وتو ـ دې زمانه د پښتنو په سیمه فضا پر امن وه ـ او په لویه شاهراه قدم په قدم څوکۍ او تانې مقرر وې ـ چې شاهراه د پښتنو مهم جویو نه بچ او محفوظ وساتی ـ هغه په ۸ ستمبر ۱۵۸۹ء پېښور ته راورسېدو ـ دغه زمانه هم شاه بېګ د پېښور حاکم وو ـ

زمونږ د اکثریت لیکوالو دا خیال دے چې ۹۹۵هـ ۱ ۱۵۸۹ء کښې اکبر اعظم د اټک و نوښار تر مېنځ د لوئے لار په حفاظت اکوړ خان جاګیر دار و منصبدار مقرر کړو ـ حقیقت نه برعکس اندازه ده اول دا چې اکبر په لویه عهده د پښتنو د تقرر سخت مخالف وو ـ

بلکه هغۀ په داسې عهده رافضي او راجپوت سرداران مقرره ول - دوېم دا چې اکوړ خان ته کۀ د اکوړی په مقام د میر بحرئ د نظامت عهده ور په غاړه شوې هم وی - نو دا به ۱۵۸۵ء کښې نه بلکې ۱۵۸۹ء کښې ورکړے شوې وی - او هغه هم صرف د کیشتو د پل سازئ او په دې د کاروان نه د راهدارئ محصول تر حد محدود ځکه خو یوسف زی مجبور وو - چې په دغه نوې لار کاروان ولوټی ځکه چې د نوی انتظامات په سبب د هغوئ مشرئ او راهدارئ محصول ته زیان او نقصان رسېدو - داسې حالت کښې لازمی وه چې هغوی په لویه لار د کاروان د لوټلو او شوکولو یو نۀ ختمېدونکې سلسله شروع کړی وی - او غالباً دغه وجه ده چې نادر خان بولاق ( نازو خان توری خېل ) ته د هندوستان نه د یو راغلی "تــور خــان " دغه مشری ناګواره وګرزېده - او هغه ئې ۱۵۹۰ء \ ۹۹۸هـ کښې د یو معمولی جنګ دوران قتل کړو -

یحیٰی خــان د اکوړی وو ، چې په توره شـــو سلطان

د اکبر بادشاه په دور ، شو د خپل اولس تور خان [1]

[1] د دوست محمد خان کامل مطابق تُور خان او د افغانستان د ځینې لیکوالو په نزد = تر خان او لکه چې وړاندې به ذکر راشی - چې دغه ذکر د یحیٰی خان متعلق دے - نۀ چې د اکوړ خان باره کښې دے -

ښکاره ده چې د شاه بېګ د سرایانو د تعمیر نه پس به اکوړی ته د سرایې بندوبست ور پغاړه شوے وی ـ بیا د " ملک " د اعزاز نه پس به دغه ځائے د ملک پوره په نوم شهرت موندلے وی ـ او کهٔ واقعی ملک اکوړ په اصلی نامه انور خان وی ـ او د مجموع البرکات او د میان محمد بادشاه مطابق هندوستان نه راغلے وی ـ نو لازمی ده چې په شکل شبهات به تور وو ـ ځکه چې د اصلی پښتنو رنګ لازمی طور غنم رنګ وی ـ او د تاریخ مرصع په نزد کهٔ دهٔ دلته رهزنی او شوکې ډاکې خپل معمول کړے وی ـ چرته چې ځنګل او ځنګل وو او بیا په تېره تېره دغه سیمه یعنی د خوړه نیلاب وادی چې د شیخ ملی د وېش مطابق د غوری قبائل د مال موېشی د څرند چراګاه وه ـ او غالباً تر دغه وخته خټک دې علاقو ته رارسېدلی هم نهٔ وو ـ او کهٔ د کرک او څوترې علاقې ته راغلی هم وو ـ نو غربت وهلی دغه خلق به د غوری قبائل کارنده او اهلکار وو ـ بیا د ټولو نه لویه خبره دا ده چې محمد اکبر د پښتنو سخت مخالف او کټر دشمن وو ـ او دوئ ته د څهٔ قسم منصب یا مراعات ورکول ئې د پلار د وصیت توهین ګڼهٔ ـ او کهٔ د مالوه سابقه حکمران باز بهادر بن شجاعت خان سوری یا دولت خان لودهی دو هزار منصب دار وو ـ نو دوئ کښې باز بهادر د اکبر بادشاه د قلعه یو بندیوان وو ـ چې د روپ متی په ارمان کښې به ئې د اکبر اعظم مخکښې دلسوزه شعرونه

او سندرې وئېلې ـ او چې دولت خان لودهی ۱۶۰۱ء کښې د احمد نگر په مقام وفات شو ـ نو وې وئېل " امروز شهر خان سُور از عالم رفت " ـ

د انور خان نوم خُنگه اکوړ خان شو ـ آیا داسې خو نهٔ ده ـ چې دهٔ خخه هندوستان نه راغلی هندی شوکمار او ډاکوان ددهٔ د مغل په وفادارۍ ناراض او خفا شول ـ او دے ئې د اکوړ خان په نوم مشهور کړو ـ هندۍ کښې " اکو " په معنٰی د رشوت او"اکوری" په معنٰی د رشوتی مرتشی دے وګورئ :-

(1) A Dictionary of Urdu classical Hindi and English by John, T. Platts. 1983, Crosby Lock Wood & son London page= 67 .

(2) A Dictionary of Hindustani and English Part 1 by Duncan Forbes 1848, Allen and co London page 36

(3) هندی اردو لغت از راجه راجیسور راؤ اصغر ۱۹۹۳ ، مقتدره قومی زبان ص ۶۴

اخون درویزه لیکی :-

" و گفت سگان آن موضع افغانان خطک اند که به دزدی و راهزنی و حرام خوری مشهور اند[۱] "

ترجمه :- او وې وئېل چې ددغه کلی سپی خټک پښتانهٔ دی ـ چې په غلا غولتیا ، شوکمارۍ او حرام خورۍ مشهور دی ـ

[۱] تذکرة الابرار و الاشرار ص ۱۶۰

# انور خان المعروف اکوړ خان

---

عبدالحلیم اثر د اکوړ خان اصلی نوم " احمد " او د هغهٔ د پلار چنجو اصلی نوم شمس الدین محمد درویش ښائ ـ ولې د پښتو رسالې خوشحال خان خټک نمبر مارچ تا مئ ۱۹۸۰ء په ص ۱۰۰ د میان بهادر شاه ظفر په وساطت مونږ د اکوړ خان یو بل اصلی نوم انور خان څخه په ړومبی ځل متعارف کیږو ـ

" د خټکو د ریاست او سرداری بانی ملک اکو یا اکوړ خان چې د ځینې خلقو نه د هغهٔ نوم انور خان هم اوریدلے دے ـ د خپل خیل ملک وو " ـ

د ۱۹۸۰ء نه پس میان بهادر شاه ظفر کاکاخیل ,, قبیلہ خٹک میں ریاست کی ابتداء ،، د عنوان تحت یو وار بیا د اکوړ خان اصلی نوم انور خان مونږ ته پیش کوی ـ هغه لیکی :-

۱۵۸۵ء/ ۹۹۳ھ میں مرزا حکیم والیئے کابل فوت ہوا۔ چنانچہ اکبر نے اس کے مقبوضہ علاقوں کو اپنی سلطنت میں شامل کرنے کی غرض سے ایک بڑی فوج اپنے ایک جرنیل مان سنگھ کی سرکردگی میں کابل روانہ کی۔ اور اس کے بعد خود بھی ایک دوسری فوج کے ہمراہ کابل کی طرف چل پڑا۔ اور ۱۵۸۶ء میں اٹک آیا۔ یہاں اس کے پاس علاقہ پشاور کے گردونواح کے سفید پوشوں اور ملکوں کا ایک جرگہ آیا۔ اور اس سے درخواست کی۔ کہ شاہراہ اعظم کی حفاظت کا انتظام کیا جائے۔ چنانچہ اکبر نے ان ملکوں کے مشورے پر قبیلہ خٹک کے ایک ملک ,,انور خان المعروف بہ اکوڑ خان،، کو شاہراہ کی حفاظت کا کام سونپا۔ اور اس کے بدلے میں اسے سڑک پر محصول راہداری وصول کرنے کا حق دیا۔ اور اٹک سے نوشہرہ تک علاقہ اس کی جاگیر میں دیدیا۔ اس طرح تاریخ میں پہلی بار اس قبیلہ کا ذکر ہونے لگا۔ اور اس وقت سے اس قبیلے میں ریاست کی بنیاد پڑی [1]۔

## تاریخ بدرجهان المعروف تذکرة المشائخ :-

میان محمد بادشاه اولنۍ مؤرخ دے چې مونږ د انور خان المعروف اکوړ خان د ژوند او مشرۍ متعلق بنۀ په تفصیل اګاه کوی ـ د هغوئ ددغه کتاب نوم " تاریخ بدرجهان " دے چې د پښتو اکېډیمۍ په لائبرېرۍ کښې د قلمی نسخو فهرست په ۸۳۸ او ۸۳۹ نمبرونو درج دے ـ ددې کتاب یو غټ خصوصیت دادے ,چې د بې شماره کتابونو حواله جات لرى ـ او عن چې ځینې ځایونو کښې د حوالو صفحات هم بنائ ـ ددې برعکس تاریخ مرصع یا د پښتو نور ډېر کتابونه د ډېر کم کتابونو په حواله جات بناء لرى ـ او هغه

---

[1] شیخ رحمکار راز بہادر شاہ ظفر کاکاخیل، ص ۲۰- ۳۱۹ مطبوعہ ۱۹۸۶ء

خصوصیت پکښې نشته - چې کوم صفت تاریخ بدرجهان لری -
ددغه بې شماره کتابونو نه دلته د څو کتابونو په ذکر اکتفا کوؤ -

حدیقة الحقائق ، مراة جهان نما از مولانا نصیرالدین ،
منتخب التواریخ از شیخ عبدالقادر بدایونی

عمدة التواریخ ، تصریح نامه از امیر خسرو ،
جامع التواریخ از امیر رشید الدین

صولت افغانی ، مجموع البرکات از سید عبدالله شاه بخاری
مراة سکندری از شیخ بدیع الدین

تاریخ فرشته ، مجموع البرکات از شیخ عبدالجبار
جامع المناقبات از شیخ یحیٰی حضرت اتک جی

تاریخ مرصع ، اسرار العارفین از خواجه شمس الدین هروی
تذکرة الاولیاء از خواجه جمال الدین (جمیل بیګ)

مراة الاسرار ، مناقب جمیل بیګ از میان شمس الدین
مراقبات رحمکار از اخون اسمعیل صاحب

مراة الخیال ، جامع مناقبات رحمکار از اخون زوفر
مناقب از میان محمد مبین

مناقب بهادر خان از سلطان صدر الدین ، مناقب بهادر بابا اخون میان داد ، او دغسې د شیخ اخ الدین ، شیخ ګل نور ، عبدالحلیم ګل بابا ، دریا خان چمکنی ، اخوند شهباز لاهوری ، اخون

عمادالدین ، ضیاء الدین په حواله جات ددې کتاب اهمیت د قدر
وړ ګرزی -

" تاریخ بدرجهان " دوه جلده دے - زۀ کۀ دا ووایم چې ددې کتاب ضخامت کۀ د تاریخ مرصع برابر نۀ وی - نو ډېر کم به هم ترې نۀ وی - د بدرجهان اولنی برخه د ډېرو نوؤ معلوماتو نه ډکه ده - په دې برخه کښې د آدم علیه السلام نه واخله او خصوصاً د پېغمبر اسلام او اصحابو او نورو اولیاؤ ذکر دے - خو په تېره تېره د پښتو د تاریخ د یو طالب علم دپاره هغه برخه ډېره اهم ده - چې د غالب ګل بابا نه د شیخ رحمکار المعروف کاکا صاحب تر وفات نوشته ده - ددې کتاب جلد دوم د کاکاخېل میان ګانو په شجرو او د شیخ رحمکارنه وروستو د هغوی د زامنو د نمسو په حالات مشتمل دے - دا برخه د کاکا صاحب د میان ګانو دپاره اهمیت خو لری ولې عام لوستونکو دپاره ددغه دویمې برخې اهمیت ډېر کم ښکاری البته په دغه برخه کښې هم ځینې ځایونو کښې تاریخی واقعات درج دی - چې د تواریخ یو طالب علم ترې څۀ نا څۀ استفاده کولے شی -

د بدر جهان معروف به تذکرة المشائخ په ۱۲ شعبان بروز چهار شنبه ۱۳۷۵هـ ۱ ۱۹۵٦ء اختتام ته رسېدلے دے - دا دواړه جلدونه په نری قلم د نثر په ژبه دی - او ددې دواړو جلدونو

صفحات چې راغونډ شی - نو د شپږ سوؤ صفحات نه زیات جوړیږی -

د میان محمد بادشاه د کتاب جلد اول نه د حضرت کاکا صاحب د اسلاف د څو اولیاؤ نومونه او تاریخ پیدائش و وفات په دې ډول دے :-

سید کستیر ګل المعروف شیخ رحمکار ۹۳۸ھـ ۱ ۱۵۷۶ء تا ۱۰۶۳ھـ ۱۶۵۳ء

بن

سیدبهادر المعروف ابک بابا ۹۴۱ھـ ۱ ۱۵۳۵ء تا ۱۰۲۷ھـ ۱ ۱۶۱۸ء

بن

سید نادر المعروف مست بابا ۹۰۵ھـ ۱ ۱۵۰۰ء تا ۹۶۹ھـ ۱ ۱۵۶۲ء

بن

سید غالب ګل بابا المعروف سخی سرور بابا ۸۵۸ھـ ۱ ۱۴۵۴ء تا ۹۲۱ھـ ۱ ۱۵۱۵ء

بن

سید آدم بابا ۸۰۶ھـ ۱ ۱۴۰۴ تا ۸۷۲ھـ ۱ ۱۴۶۸ء

بن

سید یاسین بابا ۷۶۷ھـ ۱ ۱۳۶۶ء تا ۸۴۸ھـ ۱ ۱۴۴۴ء

د شیخ رحمکار المعروف کاکا صاحب د شجره نسب متعلق یو بل څائے کښې لیکی :-

,, شجرۂ نسب کاکا صاحب مشهور به شیخ جی صاحب از کتب تواریخ معتبره بزرگان مثل تصنیف شیخ یحیٰ صاحب المعروف حضرت جی اٹک صاحب که مرید جمیل بیگ معروف به فقیر بابا بود ،،

,, شیخ جی ۹۸۳ھ/ ۱۵۷۶ء به بستم سال جلوس اکبر بادشاه پیدا شدند، و ۱۰۶۳ھ/۱۶۵۳ء به ۲۶ جلوس شاه جهان وفات شدند ،،

ددې کتاب یو بل غټ وصف دادے ـ چې په دې کتاب کښې د خوشحال خان خټک او شهباز خان د پېدائش او وفات نه علاوه د یحیٰ خان د وفات کال ۱۰۱۹هـ \ ۱۶۱۱ء د انور خان المعروف اکوړ خان د وفات کال ۹۹۸هـ \ ۱۵۹۰ء او د ملک چنجو د وفات کال ۱۰۱۵هـ \ ۱۶۰۷ء درج دی ـ چې د خوشحالیات په موضوعات تحقیق کونکو دپاره د خوشحالی باعث تحریرات دی ـ

بهادر شاه ظفر کاکا خېل د یو اندازې مطابق د اکوړ خان د وفات کال ۱۰۱۰هـ \ ۱۶۰۲ء او د یحیٰ خان د وفات کال ۱۰۳۵هـ ۱۶۲۶ء بنائ[1] ـ

د افضل خان د تاریخ مرصع په حواله او د خوشحال خان خټک د خپل الفاظ مطابق :-

" چې زما پلار شهباز خان ، نیکۀ یحیٰ خان او غُر نیکۀ اکوړ خان د پنځوس کاله په عمر کښې د شهادت جام نوش کړو" ـ نو په دې اساس مونږ وئیلے شو چې :-

---

[1] وګورئ خوشحال خان خټک نمبرپښتو رساله ۱۹۸۰ء. ص ۱۰۳ و ۱۰۵

خوشحال خان خټک=۱۰۲۲هـ\۱۶۱۳ءتا۱۱۰۰هـ\ ۱۶۸۹ء=۷۸کاله

شهباز خان = ۱۰۰۰هـ\ ۱۵۹۲ء تا ۱۰۵۰هـ\ ۱۶۴۱ء = ۵۰ کاله

یحیٰ خان = ۹۶۹هـ\ ۱۵۶۲ء تا ۱۰۱۹هـ\ ۱۶۱۱ء = ۵۰ کاله

ملک اکوړ خان = ۹۴۸هـ\ ۱۵۴۱ء تا ۹۹۸هـ\ ۱۵۹۰ء = ۵۰ کاله

ملک چنجو = ۹۲۸هـ\ ۱۵۲۲ء تا ۱۰۱۵ هـ\ ۱۶۰۷ء = ۸۷کاله

خو دافضل خان د بیان نه دا معلومېږی چې د خوشحال خان "بل نیکهٔ"یعنی چنجو هم د پنځوسو کاله په عمر شهید وو:-

" عمر مې په هغه وخت پوره پنځوس کلونه وو - پلار ، نیکهٔ ، ورنیکهٔ ، بل نیکهٔ دا واړه په سور کفن شهید و ګور ته هم په دا سن سره سم لاړ دی - په پنځوس پنځوس کلونو چې راغلل شهید شول[1]

مطلب دا شو چې د ملک چنجو د وفات کال ۱۰۱۵هـ\ ۱۶۰۷ء غلط دے -

## میان محمد بادشاه د کشوف او کرامت په حواله د انور خان المعروف اکوړ خان متعلق لیکی -

" منقبت د شهادت د دوؤ زامنو په ځائے د پلار د انور خان چې مشهور په چنجو خان دے "

د حضرت سید نادر چې مشهور په مست بابا دے - ددهٔ درې زامن وو - چې یو جابر صاحب وو او بل بابر صاحب - او بل

---

۱ تاریخ مرصع ص ۲۷۴

سید بهادر صاحب چې مشهور په ابک صاحب دے - درې واړه کاملان وو - لیکن حضرت بهادر صاحب د وړوکوالی نه منزل مقصود ته رسېدلے وو - اتفاقاً درې واړه له خپله قبله و کعبه پلار صاحب نه رخصت شول - او په یو ځائے کښې د عبادت دپاره گوشه نشین شول - په دې مېنځ کښې ملک درویش خان چنجو نومې یو سړے د هندوستان نه راغلے وو - او په دې علاقه کښې ئې سکونت اختیار کړے وو - او له هر طرف نه ئې ډاکې او شوکې شروع کړې وې - حتٰی چې دا خبره همایون بادشاه ته ورسېده - او بادشاه د پشاور صوبیدار ته حکم ورکړو - چې په ختکو باندې فوج کشی وکړه - او چې په غرونو کښې ئې څوک بیا موندو - نو بې مهلته ئې قتلوؤ - او هم دا رنګې ددې فوج د لاسه څلور زره کسان تقریباً شهیدان شول - او دا هسې لوئې نعمت ئې په نصیب شۀ - انا لله و انا الیه راجعون -

د همایون بادشاه د فرمان مطابق چې لښکر تیار شو - نو د فرمان په وخت کښې حضرت بهادر خان صاحب خپلو ورونو ته ووې - چې اے ورونو ! بادشاه حکم وکړو - چې د ختکو په علاقه چې څوک بیا مومئی - نو قتلوئ ئې - او اسونو ته وهی او لکه چې تکه هر ئې ( زۀ ) اورم - نو بښۀ به دا وی - چې دې ځائے نه لاړ شو دواړو ورونو ورته ووې - چې هر څۀ الله تعالٰی ته مقرر وی - نو د

هغې نه بل څۀ نۀ جوړېږی - مونږ به هم په دې ځائے ناست یو - حضرت بهادر صاحب ډېر زیات کوشش وکړو - لیکن کار ونۀ شو - اخر دغه صاحبان هم په دغه خپل ځائے باندې پاتې شول - لیکن بهادر صاحب ترې نه رخصت شو - او بل ځائے کښې د خلقو نه کناره کښېناستو - یو څو ورځې پس هر کله چې د همایون بادشاه فوج په سرداری د صوبیدار پشاور ختکو ته را ورسېدو - نو هم په دغه خپل ځائے باندې حضرت جابر صاحب او حضرت بابر صاحب د ظالمانو د لاس نه د وحدت شراب نوش کړۀ - یعنی قتل شول - او سرونه مبارک د دوئ ئې پرې کړل - او په نیزو کښې ئې پورته کړل هر کله چې څۀ منزل ئې وکړو - نو د الله تعالی د طرف نه په دې لشکر ډمبرې راخورې شوې - او مسلط شولې - او په چیچلو سره ئې ډېر تنګ کړل - حېران وو چې زمونږ د لاس نه څۀ ګناه وشوه - ناګاه چې ئې وروستو وکتل نو تنې بې سره د دوئ په قدرت د الله تبارک و تعالی را روانې وې - نو فوراً دې ظالمانو له ډېر هیبت نه سرونه وغورزول - او روان شول - او دا مقام سر د ستغ د شیخ کلی وو - او هر کله چې تنې خپلو سرونو ته را ورسېدې نو سرونه ئې په لاس کښې را واخستل - او د خپل قبله و کعبه پلار بزرګوار په خدمت کښې په وینو لړلی حاضر شول - نو حضرت سید نادر صاحب ( مست بابا ) بهادر خان صاحب ته وفرمائیل - چې

اے برخورداره تا دوئ نه خبرول - حضرت بهادر صاحب عرض وکړو - چې یا صاحبه په دوئ باندې ما ډېر زیات کوشش وکړو - لیکن هیڅ اثر ئې ونکړو - اخر چې په قضائے الهی د شهادت شراب ئې نوش کړل - بیا حضرت مست بابا صاحب علیه الرحمت په ښه شان سره دفن کړل - څو ورځې پس هر کله چې بادشاه همایون ددې واقعې نه خبر شو - نو د خپل وزیرانو نه ئې تپوس وکړو - چې دا څوک دے هغو عرض وکړو - چې یا جهان پناه دا اهل رسول دے - او په فلانی نومونو باندې مشهور دے - او د حضرت جناب مست بابا علیه الرحمت زامن دی - پس له پوره تفتیش نه بادشاه د راتلو سره د فوج وکړو - له پاره د عذر - لیکن په هغه ورځو کښې همایون بادشاه شېر شاه افغان سوری په منده را واخستو او تخت نه ئې بر طرف کړو - په ۹۵۸هـ / ۱۵۵۱ء کښې په وجه د کوچو خان نومې سردار اولس یوسف زو چې له شېر شاه نه باغی وو - په مدد سره په ګودر د لشکو راغلو په مقام د مصری باندې په دریاب د لندی راپورې وتو - او شهر بلګرام ( باګرام ) یعنی پښاور ته لاړو - او په دغه وخت په پښاور باندې ورور ددهٔ مرزا کامران په مدد د قوم د داؤدزو بادشاه وو - نو په دغه وجه د مرزا کامران سره ډېره شو - لیکن په زړهٔ ددهٔ کښې ډېره ویره او هیبت پیدا شوے وو چې دا هر څهٔ زوال د حکومت ماته په وجه د وژلو د زامنو د مست

بابا علیه الرحمت دا نقصان را ورسېدو ـ نو په دغه وجه همایون بادشاه سره د مرزا کامران اود وزیرانو او امیرانو سره په لار د نوښار د مست بابا ډېرې یعنی مقام ته راغلو ـ او ډېر بې اندازې نذرونه او سوغات ئې د ځان سره راوړی وو ـ او په خدمت د مست بابا کښې ئې پېش کړل ـ او بادشاه همایون عرض وکړو ـ چې یا صاحبه زما دا عذر قبول کړه ـ نو حضرت مست بابا په ډېر محبت او په مهربانی سره ورته وفرمائېل ـ چې اے بادشاه زما زامنو د شهادت شراب نوش کړل ـ ددې نه زیات ئې په دنیا کښې قسمت نۀ وو ـ الحمد الله چې دا هسې لویه مرتبه ئې الله تعالٰی نصیب کړه ـ او ستا د فرمان مطابق څلور زره کسان شهیدان شول ـ او حال دا چې یو کس په کښې د مدعیانو نه هم قتل نۀ شو ـ نو همایون بادشاه ډېره زاری وکړه ـ چې یا صاحبه ددې مظلومانو د سرپرستو نه زما بخشش وغواړه ـ او حضرت قطب الاقطاب ورته وفرمائېل ـ چې زۀ د خپل ځان ذمه وار یم ـ لیکن بادشاه چې بیا بیا عرض وکړو ـ نو حضرت شېخنا ورته وفرمائېل چې خبر دے ددې بخشش دپاره به زۀ یو څو کارونه درته وښائم ـ امید دے چې الله تعالٰی د هغې په وجه سره ستا مغفرت نصیب کړی ـ او تا نه راضی شی ـ نو بیا بادشاه عرض وکړو چې یا صاحبه تاسو سره به د هر قسم احسان وکړم ـ لیکن ویرېږم چې خروج مې په بادشاهی کښې راغلے دے ـ

او ویرېږم چې سوغات زما به تاسو قبول نهٔ کړئ بنهٔ به دا وی چې تاسو ئې په خپله وغواړئ - نو زما به تسلی وشی هر څومره چې بادشاه خپله عاجزی او زاری وکړه - لیکن حضرت مست بابا هغه قبوله نهٔ کړه - او اخېرالامر بادشاه عرض وکړو چې زیاته نهٔ اخلې نو دا د ختکو ملک واخله - نو حضرت مست بابا د مجبوری په وجه دغه علاقه قبوله کړه - او بادشاه ته ئې دعا وکړه - او بیا حضرت قطب عالم ورته وفرمائېل چې زهٔ دا شے ( جاګیر ) خپل اولاد ته نهٔ پرېږدم - بنهٔ به دا وی چې دا ملک دې هغه سړی ته ورکړے شی چې د چا په وجه زما زامنو شهادت بیا موندو - بادشاه عرض وکړو چې یا قطب عالم ستاسو رضا زما رضا ده - د فرمان مطابق پلار د انور خان چې مشهور په ملک چنجو وو - او نوم ئې ملک درویش وو - راطلب ئې کړو - او د ختکو ټول خانان ئې را وغوښتل - د بادشاه همایون د حکم مطابق ئې درویش خان د ختکو خان کړو - او بادشاه همایون ورته حکم وکړو - چې د سرائے په خوا کښې یعنی د مصری بانډې د ګودر سره یو ډېره جوړه کړه - او په ګودر چې څوک راپورې وځی - نو محصول ترې اخله - او د هیچا پرواه مهٔ کوه - او کهٔ څوک مخالفت کوی - نو ماته خبر راکوه - او حضرت قطب عالم پس د ملک ورکولو نه پلار د انور خان ملک چنجو ته وفرمائېل - کهٔ زما د اولاد سره دې ناشائسته خیالات

اختيار کړل ـ نو ډېر زيات خراب او برباد به شي ـ واضح دې وی چې دې همايون بادشاه د مست بابا عليه الرحمت سره درې ورځې تيرې کړې وې ـ په دې درې ورځو کښې کوم خوراک چې د بادشاه او د اميرانو لائق وو ـ نو هغه خوراک کريمه به هغې نه مخکښې حاضر وو ---------- اخر الامر په درېمه ورځ بادشاه خپل وطن ته يعنی پشاور ته په ډېر ښهٔ شان سره خوش و خرم رخصت شۀ ـ پلار د انور خان په سرائے باندې مقام ونيوۀ ـ پلار د انور خان آهسته آهسته ترقی وکړه ـ او کلے جوړ شو ـ د مست بابا عليه الرحمت د گفت مطابق به اميد دے ـ چې تر اخېره چنجو به آباد وی ـ او کۀ چرې اولاد ئې قصور ونکړو ـ او دا دے عنايت د نظر په ملک چنجو ، په پلار د انور خان باندې او پس د وفات د ملک چنجو چې په ۱۰۱۵هـ کښې واقع وو ـ بيا انور خان په ځائے د پلار د اکبر بادشاه سره نوکر وو ـ او په منصب د پلار مشرف شو -- ------- او مست بابا په ۹۶۹هـ کښې په شپږم کال د تخت نشينئ د جلال الدين اکبر بادشاه کښې وفات شو ـ او په عمر د څلور پنځوسو کالو نزدې د کلی د شېخی سره پېوست د قبرونو د زامنو شهيدانو دفن شو[1] ـ

---

[1] تاريخ بدرجهان . جلد اول . ص ۱۱۰ تا ۱۱۳

په مرآة الخیال کښې په ص ۱۳۸۶ لیکلی دی چې په سن اخېرې نورالدین جهانګیر بادشاه کابل ته تلو - نو په مقام د نوشهره شېخ المشائخ غوث الاعظم شېخ رحمکار سره ملاقی شو - نو ډېر قدر و منزلت د شېخ رحمکار ئې وکړو - او بار بار به ئې وئېل که دې څهٔ ضرورت وی - نو ماته ووایه - چې درکړم - نو شېخ المشائخ غوث الاعظم شېخ رحمکار وفرمائېل چې بغېر د الله تعالیٰ نه غوښتل د بل چانه ماته شرم راځی - او ماته د هېڅ ضرورت نشته - لیکن نور الدین بادشاه بطور د جاګیر علاقه د خټک او د اوتمان بوُلاق ورکړه - او شېخ المشائخ هغه جاګیر د بادشاه نورالدین خپل مرید شهباز خان زویې د یحیٰی خان ( وفات ۱۰۱۹هـ ) نمسی د انور خان ته ورکړه - او سلطان نور الدین په جواب کښې ورته ووئېل چې ما اختیار تاته درکړے دے ------- بادشاه پشاور ، پشاور نه کابل او هغه ځائے نه کشمیر ته راغلو - او هلته ناجوړه شو نو لاهور ته روان شو - خو په لاره کښې د اېتوار په ورځ ۱۰۳۷هـ / ۱۶۲۷ء کښې وفات شو[1] -

تاسو د میان محمد بادشاه د نثر کتاب تاریخ بدرجهان جلد اول اقتباسات ولوستل - د میان صاحب قلمی نسخې د پښتو اکېډیمی په لائبرېری کښې په نمبر ۸۳۸ تا ۸۴۴ موجود دی - د تاریخ بدرجهان د ړومبنی دوه قلمی نسخو نه علاوه ۸۴۰ تا ۸۴۲

۱۸۰

نمبرونو خطی نسخې په فارسی اردو او پښتو ژبې په ګڼ شمېر موضوعات مشتمل دی ـ قلمی نسخه ۸۴۳ نمبر د نظم په ژبه ده ـ او دا واقعه په لږ مختلف انداز دغه قلمی نسخه کښې هم ذکر ده ـ ولې هغه تفصیل نۀ لری ـ کوم چې په قلمی نسخه نمبر ۸۴۴ کښې موجود دے ـ ځکه چې د قلمی نسخه نمبر ۸۴۳ وروستنی اوراق د اوبو یا خولې په سبب مسخ شوی دی ـ او د هغې د بیا لیکلو کوشش شوے دے ـ چې اصلی مطلب نۀ ادا کوی ـ مونږ دلته ددغه قلمی کتاب د متذکره متن نه ډډه کوؤ ـ البته د اخېری نسخې یعنی ۸۴۴ نمبر چې عبارت ئې د شېخ مست بابا د کشف او کرامت په حواله د لنډ بحر مثنوی ده بیانوؤ ـ چې د انور خان المعروف اکوړ خان د سرداری او په دې سیمه د قبضې مزید وضاحت وشی ـ دا نسخه په مناقب شېخ رحمکار موسوم ده ـ او څلور سوه څلور شپېته مخه لری ـ ددې نسخې په اخېر کښې میان محمد بادشاه خېل شجره نسب داسې ښائ :-

محمد بادشاه بن میان لطف الله بن بادشاه ګل بن نظیف الله بن خطیب الله بن لطف الله بن عبدالله بن بشیر بابا بن خان جهان بابا بن ضیاء الدین بن شېخ رحمکار المعروف حضرت کاکا صاحب ـ

د میان محمد بادشاه ددې کرامت بیان لکه چې ښکاره ده ـ د څلور کسانو په مناقبات اړه لری ـ چې د بهادر بابا المعروف ابک صاحب مریدان وو ـ

چې خاص مکان ئې کوهسار دے
او په ایک صاحب نامدار دے
هم مشهور په بهادر خان دے
چې دستګیر د هر ناتوان دے
په حیات ئې مریدان ډېر
وو بې حده هر زمان ډېر
چې مې نهٔ راځی په شمار کښې
وسی ډېر په هر دیار کښې
بارې ځلور کسه مشهور دی
په درګاه د رب منظور دی
د صاحب په پټ کردار
دا ځلور وو خبردار
هم له دوئ به ئې مصلحت وو
چې به فارغ له عبادت وو
یعنی دوئ سره ئې راز
پټ کولو په ډېر نیاز
دا ځلور ئې هم نشین وو
په دوه کونو کښې ګزین وو

هر یو بیل کړے کتاب
مناقب د فیض مآب
د هر یو کتاب مې ګوره
دے لیدلے زما وروره
اوس به ئې وکړمه بیان
تهٔ ئې وګوره عیان
د هر یو په کمال وروره
په مقام ئې جلال ګوره
هر یو کاندی سلطنت خپل
پس له فوته زیادت خپل
یو میان ولی صاحب نیک نام دے
چې په چچ کښې ئې مقام دے
په ټیکرو زیارت ز‌ېبا دے
د ړندو د لاس عصا دے
دوېم شاه صدر الدین دے
په سلطنت صاحب مبین دے
په اټک پورې مقام دے
ننګیالے ولی نیک نام دے

بل درېم اخون میان داد دے
چې د پاک رب په مینه شاد دے
او څلورم اخون شرف دے
چې په بلخ کښې مشرف دے
په مناقبات کښې داستان
دا بیان دے په یو شان
چې مست بابا قائم مقام شو
غالب بابا ته په سلام شو
ورته ئې وویې قبله گاه
اے زما پشت پناه
زۀ له تانه فائده مند شوم
په تمام عالم څرګند شوم
راته وکړه وصیت
چې زۀ کړم هغه خصلت
غالب بابا وې خلافت اوس
څو یې ستا شۀ دا ساعت اوس
چې دې رضا شی هغه کار کړه
تل طاعت د کردګار کړه

غالب بابا په کوچ د خان شو
مست بابا په هغه مکان شو
بیا د مست بابا فرزند
پوره درې وو ارجمند
مور زاده خاصه ولیان وو
مستقیم لکه سندان وو
بهر مند له خپل پدر وو
په خورد سالی کښې منور وو
الغرض چې دوئ کلان شو
له صاحب رخصت جویان شو
ورته یې ووئېل پدره
مونږ رخصت غواړو په غوره
مست بابا ورکړو رخصت
غوره دوئ کړلو خلوت
هلته کښېنئ عبادت کړئ
عبادت په فراغت کړئ
دوئ هغسې شو روان
کښېناستل په یو مکان

عبادت ئې د پاک رب کړو
ښهٔ په مینه روز و شب کړو
هغه وخت کښې انور خان
وو له هنده را روان
د ختټکو کل خانان
چې وو دلته عیان
په خوړه کښې سکونت کړه
پورې لاس په هزیمت کړه
ملک کړو واړه خراب
چپاؤنه په شتاب
دهٔ کول به هره ورځ
شوکېدل به خوار عاجز
اپوتېه نال به ئې وهل
چپاؤنه به ئې کول
الغرض سلطان خبر شهٔ
ډېر له قهره پر ځیګر شهٔ
حکم راغے صوبیدار ته
د پېښور هغه سردار ته

چې تهٔ ناست ئې په آرام
مخلوق شولو بې آرام
شوم ښهٔ پوېږې نمک حرام ئې
ښهٔ طالب د خپل آرام ئې
نور له هېڅه خبر نهٔ شوې
چرې له ښاره بهر نهٔ شوې
ځان خبر کړه له دې حال
تلل د خلقو شول محال
چې په لار کښې شوکې کېږې
عالم واړه تالا کېږې
یو چپاؤ په هسې شان کړه
ښځې نر تول بندیوان کړه
خلق کړه خلاص له دې تاراجه
هم له دې بده رواجه
صوبیدار ډېر په غصه شو
د چپاؤ په اراده شو
یو عظیم فوج ئې تیار کړو
د چپاؤ ئې اختیار کړو

غوږ پرې کېږده زما جانه
درته وايمه عيانه
چې بادشاه په حال عالم شو
او مرزا د حال راقم شو
چې ئې کښلو صوبيدار ته
د پېښور عالی سردار ته
ابک صاحب ووې ظاهر بيا
په هغه خپل زبان طاهر بيا
چې په ډيلی کښې شاه سلطان
دغه شان وکړو فرمان
لکه تېر شوے چې مذکور دے
ورته ئې ووې تلل ضرور دے
ځئ چې لاړ شو له دې ځايه
صوبيدار دے ډېر بې رايه
چرې نۀ وی چپاؤ راشی
او زمونږ په ځان بلا شی
ښۀ پوهېږم چې خطر دے
سراسر مونږ ته ضرر دے

په پېښور کښې وهی نال
ټکه هر اورم فی الحال
او په مهم د مرګ رادورمی
وکړئ یقین کهٔ څوک بیا مومی
ځئ چې څو چرته په څنګ شو
چرې نهٔ وی چې بدرنګ شو
چرته نهٔ وی پکښې لاړ شو
له دې ځایه ځئ چې لاړ شو
په دې ځائے کښې فائده نشته
له ضرر پکار دهٔ تشته
او جابر صاحب وې واوره وروره
غوږ پرې کېږده اوره ګوره
چې لیکلی لم یزل دی
خاص زمونږه له ازل دی
هغه به مونږ ته ورسېږی
هر چې کاندې هغه کېږی
مونږ منلے په بصر دے
هغه کار چې مقرر دے

تهٔ قاضی بخشنده وسه
زمونږ تعظیم بابا ته یوسه
ابک صاحب ترې نه روان شو
دے عازم د بل مکان شو
چپاؤ راغے ماره مار
د پېښور د صوبیدار
دواړه ورونه شهیدان شو
چې قاتلان ئې ظالمان شو
قیصه بل ځائے نوشته ده
هلته ئې ګوره اراسته ده
حاجت نشته د تکرار
چې ئې وکښم بیا دوبار
الغرض بادشاه خبر شو
خبردار په دې ضرر شو
شهیدان بزرګان شو دواړه
د سلطنت امان دې غواړه
چې سلطان په حال خبر شو
بنهٔ اګاه په زېر و زور شو

شو په خپله را روان
شو عازم ددې مکان
په دې وطن بادشاه اے وروره
راغلے نۀ وو پخوا گوره
په معذرت د مست بابا زر
شاه راتلو سبا بېگا زر
هم په دې مهم راتللو
چې مست بابا ته رسېدلو
چې په دې ددۀ ظاهر شۀ
ډېر خوشحاله ئې خاطر شۀ
نۀ يو کلے وو نۀ کور
نۀ ئې وليد چرته اور
خو يو صاحب يو ئې خلوت وو
دے مشغول په عبادت وو
ابک صاحب په بل مقام وو
په عبادت د رب مدام وو
چې بادشاه ورغے وروره
شو خبر صاخب له شوره

له خلوته را بېرون شو
بادشاه زر ورته په يون شو
ورته ودرېد په تعظيم
په بار بار په ښهٔ تسليم
صاحب وو ولاړ خاموشه
بادشاه پرېوتو بې هوشه
مست بابا چې بيا نظر کړو
بادشاه هسک له خاورو سر کړو
درست صورت ئې وو پرېشان
رېږدېدلو په يو شان
مست بابا وئېل سلطانه
چا کړې خبر له دې مکانه
څهٔ غرض څهٔ دې مطلب دے
د راتلو کار دې عجب دے
ما خبر کړه له خپل حاله
ولې ئې په زړهٔ ملاله
بادشاه ووئېل صاحبه
ستا ديدن ته يم راغبه

بل یو کار په تقدیر پېش شهٔ
چې خاطر زما پرې رېش شهٔ
ازرده یم ډېر بسیار
ځکه راغلم ماره مار
چې دا ستا په دیدن سپر شوم
زهٔ بې حده خوشال ډېر شوم
تهٔ زما عذر منظور کړه
او په عفوه مې مسرور کړه
هم نذرونه له هر بابه
ما راوړی فېض مآبه
همه گیر تاته پېشکش دی
چې راوړی ما حبش دی
زهٔ حبش خاصه غلام یم
شب و روز ستا په سلام یم
هم دامنگیر دې د جناب یم
زهٔ راغلے تر دې باب یم
کهٔ زما عذر قبول شی
زما زړهٔ به خلاص له نول شی

عذر مې تاته وړاندې کړے
سر سرتور په غاړه پړے
بیا صاحب ووې بادشاه
د عاجزو تکیه ګاه
تاته هیڅ نشته تقصیر
دا وو کښلی په تقدیر
دوه زامن مې شهیدان شو
چې قاتل ئې ظالمان شو
چې روزی ئې سعادت شو
زما اوس ژوند په راحت شو
چې اوچت ئې درجات شو
له حیات پس له ممات شو
ځه بې غمه سلطنت کړه
په عاجزو مرحمت کړه
هر چې تا ماته راوړی
ما دی تول ببرته درکړی
زۀ خلاص کړے یم پاک رب
دا مې هیڅ نۀ دے مطلب

زۀ طالب د پاک الله یم
هسې نه چې د دنیا یم
په دې پورې مې حاجت
موقوف نۀ دے هیڅ ساعت
زۀ له دنیا یمه وېزاره
اے بادشاه د رب دپاره
تۀ ورځه له ما رخصت ئې
تۀ لائق د سلطنت ئې
بیا بادشاه وئېل صاحبه
زۀ یو عرض ته یم راغبه
عرض مې دا دے په خاطر کښې
زۀ ئې واېم په ظاهر کښې
تۀ قبول دا پېښور کړه
وظیفه ددې لنګر کړه
چې خورسند شمه بې شانه
یا ولی غوث الزمانه
مست بابا ووې سلطانه
زۀ رضا یمه له تانه

زما هيڅ نۀ دی پکار
بي غم ناست يم بر قرار
بيا بادشاه ووې دوبار
هسې شانې په تکرار
چې دے ستا پکښې مسکن
دا د تمام خټک وطن
ما دے تا وته بخښلے
دفتری په رقم کښلے
په کښې انکار مۀ کړه روئيداره
ځگی جگی رب دپاره
مست بابا ووې سلطانه
زۀ رضا يمه له تانه
د خټک ملک چې تمام
تا کړو ما وته انعام
د اولاد مې پرې غرض
هر گز نشته الغرض
هغه کس چې فسادی دے
او بې شانه عنادی دے

زۀ به وکړم پرې خبر
دے به راشی برابر
ستا په مخکښې به ئې درکړم
چې لار خلاصه له ضرور کړم
بارې تۀ پرې وکړه رحم
چې ئې خلاص زړۀ له زخم
سرپرستی کوه مدام تۀ
اے بادشاه په صبح و شام تۀ
چې شی نهال زما له لاسه
غور ئې تۀ کړه خپر النّاسه
بادشاه ووې قبول زما دی
چې وئیلی ماته تا دی
چې هر وخت راشی حاضر
او زۀ شم به بې ناظر
زۀ به ئې وکړم دپر مدار
ماته منظور دا ستا گفتار
صاحب واستوۀ جواب
اکور خان ته په شتاب

اکوړ خان چې خبردار شۀ
را روان په سمه لار شۀ
د مست بابا تر پاکه دره
اکوړ خان راغے دلبره
ور درون شۀ په خلوت کښې
عرض ئې وکړو په الفت کښې
چې صاحبه څۀ فرمان کړې
کوم له ماسره احسان کړې
صاحب ووې انور خانه
شه خبر له دې بيانه
د خټک وطن تمام
بادشاه کړو ماته انعام
زۀ ئې اوس تاته درکومه
خو هم تا پرې کښېنومه
ما ئې تردې تۀ رابللے
شو دا ستا قسمت بناغلے
چې معاش دې پرې اولاد کړې
کوندې ما په دعا ياد کړې

او کۀ مانه روګردان شي
خوار خسته به حق حېران شي
او کۀ د بل چا دامنګر شي
زر به تۀ زخمي ضمير شي
او کۀ خدمت مې د اولاد کړې
رب به ئې حاصل د زړۀ مراد کړې
او دوئ به څۀ له داسې کار کړي
چې به بل وته اختيار کړي
چې په خپل لاس مې وطن
دے درکړے مبرهن
دوئ به څۀ له بل خوا درومي
د غفلت پياله به شومي
او کۀ څوک وي بد نصيب
چې شي بل ځائے ته قريب
هيڅ فائده به حاصل نۀ کا
کۀ دوئ سل ځله ورتلۀ کا
دا ئې ووئېل څرګند
خپل اولاد ته وکړه پند

چې خبر په دا اسرار شی
هسې نه چې تار په تار شی
انور خان وې دست په دسته
اے د رب په مینه مسته
ما منلی په بصر تول
ستا وئېل کېمیا اثر تول
بیا صاحب زر راہبرون شۀ
د بادشاه په لور په یون شۀ
چې بادشاه شۀ خبردار
له خېمې شۀ زر بهر
سر سرتور پړی په غاړه
اېښی لاس په نامۀ دواړه
ورته ودرېدو د وړاندې
چې صاحب څۀ حکم کاندې
مست بابا ووې سلطانه
ښۀ خبر له اکوړ خانه
ملا تړلے په خدمت کښې
دے حاضر په هر ساعت کښې

چې نظر وکړو سلطان
ورته ئې دا وکړو فرمان
چې ما ختک صاحب ته ورکړو
دهٔ تمام وتاته درکړو
هم سفارش ئې په ما ډېر
وکړو ستا تر حده تېر
ما په سترګو دی منلی
چې صاحب ماته وئېلی
ورځه کښېنه په کنار
د دریاب په سمه لار
له هر چا محصول اخله
درته ما ووې په خپله
چې راځی څوک په دا لار
په اندازه له بار بردار
کیشتی جوړه په دریاب که
رفت آمد به خلق زیات که
څهٔ محصول پرې مقرر کړه
هغه اخله خان خبر کړه

چې نظر وکړو سلطان
ورته ئې دا وکړو فرمان
چې ما ختک صاحب ته ورکړو
دۀ تمام وتاته درکړو
هم سفارش ئې په ما ډېر
وکړو ستا تر حده تېر
ما په سترګو دی منلی
چې صاحب ماته وئېلی
ورخه کښېنه په کنار
د درياب په سمه لار
له هر چا محصول اخله
درته ما ووې په خپله
چې راځی څوک په دا لار
په اندازه له بار بردار
کيشتۍ جوړه په درياب که
رفت آمد به خلق زيات که
څۀ محصول پرې مقرر کړه
هغه اخله خان خبر کړه

حکم کړه د ملک حاکم شوې
په جواب زما عالم شوې
کۀ څوک شور کړی ستا په راس
او څۀ وائ کوز و پاس
ماته هر گز نۀ دی منظور
درته وایم په حضور
چې بادشاه وکړو گفتگو ئې
انور خان ئې کړو پرې پوئې
اکوړ خان په دا خورسند شو
له صاحب نه رضامند شو
بادشاه واخستو رخصت
شو روان هغه ساعت
هم صاحب ورکړو اجازت
بادشاه تلو په فراغت
غوړ پرې کېده برادره
قیصه نیسم بیا له سره
سلطان راغے ماره مار
ډېره شولو په نوبنار

چې سبا شو را روان شو
دوئ عازم ددې مکان شو
ورسره سوارهٔ بې شمار
هم پیاده عالم بسیار
شو داخل په ګاوز دره کښې
وو د غرهٔ په ننداره کښې
چې نهٔ کلے شته نهٔ کور
نهٔ لیدے شی چرته اور
یو څو کسه فقیران وو
هغه وخت دوئ حاضران وو
د مست بابا په څنګ کښې ناست وو
په خدمت د صاحب راست وو
عرض ئې وکړو چې صاحبه
رنګ رنګ خلق دی عجائبه
نیزدے راغلو حاضرین دی
ښهٔ زغره پوش پوشاک زرین دی
مست بابا وکړو اشارت
زر درون شو په خلوت

له خلوته ئې رابهرون کړی
تمام خوړ به شین زرغون کړی
قالینچې د حده تېرې
فقیرانو راوړې ډېرې
چې په زمکه تار په تار شوې
ونې غنې ئې بهار شوې
عالم شو ورته حېران
هم حېران شولو سلطان
چې دا چرته سازې شوې
په مزکه دی درازې شوې
چې زمین تمام ګلزار شو
هم په دې زمونږ رفتار شو
دومره ډېرې بې حسابه
پشمینه زیاتې له کمخوابه
دا د کوم ځائے پېدا شوې
په یو شان ښکارېږی نوې
حق حېران شو ورته پاتې
دی پوشاک نۀ کم او زیاتې

بیا له خلوته راویستلو
ډک تالې هر چا لیدلو
خوانچې ډکې رنګا رنګ
سازې شوې په یو رنګ
ورته کېښولې د وړاندې
هر سړے چې فکر کاندې
چې د چا وو په خاطر کښې
هغه موجود وو په ظاهر کښې
دا تمام لښکر پرې سېر شو
هغه خپل خوراک ترې هېر شو
یو دوه شپې ورځې ډېره وو
بادشاه ډېره په ډاګ مېره وو
خوانچې ډکې به راتللې
په خپل وخت به دوئ لیدلې
نۀ پوهېدل به پرې خواران
چې راځی له کوم مکانۀ
دا طعام چې وو اظهره
رزق کریمه وو مقرره

هم خوړلو بې کلفته
هم بې رنجه بې شدته
بادشاه لاړ په خپل مقام شو
خاطر جمع په ارام شو
غوږ پرې کېږده زما وروره
درته وایم واوره ګوره
مست بابا ټول مشران
کړل د خټک طلب عیان
ورته ئې ووې په دا شان
تاسو پوئې کړئ کشران
مقرر چې له سلطان دے
اکوړ خان دا ستاسو خان دے
تاسو هم وعده وعید
ورسره وکړئ په دید
دا ساعت زما ورانديې
چې دے خپله خانی کاندې
تاسو ټول متابعت کړئ
په ښهٔ شانې ئې خدمت کړئ

زۀ به له تاسو رضا مند شم
رضامند هم به خورسند شم
مشرانو مصلحت کړو
یو تر بله یې مشورت کړو
چې صاحب و مونږ ته وائ
دا له مونږه سره ښائ
چې هغه واړه قبول کړو
او په ځان باندې معمول کړو
چې صاحب له مونږ رضا شی
زمونږ کار به سم په دا شی
راغلل ودرېدل په جمع
مست بابا ناست وو لکه شمع
د مخ رڼا ئې هسې شان
چې وو مجلس پرې درست روښان
ورته ئې ووئېل روئیداره
مونږ یو ستا خدمتګاره
تا چې کړے دے فرمان
دے اکوړ خان زمونږه خان

کمر بسته به په خدمت کښې
یو ولاړ په هر ساعت کښې
پکښې به هیڅ نۀ کړو قصور
ستا وئیل مونږ ته منظور
اکوړ خان په اجازت زر
د صاحب شولو رخصت زر
په سمه لار کښې په یو ځائے
هلته دۀ بناء کړه سرائے
په کناره د دریاب باندې
جوړه کړه په شتاب باندې
پکښې کښیناستو بې غمه
خانی خپله کړه مستحکمه
له هر چا به یې محصول
په هنر کړلو وصُول
ورځ په ورځ به ئې زیاتؤلو
له هر چا به ئې اخیستلو
پکښې چا نۀ کړو انکار
زیاتوؤ ئې وار په وار

الغرض کلے آباد کړو
چې په سرائے باندې ئې زباد کړو
لا تر اوسه ئې سرائے نوم دے
چې مخلوق وته معلوم دے
اکوړے هم ورته وائ
د اکوړ خان په نوم ئې ستائ
دا دعا وه د اخلاص
شو نهال اکوړه خان
چې تر اوسه ئې فرزندان
کړی مزې په هسې شان
د خټک په ملک کښې دوئ
یو خو وی نهٔ وی به دوئ
پهٔ اندازه د خپل قسمت
هر یو کاندې حکومت
په اخلاص ټول دامنګیر دی
هم ددې جناب کبیر دی
مست بابا له دنیا تېر شو
ابک صاحب لکه نمیر شو

د خلافت قبا ئې پوش کړه
د محبت پیاله ئې نوش کړه
د اکوړ خان د فرزندانو
پرورش کړلو یارانو
بیا چې ابک صاحب روان شو
له دنیا په کوچ د ځان شو
خلافت د رحمکار شۀ
د پاک الله په در روئیدار شۀ
حقیقی قطب وحدت وو
ورځ په ورځه ئې زیادت وو
په تلقین د پېغمبر دے
د محمد خېرالبشر دے
په مقام د عبودیت کښې
دے له وو طفولیت کښې
په بل چا پورې حاجت
د مریدۍ نۀ وو رغبت
ویسیه مرتبه جانه
وه له نبی اخر زمانه

حلیم ګل صاحب وئیلی
په کتاب کښې مې لیدلی
چې د پلار طریقه ئې کړله
معلومیږی له دې ګله
چې د ابک صاحب مرید وو
په ظاهر تلقین سعید وو
نقشبندی طریقه ئې څکه
چلؤله مرد مکه
دا له دې نه معلومیږی
راته د پلار مرید ښکاریږی
چې لاس نیوۀ له خپله پلاره
ښخه کړې رحمکاره
او له قوله یې دا معلوم
هسې شانې وو مفهوم
هم هر چاته ئې به وئیلو
هم هر چا ترې اوریدلو
چې طریقه مې ویسیه ده
چې بې حده قدسیه ده

غرض دا چې رحمکار
شو ښکاره لکه انوار
خاص مريد ئې خوشحال خان شو
د بالړ تر مېرې خان شو
د تمام خټک وطن دۀ
ښۀ رعيت کړو مبرهن دۀ
دا نظر وو د کستير
په خوشحال خان مئين وو ډېر
لا تر اوسه معلومېږی
د صاحب دعا ښکارېږی
چې • خوشی ئې فرزندان کړی
پرورش ئې په ښۀ شان کړی
دوئ له مست بابا نهال دی
ځکه تر اوسه په اقبال دی
والله اعلم بالصواب
زۀ ناقل يم له کتاب[۱]

---

[1] مناقب شيخ رحمکار از ميان محمد بادشاه ص ۸۰ تا ۱۰۱ قلمی نسخه پښتو اکېډيمی نمبر ۸۴۴

# تبصره

## د ابن خلدون په نزد :-

د یو واقعې تل ته رسېدو دپاره دوه څیزونه لازمی دی ـ اول روایت او دوېم درایت ـ یوه واقعه یا کار کۀ محض په روایت بناء وی ـ او عقل و فراست نه بعید او لرې وی نو محض روایت وی ـ او حقیقت څخه ئې هېڅ تعلق نۀ وی ـ ولې کۀ یوه واقعه یا پېښه روایت نه علاوه درایت هم لری نو دا حقیقت وی ـ او د حقیقت نه څوک هم انکار کولے نۀ شی ـ

## قاضی عبدالحلیم اثر افغانی لیکی :-

د ځینې مؤرخانو په نزد تاریخ په دوه حصو وېش دے ـ تاریخی واقعات او تاریخی خرافات ددې له مخه یو مؤرخ له ضروری دی چې د خرافاتی قسم بیانونو تاریخی تحلیل او تجزیه وکړی ـ د هغې واقعاتی حصې او خرافاتی حصې بیلې کړی ـ او هغه چې عرب وائ " خُزُمَا صَفَا وَدَعْ مَا کَدِرِ " بڼۀ واخله بد پرېږده ـ

د تاریخ یوې حصې ته خرافات په دې وئیلے شی چې په هغې کښې د واقعاتو شکل مسخ شوے وی - دا کار یا په پوهه شوے وی - یا په نا پوهتیا - د یو مؤرخ دپاره بنیادی فرض دا په نخښه شوے دے چې دے به غیر جانبدار او دیانتدار وی - په هیڅ طمع او اثر به غلط بیانی نۀ کوی[۱] -

دلته مونږ د ابن خلدون بیان ته څکه په درنه سترګه ګورو - چې زمونږ د اولیاء کرام متعلق اکثر مناقبات په روایاتو بناء دی - ددې روایاتو د هغوئ د عقیدتمندو پر ستارو او مریدانو په نزد یو خاص مقام دے - چې دغه مناقب کۀ حقیقت نه مبراء او لرې هم وی - ولې د دوئ په نزد د پیر و مرشد متعلق هر بیان په حقیقت بناء وی - نو په دې وجه مونږ مجبور یو - چې دغه تاریخی روایات ته خرافات ونۀ وایو - بلکې دغه څخه اتفاق یا نۀ اتفاق د هر چا خپل کار دے -

اوس راځئ چې د میان محمد بادشاه د تاریخ بدر جهان او د مناقب شیخ رحمکار د کرامات او کشوف دغه یو قسم بیان چې د شیخ مست بابا په حواله مونږ ته دوه مختلف ذرائع یعنی نثر او نظم رارسیدلے دے - لږ وځیرو - او هغه اړخ څخه ئې اتفاق ولرو کوم

---

۱ " پښتو " ۱۹۸۰ء خوشحال خان خټک نمبر پښتو اکېډیمی پېښور ص ۲۹

چې د ادراک او فراست په لحاظ صحی او درست دے ـ او په هغه روايتی بيان هم څۀ بحث وکړو ـ چې محض روايت دے ـ او حقيقت نه لرِ لرې ښکاری ـ مونږ منو چې دا کشوف او کرامات د ميان محمد بادشاه خپله اختراع نۀ ده ـ بلکې د هغه زړو مناقبوٓ په اډانه او بنياد ولاړ مناقب او واقعات دی چې نن زمونږ دست و ګرفت نۀ بهر دی ممکن ده ـ چې چا څخه دغه زاړۀ قلمی کتابونه موجود وی ـ خو تر اوسه ورته د چا پام ګرزېدلے نۀ وی ـ او يا د زمانې مخالف بادونو ئې نام و نشان وران کړے وی او ضائع شوی وی ـ

(۱) مونږ د ميان محمد بادشاه دې بيان څخه اتفاق نۀ کوؤ ـ چې هغۀ د اکوړی د سرداری په دې افسانوی پلاټ کښې سرخېل کردار د اکوړ خان په ځائے ملک چنجو ښودلے دے ـ ځکه چې متفقه فېصله دا ده چې د خټکو د کورنی اولنے سرکاری اعزاز د اکوړ خان په نصيب شوے دے ـ

بل نيکۀ زما ملک اکو چې په خټک کښې
دۀ راوړه دا بـــــرخـــــه د لويی مقدمه

(۲) د تواريخی واقعات تر مخه چې مغل بادشاه محمد همايون د قنوج په مقام په ۱۷ مئ ۱۵۴۰ء د شېر شاه سوری نه شکست وخوړو ـ نو پنجاب پلؤ راوتښتېدو ـ خو هغه چې د دريائے جهلم

غاړې ته راورسېدو ـ نو هغه دریائے جهلم نه راپورې نه وتو ـ بلکې د دریائے جهلم په غاړه ئې جنوب پلؤ سنده طرف ته مخه وکړه ـ د سنده د امر کوټ په مقام اکتوبر ۱۵۴۲ء کښې جلال الدین محمد اکبر پېدا شو ـ همایون د ټټه په لار قندهار ته لاړو ـ محمد اکبر ئې قندهار کښې د خپل ورور مرزا هندال حواله کړو چې هغه ئې د کابل حکمران مرزا محمد کامران ته ورسوی ـ مرزا کامران دجوئے شاهی په غاړه زرخیزه سیمه د جلال الدین اکبر په نوم جاګیر مقرر کړه ـ چې وروستو دغه ځائے د جلال اباد په نوم مشهور شو ـ او چې درې کاله پس ۱۵۴۵ء کښې د ایران بادشاه شاه طهماسپ د قزلباش لښکر په امداد محمد همایون د خپل ورور محمد کامران نه کابل قبضه کړو نو محمد اکبر صحی سلامت خپل پلار ته حواله شو ـ

د میان محمد بادشاه دا بیان چې محمد همایون په تېښته ځان پېښور ته را ورسوؤ ـ د تواریخی حقائق برعکس روایت دے ـ د ۱۵۴۵ء نه تر نومبر ۱۵۵۳ء د محمد همایون او مرزا کامران تر مېنځ متواتر جنګونو دوران ممکن ده ـ چې دغه افراتفری او اړی ګړی دوران د مست بابا زامن سېد جابر او سید بابر د مغل لښکر د لاسه شهیدان شوی وی ـ او بیا وروستو یعنی نومبر ۱۵۵۳ء تا ۳۱ دسمبر ۱۵۵۴ء دوران محمد همایون د مست بابا د معذرت او معافی طلب ګار شوے وی ـ

محمد همایون په ۴ جنوری ۱۵۵۵ء دریائے سندھ نه لاهور
پلؤ روان شی او د سر هند په مقام د سکندر شاه سوری لښکر ته
شکست نه پس په ۲۰ جولائ ۱۵۵۵ء د دهلی د تخت مالک شی ۔
او عن چې په ۲۸جنوری ۱۵۵٦ء د مطالعې په وخت پوړو نه را
اړتاؤ شی او وفات شی ۔ او دغسې سید نادر المعروف مست بابا هم
۱۵٦۲ء کښې دارالفنا نه دارالبقا ته رخصت شی ۔

محمد همایون چې نومبر ۱۵۵۳ء کښې د مرزا کامران نه
مکمل طور فراغت مومی ۔ نو دغه زمانه به د سید بهادر المعروف
ابک بابا عمر تقریباً اتلس کاله وو ۔ او دغسې د تواریخی واقعات او
د میان محمد بادشاه د مناقب شیخ رحمکار تر مېنځ تر ډېره حده
سمون او برابرتیا راځی ۔

(۳) جلال الدین محمد اکبر ۱۵۴۵ء یعنی درې کاله عمر نه ۲۰
جولائ ۱۵۵۵ء پورې د خپل پلار محمد همایون د پښتنو خلاف په
دغه ټول مهمات کښې شامل وو ۔ او د دواړو ورونو تر مېنځ د کابل
د حمکرانی د جنګ و جدل او مهم جویی چشم دید ګواه دے ۔ دغه
زمانه د محمد اکبر په معصوم ذهن د پښتنو خلاف د کرکې او نفرت
څهٔ اثرات مرتب کېدل ۔ ددغه اثرات اظهار د تخت نشینی نه
وروستو په راتلونکی وختونو کښې مونږ د هغهٔ د مرګ تر وخته پورې
په ښکاره د پښتنو خلاف د نفرت په شکل کښې وینو ۔ چې د

هغوئ د تذلیل او سپکاوی سبب گرځی ـ د هغهٔ فوځ کښې پښتانهٔ د یو نر او بهادر قوم په حېث مونږ ضرور شامل وینو ـ ولې د منصب په اهم ذمه دارو د هغوئ تقرر د نیشت برابر دے ـ او د ایران د بادشاه شاه طهماسپ د پښتنو خلاف همایون ته لمسون او د خپل پلار له اړخه په دې قوم د بې اعتبارئ او مخالفت درس ، تلقین او نصیحت و وصیت محمد اکبر ته ښهٔ یاد وو ـ جلال الدین محمد اکبر چې ۱٦۰۵ء کښې وفات شی نو د راجه مان سنگهـ تحت راجپوت او شیعه منصبداران د هغهٔ د نمسی شهزاده خسرو په حمایت او د جهانگیر په مخالفت یو موټے او متحد شی ـ خو پښتانهٔ د تخت د وراثت په دغه جنگ کښې د جهانگیر په مرسته ودرېږی ـ او د جهانگیر زوېې شهزاده خسرو د راجپوت او شیعه سردارانو د لوئے قوت باوجود د تخت وارث نهٔ شی ـ او جهانگیر د خپل پلار محمد اکبر د پښتنو خلاف سخت گیر پالیسی تبدیل کړی او نرمی راولی ـ پښتانهٔ په مختلف نوازشات او جاگیرونو مشرف شی ـ اوهغوئ ځخه ډېر ښهٔ سلوک او رواداری وساتی ـ په دې اساس مونږ وئیلے شو ـ چې د جاگیر بخشیش او د نوښار خیر اباد تر مېنځ د لوئے لار حفاظت به د شهباز خان په نصیب شوے وی ـ نهٔ چې د اکوړ خان ـ البته اکوړ خان به ضرور د اکبر بادشاه په زمانه د پل سازئ او په دغه پل د راهدارئ وصولیابئ په یو غېر اهم

سند او اجازت د شاه بېګ ارغون ( خان دوران ) په توسط او يا هم د شاه بېګ له اړخه په دې نوازشات نمانځلے شوے وی ـ او لکه چې مونږ به وروستو د " بېګ " په کلمه بحث کوؤ ـ نو غالب خيال دے چې دغه شاه بېګ يا نوْر مغل حاکمانو څخه د انور خان يا انور بېګ المعروف اکوړ خان د " بېګ " په حواله څۀ نا څۀ مراسم رشته او تعلق ضرور موجود وو ـ ځکه چې اکبر بادشاه هېڅ پښتون ته د منصبدارۍ اهم مرتبه ورکولو ته تيار نۀ وو ـ د اکوړ خان د مغل څخه وفاداري يا رشته داری او د هغۀ د اخلاف قربانی ، د خټکو هم نوائ او خټکو کښې خپل مقام سرداری او تعلق به د شهباز خان د جاګير سبب ګرزېدلے وی ـ

" کۀ زمونږ خانـــه نـــۀ وے خټک ورک وو
د خواجه پـــه نـــوم اصيل دی څـــو غلامه
کۀ په توره خټک خپل کړې ګوندې خپل شی
ګنـــه هېڅ بـــه ئې خپل نۀ کړې په اکرامه "

" درست خټک زما پـــه دور
نـــامـــــور شو پـه دوران
کۀ خټک پـه مزکه پروت وو
پـــاس مې يوړو په اسمان"

(۴) د میان محمد بادشاه دا بیان چې :-

او غالب بابا د کفارو سره غزا شروع کړه ـ او د خوست نه د مسلمانانو معتقدو فوځ ئې راجمع کړو ـ او غزا ئې شروع کړه ـ او د خوست نه تر اباسیند غاړې پورې کفار ئې ووهل ـ او ملک ئې ترې خالی کړو ـ او کوم خټک چې په خوست کښې وسېدل هغه ئې له هغه ځائے نه را روان کړل ـ او د خوړې علاقې ته سره د بال بچ راغلو ـ او په دغه ځائے کښې ډېره شو ـ چې اوس ئې مزار شریف دے ـ او دغه ځائے ته " مروبه " وائ ـ او د نظام پور په خوا کښې دے ـ او په دغه وخت کښې ددهٔ سره ډېرش زره منجوران یعنی قوم د خټک راغلی وو ـ او ددهٔ لنګر خوراک ئې خوړو ـ او لاس په نام خدمت ته ولاړ وو[1] ـ

زما په نزد په دې روایت کښې ډېرش زره منجوران یعنی قوم خټک مبالغه ښکاری ـ ۱۴۹۵ء \ ۹۰۰ھـ کښې چې غالب بابا "مروبه " ته تشریف راوړو ـ نو باید چې څو تنه خټک هم د هغوئ په اردل کښې دلته راغلی وی ـ او دلته مېشته شوی وی ـ او چې په کومه زمانه یعنی ۱۵۳۳ء ( د مست بابا د ژوند دوران ) د پېښور بشمول خوړه نیلاب سیمه غوری قبائل قبضه کړه ـ نو دغلته به څو

---

[1] تاریخ بدرجهان ، جلد اول ص ۱۰۴

تنه منجوران ضرور موجود وو ـ ګونډې د دلازاک د شکست نه پس به غوری قبائل د هغوئ په رشته منسلک د خټکو دومره لوئے تعداد دلته څنګه په مېشت برداشت کوؤ ـ د نوښار نه مخ په ښکته دا ټوله علاقه د غوری قبائل د مال مويشى څرونې چراګاه وه ـ عن چې دغه زمانه د نوښار وجود هم نۀ وو ـ او ۱۵۸۷ء نه وروستو چرته زېن خان کوکا دلته په ړومبی ځل يوه قلعه تعمير کړه ـ غورى قبائل کۀ د څو خټکو استوګنه په دغه سيمه برداشت کړې هم وی ـ نو دوئ به د مست بابا د منجورانو او خادمانو په حېث اباد پاتې شوی وی ـ او بيا ډېر وروستو به د دوئ تعداد زيات شوے وی ـ او ۱۵۸۵ء نه وروستو چې اکبر اعظم د غوری قبائل خصوصاً او د يوسف زو عموماً تباهی پسې راواخسته ـ نو په دې سيمه به د خټکو ابادی مزيد تقويت او زيادت موندلے وی ـ او بيا په تېره تېره داسې حالت کښې چې د غزنی ګردېز او خوست په علاقه چې کوم کاروان د هندوستان په لور تلو ـ نو دوئ به چې دريائے سندھ ته را ورسېدل نو دلته د دريائے سندھ شمالاً د خوړه نيلاب په وادی خپل منزل جاری ساتۀ ـ او بيا د دريائے کابل جنوباً پورته راتلل ـ او نوښار نه پورته شېخ تپور يا موجوده امان کوټ څخه به دريائے کابل نه پورې وتل ـ او مخ په ښکته دريائے سندھ نه د هند په لور پورې وتل ـ دغسې " مروبه " د کاروان دپاره نۀ يوازې يو پړاؤ او

منزل وګرزېدو - بلکې دلته ئې د غالب ګل بابا او بيا وروستو د مست بابا نه د رشد فېض و برکات اخېستل - او دغسې ددې ځائے قدر و منزلت نۀ يوازې د يو پړاؤ بلکې د روحانی تسکين په سبب شب و روز مخ په ترقی وو -

(۵) مـونږ د ميان بهادر شاه ظفر کاکاخېل د کتاب شېخ رحمکار ص۳۱۹ دې بيان څخه هم اتفاق نۀ لرو - چې :-

جب (اکبر بادشاہ) ۱۵۸٦ء میں اٹک آیا۔ یہاں اس کے پاس علاقہ پشاور کے گردونواح کے سفید پوشوں اور ملکوں کا ایک جرگہ آیا۔ اور اس سے درخواست کی۔ کہ شاہراہ اعظم کی حفاظت کا انتظام کیا جائے۔ چنانچہ اکبر نے ان ملکوں کے مشورے پر قبیلہ خٹک کے ایک ملک انورخان المعروف بہ اکوڑخان کوشاہراہ کی حفاظت کا کام سونپا -

د ۱۵۸٦ء خواؤ شا نوښار نه ښکته سيمه غېر اباده وه - او د شېخ ملی د وېش مطابق دا ټوله سيمه بشمول وادی نيلاب د غوری قبائل د مال څرونې چراګاه وه - د سيد حامد بخاری او د راجه بير بل د قتل وروستو د اکبر بادشاه غوری او يوسف زی قبائل څخه عناد او دشمنی د تاريخ د صفحات يو روڼ دليل او ثبوت دے - داسې حالت کښې د پېښور خواؤ شا علاقو د مشرانو جرګه او د دوئ په مشوره د خټک قبيلې د يو فرد د دوئ په سيمه حاکميت تعجب خېز بيان دے - البته ۱۵۸۷ء کښې د پېښور او دريائے سندهـ تر مېنځ په لوئے لار د شاهراه د حفاظت په غرض په مختلف مقامات د سرايانو تعمير او په ۳۱ اګست ۱۵۸۹ء د کيشتو د پل په

ذريعه د اکبر بادشاه په اول ځل دريائے سندهـ نه راپورې وتل او دلته د خير اباد په مقام څو ورځې اتل کېدل او د شاه بېګ " خان دوران " په سفارش او توسط د انور خان المعروف اکوړ خان په ملازمت مقررېدل مطلب او معقوليت لري ـ خو دغه سرکاري ملازمت يا منصب به محض د کيشتۍ سازۍ ، مرمت او ددهٔ ماتحت د څو ملازمانو تقرر چې د کاروان نه محصول وصول کړي ـ تر حده محدود وو ـ

(٦) د اکوړ خان اصلي نوم ملک اکو وو ـ ملک احمد وو يا انور خان وو ـ په دې يو متفقه فېصله خو په حقيقت کښې د خوشحاليات د ماهرينو کار دے ـ زمونږ په نزد خو دومره بيان کافي دے چې پښتو کښې " اکوړ " يو بې معنٰی نوم دے ـ او عام مستعمل نهٔ دے د پښتنو په ځينې لهجو کښې " اکوړ " غوز ( اخروټ ) ته وائ ولې دغه نوم څوک خپلو بچو دپاره نهٔ خوښوي ـ دغه وجه ده چې د "اکوړ" نوم نهٔ خو د اکوړ خان نه اول او نهٔ وروستو د چا نوم شو ـ "چنجو " او " اکوړ" دواړه نومونه هندي ژبو څخه ماخوذ ښکاري ـ دغه دواړه نومونه د ميان محمد بادشاه دې بيان ته تقويت ورکوي ـ چې ګوندې چنجو او د هغهٔ زوئې انور خان المعروف اکوړ خان د هندوستان نه راغلي دي ـ د ميان محمد بادشاه دغه تواريخي واقعه او مناقبات لکه چې په زړو منقبتونو بناء لري ـ هېڅ بې هېڅه په

هغهٔ داسې څهٔ ضرور وی - چې یو پښتون ئې هندی نژاد یا غیر پښتون ښکاره کوؤ - چنجو په هندی کښې مښوکې او چنچی په معنٰی د ستنو ( د ګنډلو ) هغه تېکی یا ګوتی ته وائ جې دغه ستنې په هغې کښې په حفاظت کېښودلے شی - دا هم کېدے شی چې چنجو یا جنجو د هند د نورو ژبو لکه سنسکرت ، پالی ،ګجراتی مرهټی وغېره ژبو نه ماخوذ وی - چنجی یا جنجی د مدراس (دکن) په سیمه د یو علاقې نوم دے[1] -

د جان جویا نور الفاظ مخفف او مفغن هم امکان لری -

(۷) د میان محمد بادشاه دې بیان څخه " چې اکوړ خان هندوستان نه راغلے دے " شاید څوک متفق نهٔ شی - خو دې حقیقت نه هم انکار کېدے نهٔ شی - چې پښتنو کښې ډېر قومونه داسې دی چې په اصلیت کښې پښتانهٔ نهٔ دی - ولې د مودو راسې دلته د مېشت په وجه ځان ته پښتون وائ - کسبه کمین ذات پښتانهٔ نهٔ دی - او نهٔ نور اقوام یا ذاتونه لکه سید ، شیخ ، اعوان وغېره - داسې کافی مثالونه موجود دی - چې دغه نسلونه د پښتنو د ځینې نسلونو په علاقه د بود و باش په اساس ځان د مومند ، خلیل ، داؤدزی ، خټک یا یوسف زی په نومونو متعارف کوی - او

---

1 تاریخ مرصع ص ۱۱۲۴

خپل شناخت او پهچان د پښتنو ددغه ذیلی قومیتونو په نوم کوی ۔ خوشحال خان خو بیا هم د چنجو په پنځم او افضل خان په اووم نسل نمسے دے ۔ د پښتون ځانته یو شناخت دے ۔ او ددغه قومونه ځانله اصل نسل دے ۔ ولې نن دغه اقوام هم د پښتو ژبې د وېنا او دلته مودو راسې د استوګنې په وجه ځان پښتانهٔ حسابوی ۔ خو حقیقت دغسې نهٔ دے ۔ او بیا په تېره تېره د پاکستان جوړېدو نه وروستو مردم شماری محض د ژبې په بنیاد ده ۔ او د نسل ذکر بېخی ختم دے ۔

اوراب بھی مرسوم ہے۔ کہ اکثر مردمان اقوام رذیل مثل اعوان، باغبان، نجار، آہنگر، مطرب وغیرہ ہندی وکشمیری نے متوطن افغانستان ہونے سے بہ آخر الفاظ اسمائے خود لفظ ,,خان،، جو علامت ا ے افغانی ہے ملا رکھا ہے [1]۔

خوشحال خان ددې حقیقت اقرار په دې الفاظو کوی :-

چې مغلـــو سره کښېناستې مغل شې
د افغان سره کهٔ کښېنی نور افغان شی

د اردو ژبې رنګین مزاج شاعر اسدالله خان غالب ( ۱۷۹۷ء تا ۱۸٦۹ء اباؤ اجداد ترک النسل وو ۔ ددهٔ غُر نیکهٔ تورسم خان په سمر قند کښې رهائش پذیر وو ۔ ددهٔ په اولاد کښې قوقان بېګ د

---

(۱) تاریخ ضلع پشاور از گوپال داس ، ص ۴۰۵

معاشي بدحالی په سبب د مغل بادشاه محمد شاه په دور حکومت هنـــدوستان تـــه راغلو ـ د قوقان ژبه ترکی وه ـ د قوقان بېګ دوه زامن عبدالله بېګ او نصرالله بېګ وو ـ غالب د عبدالله بېګ ( وفات ۱۸۰۲ء) زويې وو ـ څوک چې د اردو ژبې په اوچتو شاعرانو کښې حساب دے ـ او کهٔ د پښتو ژبې د خوشحال خان هومره شهرت نهٔ لری ـ ولې کم ترې هم نهٔ دے ـ خوشحال خان په څلور پنځهٔ پېړو پښتنو څخه په زيست روزګار او د دوئ کورنی د خټکو په مشری مامورتيا او تقرر په وجه پښتون قوم کښې داسې ګډ وډ او ورداخل شو ـ چې د " بېګ " نسل کهٔ په هند کښې په دريمه پېړی په اردو ژبه غالب شان شاعر پېدا کړو ـ نو د پښتنو په سيمه د هندوستان نه د " بېګ " نسل راغلی اکوړ خان په څلورم پشت خوشحال خان غونډې شاعر وزېږه وو ـ چې د پښتو ژبې عظيم شاعر ثابت شو ـ بهر حال کهٔ مونږ د محمد بادشاه کاکاخېل ډېر روايتی او اختراعی بيانات او واقعات څخه اتفاق نهٔ کوو ـ ولې د خوشحال بېګ او جميل بېګ په نومونو کښې د " بېګ " کلمې اشتراک مونږ مجبوره وی ـ چې لږه ډېره پره د ميان محمد بادشاه دغه درايتی بيان څخه هم وساتو ـ او بېخی ترې غافل نهٔ شو ـ دې څخه اتفاق او نهٔ اتفاق د هر چا خپل کار دے ـ البته د ميان محمد بادشاه د تاريخ بدرجهان او د شيخ رحمكار دغه واقعات او مناقبات د خوشحاليات

د ماهرینو دپاره لمحۀ فکریه او د تجسس وړۀ مناقب دی ـ زما ځیني لیکوال ملګری د " بېګ " کلمه د مختلف ډکشنرو په حواله سردار ، مشر یا بزرګ ښائ ـ منم خو عرض دا دے چې د نوم وجود اول او ډکشنرئ وروستو مرتب کېږی ـ

(۸) د پښتو ژبې د دوه نوموړی لیکوالو تاریخ لیکونکی مؤرخینو په نزد د اکوړ خان اصلی نوم انور خان دے ـ خوشحال خان د خپل غُر نیکۀ نوم اکوړ خان ښائ ـ تاریخ مرصع ورته اکوړ خان او خصوصاً ملک اکو نوم اخلی ـ د اکوړ خان کۀ اصلی نوم انور خان وی ـ نو بیا هغه د یو بې معنې او غېر معروف اکوړ خان په نوم ولې یاد او مشهور شو ـ او دغسې محمد درویش د چنجو په نوم ولې مونږ ته متعارف شو ـ

د خوشحال خان د دوه زامنو نومونه یحیٰی خان او شهباز خان دی ـ چې د پلار او نیکۀ یاد تازه وساتی ـ د افضل خان د یو زویې نوم اشرف خان وو ـ سکندر خان بن خوشحال خان د یو زویې نوم هم انور خان دے ـ چې ۱۷۰۵ء ا ۱۱۱٦هـ کښې ځوانیمرګ وفات وو ـ شاید سکندر خان د خپل اسلاف د یاد تازه ساتنې او احترام په موجب د خپل زویې نوم انور خان اېښودے وی سکندر خان د انرر خان او منګل ذکر په ګڼ شمېر اشعارو کښې کړے دے ـ

هجران بیا مـــونـــدم یوازې زړۀ مې کوژی

انـور خان زویه مې ناست په پهلو نۀ دے

(۹) د تاریخ مرصع او ځینې نور مؤرخین دا الزام او دلیل غلط دے چې ګوندې یوسف زی د شاهراه اعظم د کاروان لوټل ذمه دار وو ـ او اکوړ خان د یوسف زی ددې طرز عمل خلاف سردار مقرر شو ـ اکوړ خان د اکوړی په مقام د کیشتو ذمه دار مقرر شو ـ چې د اټک په مقام د کیشتو پل د ناکامی صورت کښې د اکوړی پل نه د متبادل لار کار واخلی ـ شاهراه اعظم د غوری قبائل علاقه کښې وه او دریائے کابل د غوری قبائل او یوسف زی ترمېنځ حد فاصل وو ـ حقیقت دادے چې غوری قبائل د سید حامد بخاری او یوسف زی د راجه بېربل د قتل ذمه وار وو ـ اکبر اعظم ددې دواړو لویو قبیلو مخالف وو ـ او دغه وجوهات د خټکو د ترقی او د مغلو د اعتماد باعث شول ـ

(۱۰) د خوشحال خان د بیان نه ظاهر ده چې د اکبر اعظم په زمانه ددۀ نیکۀ یحیٰی خان د خټک اولس سلطان مقرر شو ـ څوک چې ښـۀ تورزن او مړنے وو ـ هغۀ په ړومبی ځل د اکبر په زمانه په مصری بانډه حمله وکړه ـ او د یوسف زی یو مشر ملک مامو ئې قتل کړو ـ او بیا شهبازخان او خوشحال خان د یوسف زی خلاف

جنګونو ته دوام ورکړو ـ او بیا دا جنګونه د شاهجهان په دور حکومت کښې ښهٔ تاؤدهٔ وو ـ او لکه څنګه چې اکبر اعظم د مغل حکومت د قیام اصل بانی دے ـ دغسې یحیٰی خان د خټک قوم د مشری مرکزی کردار دے ـ نهٔ چې اکوړ خان دے ـ

(١١) د اکوړ خان د قبر متعلق متضاد رائے دی ـ څوک ئې په اکوړی کښې ښخ ګڼی او څینې وائ چې دے په مروبه ( نظام پور) کښې د مست بابا د مزار په احاطه کښې ښخ دے ـ څومره پورې چې د اکوړی تعلق دے نو د اکوړی ابادی څو وارې د کابل د سیند د لاسه لاهو شوې ده ـ او داسې حالت کښې د اکوړ خان قبر صحی سلامت پاتې کېدل به معجزې نه خالی نهٔ وی ـ

,, بتاریخ ۲۹ جیٹھ روز چہارشنبہ ۱۸۹۸ بکرمی (بمطابق ۱۸۴۲ء ) میں جو بڑا بھاری سیلاب دریائے اباسیند میں آیا۔ اور دریائے لنڈا کا پانی بہ باعث عدم شمول ہمراہ پانی اٹک کے جو بہ سبب قوت طغیانی سیلاب بڑا تند اور تیز روان تھا ---------- کہ سب دیہات بغلی دریا کی آبادیاں بیخ و بنیاد سے اکھاڑ کر بہادی ۔ اور بڑا نقصان جانی و مالی خلائق خدا کا ہوا ---------- آبادی دیہہ جڑ سے منہدم ہوگئی [1] ،،

---

(١) تاریخ ضلع پشاور از گوپال داس ، ص ٣٠٩

میان محمد بادشاه کاکاخېل او میان بهادر شاه کاکاخېل خیال

لري - چې د اکوړ خان قبر د مست بابا د مزار په احاطه کښې دے -

## میان بهادر شاه لیکي :-

" د حضرت مست بابا د مزار په احاطه کښې یو قبر دے چې د هغې په حقله ما دا روایت لیدلے او اورېدلے دے چې دا د ملک اکوړ خان قبر دے [1] " -

## ډاکټر راج ولي شاه خټک لیکي :-

د اکوړ خان بابا قبر په اکوړې کښې د جان محمد خان د حجرې نه بهر په مقبره کښې د سپین سنګ مرمر نه ساز کړے شوے دے - بې شانه زیات بهادر او سخي وو [2] -

(۱۲) د میان محمد بادشاه د تاریخ بدرجهان د بیان یوه لویه اډانه د اکوړې جهانګیري افضل اباد ، تور ډهېر او ځینې نور هغه علاقې چې د چنجو د اخلاف زېر اثر وې - دلته د هندکي قوم یو لوئے تعداد بود و باش د هغهٔ خیال ته تقویت ورکوي - ډېره اسماعیل خان کښې د سرائېکي اکثریت اباد دے - چې د ملتان د مظفر خان

---

1 پښتو خوشحال خان نمبر ۱۹۸۰ء پښتو اکېډیمي پېښور ص ۱۰۲

2 وګورئ زیست روزګار د فقیر جمیل بېګ ص ۱۹

د شکست نه پس په فرار او دلته په پناه اخستو مجبور شول ـ نو د
هزاره جات په علاقه د بنده بهراګی او رنجیت سنګهـ د بربریت او
د انګریز سرکار د ملازمت په سلسله کښې دغلته هندکی اباد شول ـ
خو اکوړی ، افضل اباد وغېره کلیوالو سیمو کښې د دومره لوئے
تعداد هندی نژاد قومیت ابادی څهٔ معنی لری ـ

(۱۳) د میان محمد بادشاه د بیان مطابق چنجو اکوړ خان
هندوستان نه راغلی وو ـ د خوشحال خان د دستارنامه او اشعار
مطابق هغهٔ خټک دے ـ اوس څوک درست او څوک غلط دے ـ دېدې
فېصله مشکل کار دے ـ البته داسې ګڼ شمېر مثالونه موجود دی
چې یو کس په اصل نسل پښتون نهٔ وی خان ته پښتون وائی ـ مومند
بنګش ، خټک نهٔ وی ـ خو د زمانې راسې دغلته په مېشت څان
ددغه قبائل یو فرد ګڼی ـ او نوم څخه علاقائی نوم استعمالوی ـ لکه
شېخ رحمکار پښتون کرلانی ، حضرت میان عمر چمکنی ، شېخ
نسک خټک کرلانی او د نن سبا شاعرانو کښې یونس خلیل یا ایاز
داؤدزی مثال واخلئ ـ چې دواړه الکوزی درانی دی ـ خو څان
څخه خلیل او داؤدزی لیکی ـ دغسې نور مثالونه هم زمونږ خواؤ شا
موجود دی ـ

خوشحال خان او د هغهٔ زامن په پنځمه شپږمه پېړی څان
خټک بولی ـ او بیا په تېره تېره د خټکو علاقه مودو راسې د هغوئ

ماتحت او جاگير وه ـ او د هغوئ شناخت او پېژندګلو د خټک قوم د سردارئ په بِناه وه :-

حديث شريف دے :- " مَنْ تَشَبهِ بِقَوْمٍ فَهُوَمِنْهُمْ "

ترجمه :- چا چې ( په قول و فعل ) د کوم قوم په شان ځان کړو ـ نو په هغه قوم حساب شو ـ

(۱۴) وائ چې د خوشحال خان ګڼ شمېر ښځو نه بې شماره اولاد وو ـ په اسلام کښې د څلور ښځو اجازت دے ـ ايا د هغۀ دغه نورې ښځې وينزې وې ـ او کۀ وينزې وې نو دغه وينزې د کوم اهم جنګ په نتيجه د هغۀ ښځې وې ـ د خوشحال خان نه علاوه د مغل دوران مونږ نور هم ډېر سرکرده پښتانۀ مشران وينو ـ خو هغوی د شرعې او اسلامی قانون پابند وو ـ

(۱۵) د جنوبی اضلاع خټک ګډېږی ولې د دوئ برعکس د شمالی اضلاع خټک نۀګډېږی ـ کۀ مونږ دا اووايو چې د شمالی اضلاع خټک غوری او يوسف زی قبائل څخه جوخت د استوګنې په وجه ګډا پرېښوده ـ نو دغه دليل به څکه دروند نۀ وی ـ چې شمالی اضلاع کښې خټک ځانته يو منفرد شناخت لری ـ او د جنوبی اضلاع خټک څخه په رشته او دود دستور اوس هم ډېر زيات قربت او نزديکت لری ـ البته کۀ مونږ دا ووايو چې د خوشحال خان اسلاف او اخلاف نۀ ګډېدل نو بيا داسې څۀ وجوهات وو ـ آيا دوئ خټک قوم

ځخه تعلق نهٔ لرلو ـ او بیا په تېره تېره شمالی اضلاع کښې د خټک دومره لوئے تعداد د خټکو ګډا نه داسې په اسانه ځنګه دستبردار شول ـ ایا دا د خوشحال خان د اباؤ اجداد د نهٔ ګډېدو اثرات وو ـ یا بل ځهٔ ـ البته مونږ د خوشحال خان دِدې شعر په رڼا کښې وئیلے شو ـ چې د شمال اضلاع خټکو ګډا ځکه پرېښوده چې :-

درست عالم په خوئ خصلت د خپل بادشاه وی
لــکــه دے وی د عــالــم وی دا خــصــال

---

# یحیٰ خان

---

د سرفراز خان عقاب خټک مطابق اکوړ خان ۱۵۹۴ء\۱۰۰۲ھ کښې

د میان محمد بادشاه کاکاخېل مطابق ۱۵۹۰ء \ ۹۹۸ھ کښې

د میان بهادر شاه کاکاخېل په نزد ۱۶۰۲ء\ ۱۰۱۰ھ کښې

او د اقبال نسیم خټک مطابق ۱۵۹۷ء \ ۱۰۰۵ھ کښې

د نازو خان بولاق توری خېل د لاسه د پیر سباک په مقام قتل شو۔ د هغهٔ د وفات نه پس د هغهٔ په اتهٔ زامنو کښې مشر زویې یحیٰ خان د مغل له اړخه د خټک قوم په سرداری مامور شو ـ یحیٰ خان ډېر زر د بولاقو خټکو نه د پلار د قتل بدل واخېستو ـ د یحیٰ خان متعلق خوشحال خان خټک لیکی :-

ښو به نیکهٔ ستا یم یحیٰ خان جنت ئې ځائے شه
روغ لکـــه یوسف وو درست تـــر سره تـــر قـــدمه
بل سړے کهٔ ســـور وے دے پیـــاده ورسره سم
قـــد قـــامت ئې هـــومره د مړانې چار پرې تمه

"افضل خان یوسف زئیوں اور خٹکوں کے درمیان عداوت کی وجہ یہ بیان کرتا ہے۔ کہ خٹکوں نے یوسف زئیوں کو مصری بانڈہ سے جلا وطن کیا تھا ------------ یوسف زئیوں کے اچھے اچھے سردار مارے گئے۔ جن میں ملک ماموئیٰ خان کے ہاتھ سے قتل ہوا [۱] "

د یوسف زی او د خټک د دشمنۍ چې ښومره پورې تعلق دے - مونږ ته په ړومبی خل دا بیان مخې ته ښهٔ ښکاره راځی - چې یحیٰ خان اولنے سړے وو - چې د یوسف زی په علاقه ئې د دخل اندازی لاس پورې کهٔ - او لکه چې ښکاره ده - د یحیٰ خان د وفات کال ۱۶۱۰ء / ۱۰۱۹ھـ دے - او د نورالدین محمد جهانګیر بادشاهت ۱۶۰۵ء / ۱۰۱۴ھـ تا ۱۶۲۷ء / ۱۰۳۷ھـ دے - نو لازمی ده چې د یوسف زی په علاقه حمله او چپاؤ به لازمی طور د اکبر په زمانه شروع شوی وو - ځوک چې د پښتنو د سر دشمن او سخت مخالف وو - او لکه چې د یو اندازې مطابق د یحیٰ خان ژوند ۱۵۶۲ء / ۹۶۹ھـ تا ۱۶۱۰ء / ۱۰۱۹ھـ دے - او اکبر اعظم د مرزا

---

[۱] خوشحال خان خٹک، از دوست محمد کامل ، ص ۲۲

حکیم د مرګ ۱۵۸۵ء \ ۹۹۳هـ نه پس په وړومبی ځل ۱۵۸۹ء \ ۹۹۷هـ کښې د اټک په مقام د کیشتو پل په ذریعه را پورې وځی نو اکبر اعظم به د منصبداری اعزاز یحیٰی خان ته ورکړے وی ـ نه چې اکوړ خان ته ـ او ۱۵۸۹ء \ ۹۹۷هـ یا دې نه پس به په وړومبی ځل یحیٰی خان د یوسف زی په ملک مصری بانډه چپاؤ کړے وی ـ

" اول جنګ دا وو چې یوسف زی ئې د مصری بانډې نه جلاوطن کړل ـ یحیٰی خان ملک مامو مړ کړو[۱] "

البته ددې خاندان د ملازمت ابتداء به د ملک اکوړ نه د یو ادنیٰ ملازم په حېث یا د کیشتو په پل د راهداری د وصولی نه شروع شوې وی ـ او ملک یحیٰی به په دغه پل وروستو د څو ملازمانو مشر مقرر شوے وی ـ

یحیٰی خان د ځینی ختکو د یو ملک ښادی خان سره په جنګ کښې د خپل ځوان زویې عالم خان سره قتل شو ـ او لکه څنګه چې ملک اکو د خپل زویې یوسف سره یو ځائے د نازو خان بولاق د لاسه قتل شوے وو ـ دغسې یحیٰی خان سره هم یو زویې د شهادت جام نوش کړو ـ

---

[۱] تاریخ مرصع ، ص ۲۶۸

# شهباز خان

د سرفراز خان عقاب خټک مطابق یحیٰی خان په ۱۶۱۰ء / ۱۰۱۹هـ کښې
د میان محمد بادشاه کاکاخېل مطابق په ۱۶۱۰ء / ۱۰۱۹هـ کښې
د میان بهادر شاه کاکاخېل په نزد ۱۶۲۶ء / ۱۰۳۵هـ کښې
او د اقبال نسیم خټک مطابق ۱۶۲۱ء / ۱۰۳۰هـ کښې
چې د ځینې خټکو د ملک ښادی خان د لاسه د نوښار په مقام قتل شو ـ نو د مغل له اړخه د هغهٔ زوېې شهباز خان د خټکو منصبدار شو ـ د شهباز خان د ولادت کال خوشحال خان خټک او افضل خان ۱۵۹۲ء / ۱۰۰۰هـ ښودلے دے ـ د شهباز خان د ژوند حالات مونږ ته ډېر په تفصیل ددغه دواړو له اړخه د شعر او تاریخ مرصع په وساطت رارسی ـ خو دې نه علاوه د شیخ رحمکار هغه مناقب هم دی ـ چې شیخ رحمکار ځخه د شهباز خان د عقیدت او د پیری مریدی د مراسم په توګه بیان دی ـ دې مناقبات کښې د

تولونه اهم او چشم دید گواه عبدالحلیم گل بن حضرت شیخ رحمکار دے ـ د هغهٔ مناقب او خصوصاً د شهباز خان په حواله افضل خان په تاریخ مرصع کښې د فارسی نه پښتو نثر کښې راترجمه کړی دی او هم دغه مناقب میان محمد بادشاه کاکاخېل مناقب شیخ رحمکار کښې د پښتو د مثنوی طرز په شاعری کښې ډېر په خونده ور انداز بیان کړی دی ـ مونږ د شهباز خان متعلق د کشوف او کرامات دغه منقبتونو کښې هغه منقبت د یو مثال په توګه اخلو ـ کوم منقبت چې د شیخ کمال الدین بن رکن الدین المعروف شېر خان بن شیخ عیسیٰ د خروج په وخت د شهباز خان کردار ښائ : ـ

" نقل په وخت د کمال خان چې په میانځ د مغلو د پښتنو واقع وو ـ تمام پښتانهٔ په یو لور وو ـ او په یو اتفاق ئې جرګه او مرکه وه ـ مګر شهباز خان چې په لوری د مغل وو ـ هرګاه چې پښتنو په مغلو غلبه وکړه ـ مغل په قلعه کښې د پېښور قلعه بند شول ـ او په تنګ ورسېدل ـ شهباز خان له ویرې د پښتنو و اټک ته روان شهٔ[1] "

لکه چې د تاریخ د صفحات نه په ډاګه ده چې د جهانګیر د وفات نه پس شاه جهان د پښتنو خلاف د بې اعتمادۍ هغه پالیسی سر دوباره اختیار کړه ـ کومه چې د اکبر اعظم وه ـ هغهٔ د

---

[1] تاریخ مرصع ص ٥٨٦

جهانګیر بادشاه پښتون مرستیال لکه خان جهان لودی ( شهادت ۲۱ جنوری ۱۶۳۱ء ) او دریا خان روهیله په دې مجبور کړل ـ چې د شاه جهان خلاف بغاوت وکړی ـ د خان جهان لودی د بغاوت او خروج نه چې پښتانهٔ خبر شول ـ نو د شیخ کمال الدین بن شیخ رکن الدین چې دغه زمانه پېښور کښې وو ـ سرکردګۍ تحت د مغل خلاف را وپارېدل ـ د پښتنو داسې یوه قبیله نهٔ وه ـ چې د مغل خِلاف په دې بغاوت کښې شامل نهٔ وو ـ عن چې ټول ختک هم د پښتنو ملګری وو ـ او د دوئ لښکر د هزار خانی په مقام پړاؤ وو ـ د پېښور د جنګ دا واقعه جولائ ۱۶۳۰ء کښې واقع شوې وه ـ

" د شیخ کمال الدین داؤدزی د خروج په وخت خوشحال خان د اتلسو کالو زلمے وو "

" د بنون تیراه بنګش بالا و پائین پښتانهٔ او ټول ختک چاوچې او توری قبائل پېښور نه اووهٔ میله لرې د یو لم ګذر په مقام کمال الدین څخه یو ځائے شول[1] "

ددې جنګ په موقع کهٔ یو اړخ ته ټول پښتانهٔ متحد او یو موټے وو ـ نو بل اړخ د ددې قبیلو نور مشران کهٔ هر څو د مغل نمک خوار وو ـ ولې در پرده پښتنو څخه ملګری وو ـ اوس سوال دا پیدا

---

[1] عمل صالح جلد اول ، ص ۳۴۷

کېږي چې د پښتنو ددې دومره لوئے اتحاد باوجود شهباز خان ولې يک تنها د خپل کور د افرادو څخه د اټک په لور د فرار لار اختيار کړه - او ټول خټک چې د مغل خلاف پښتون اتحاد کښې شامل وو - شهباز خان کم نه کم داسې حالات کښې غېر جانبدار ولې پاتې نۀ شو -

د ميان محمد بادشاه دا بيان چې چنجو او اکوړ خان د هندوستان نه راغلی وو - ايا د شهباز خان دا حرکت د ميان صاحب د بيان تائيد او تصديق نۀ دے - چې د مغل په فرمانبرداری کښې خپل وطن ته په تېښته مجبور وو - او ټول خټک يو اړخ وو او دے بل طرف وو - او بيا وروستو د هغۀ د زويې خوشحال خان خټک په دې شعر کښې تر کومه صداقت ښکاری :-

مستجاب موممند کـــۀ چـــرګه د مغل ده

زۀ خوشحال خټک خو باز يم ځائے مې غر

وائ چې د خټکو د مشری ابتداء د اکوړ خان د زمانې راهسې رسمی وه - ولې جهانګير بادشاه دا په حقيقت بدل کړه - چې شهباز خان ئې د جاګير او منصب په مرتبه سرفراز کړو -

مراة الخيال د شېر خان لودهی ليکلے کتاب دے چې ۱۹۰۷ء ۱ ۱۳۲۴هـ کښې په بمبئ کښې چاپ شوے دے - وګورئ مراة العالم تاريخ اورنګزيب از بختاور خان جلد اول ( فارسی )

چاپ ۱۹۷۹ ادارۂ تحقیقات پاکستان ، دانشگاه پنجاب لاهور ـ هغهٔ ددې واقعې ذکر کړے دے ـ او د میان محمد بادشاه د نثر په ژبه منقبت کښې هم دې واقعې ته اشاره ده ـ چې ۱٦٢٧ء | ۱۰۳۷هـ کښې جهانګیر بادشاه حضرت شیخ رحمکار ته د جاګیر پېشکش وکړو ـ ولې هغوئ مبارک قبول نهٔ کړو ـ او د بادشاه دغه مراعات ئې خپل مرید خاص شهباز خان ته حواله کړل ـ د شهباز خان حضرت شیخ رحکار څخه عقیدت د ډېر مناقبونه ظاهر دے ـ او عقل ته نزدې ده چې حضرت شیخ رحمکار د جهانګیر له لوریه مهربانی ، نذرانه او عطیات په خپل مرید شهباز خان پېرزو کړی وی ـ څکه خو چې یوه ورځ شیخ رحمکار د شهباز خان د اس تعریف وکړو ـ نو شهباز خان مخې څخه دغه ښائسته اس د حضور لنګر خانې ته نذرانه کړو ـ دې نه علاوه چې مونږ د مغل بادشاهانو د پښتنو متعلق رویه نوازشات او فیاضی باندې نظر واچوؤ ـ نو صرف یو جهانګیر بادشاه وو ـ چې پښتنو څخه ئې په خصوصی توګه مراسم وو ـ او ددې قوم ئې ډېر قدر او لحاظ ساتهٔ ـ

میان بهادرشاه کاکاخېل پخپل کتاب شیخ رحمکار ص ۲۳۵ ,, جہانگیر کے ساتھ حضرت شیخ رحمکار کی ملاقات کا واقعہ،، د عنوان لاندې دا ټول واقعات بې بنیاده او من ګهړت ګڼی ـ هغه لیکی :-

ایک غلط فہمی کا ازالہ ضروری سمجھتا ہوں۔ وہ یہ کہ اکثر تذکروں میں یہ روایت لکھی ہوئی ملتی ہے۔ کہ تخت نشینی کے بعد جہانگیر نے کابل جاتے ہوئے بمقام نوشہرہ حضرت شیخ رحمکار کاکا صاحب سے ملاقات کی اوان کو خیر آباد سے نوشہرہ تک کا علاقہ بطور جاگیر دینے کی پیشکش کی۔ مگر حضرت ممدوح نے اس کے لینے سے قطعی انکار کردیا۔ اور حضرت شیخ جی صاحب کی سفارش پر یہ جاگیر خان شہباز خان رئیس خٹک کو دی گئی جو حضرت جی صاحب کا مرید تھا۔

اسی طرح یہ واقعہ بعض تذکروں میں حضرت رحمکار صاحب کاکا صاحب کی بجائے حضرت مست بابا قدس سرہٗ سے منسوب ہے۔ اور یہ لکھا ہے۔ کہ اکبر کے کسی صوبیدار نے یہ علاقہ حضرت مست بابا کو بطور جاگیر دینے کی پیشکش کی مگر حضرت نے اس کے لینے سے قطعی انکار کیا۔ اور پھر آپ کی سفارش پر یہ جاگیر ملک اکوڑ خان کو دی گئی۔ اسی طرح میاں بادشاہ مرحوم کے قلمی مسودے میں مراۃ الخیال کے حوالے سے یہ لکھا ہے۔ کہ جب جہانگیر اپنی سلطنت کے اخری سالوں میں کابل جارہا تھا۔ تو اس نے بمقام نوشہرہ حضرت شیخ رحمکار کاکا صاحب سے ملاقات کی تھی۔ یہ تمام باتیں تاریخی شواہد کی روشنی میں بے بنیاد ہیں۔ اور حضرت شیخ رحمکار کاکا صاحب نہ تو اکبر سے ملے اور نہ جہانگیر سے۔ اور نہ کسی اور بادشاہ سے۔ اور یہی صورت حال حضرت مست بابا کی بھی ہے۔

جہاں تک اکوڑ خان کو جاگیر ملنے کا تعلق ہے۔ یہ اکبر کی طرف سے اسے شاہراہ اعظم کی حفاظت کے سلسلے میں ۱۵۸۵ء میں ملی تھی۔ اس لئے کسی صوبہ دار کی طرف سے حضرت مست بابا کو اس جاگیر کی پیشکش کا سوال ہی پیدا نہیں ہوتا۔ یہ ایک مسلمہ تاریخی واقعہ ہے۔ اور خان خوشحال خان خٹک مرحوم نے بھی ایک نظم میں اس کا ذکر اس طرح کیا ہے۔

زۀ خوشحال د شهباز خان يم
چې تورزن يم كان په كان
شهباز خان د يحيٰ خان وو
چې بل نۀ وو هسې ځوان

يحيٰی خــان د اکــوړی وو
چې په توره شــو ســلطان
هم ئې تيغ وو هــم ئې دېــګ
هم ئې خُلق هــم ئې احســان
د اکبر بادشاه پــه دور کښې
دے ددې اولس شــو خــان

د مرآة الخيال هسې ذکر د قصه مشائخ از خواجه محمد زاهد اټکی ۱۷۳۴ء \ ۱۱۴۶هـ هم دے ـ دا کتاب په فارسی ژبه دے او د مجلس نوادرات علميه اټک له اړخه ۱۹۸۶ء کښې چاپ شوے دے ـ خو هغه د کاکا صاحب په ځائے د جائيداد او جاګير دغه پيشکش د حافظ محمد معصوم المعروف پير سباک متعلق بيانوی ـ هغه ليکی چې د حضرت پير سباک ځينې مشران د تجارت په غرض خوست کښې ډېره شول ـ او ځينې بلند خېل کښې ـ حضرت پير سباک د نوښار په سيمه د دريائے کابل په غاړه ځان له يو جونګړه جوړه کړه ـ

درآن اثناء نورالدين جهانگير بادشاه که به سير صوبه کابل می رفت ـ ديد که لب دريا دوخانه خس پوش است پرسيد که اين چه کس است که دراين جا جاے بودن خود ساخته است ـ عرض کردند که سيد است که تکيه صلاح وتقوىٰ آراسته وشب وروز بعبادت ورياضت گذران دارد ـ مرد متوکل است ـ بادشاه گفت که اين فقير را نزد من آريد ـ همان زمان مردم براے طلب ايشان رفته اند ـ ايشان گفتند که من فقيرم مرا به بادشاهان چه کار ـ ليکن آن آدميان بادشاه به هر طريق عاجزی کرد ـ نزد بادشاه اورده اند ـ چون بادشاه از ايشان دعا

خواستہ اُست۔ ایشان ہے درحق او دعا کردہ و وقت رخصت از حد نوشہرہ تا اکورہ قدرے زمین غیر اُباد بہ حضرت دادہ اند۔ و حضرت آمدہ، جائے مسکن خود حاکردہ اند کہ الحال آں دیہہ مشہور بہ پیر سباک است و حضرت پیر سباک را مریدان بسیار بودہ اند۔ چنانچہ شیخ رحمکار خٹک کہ در حدود خٹک مرقد ایشان است و پیر کامل و اکمل بودہ است۔ وے یکے از صحابہ پیر سباک است۔

نقل گویند۔ کہ اکورہ نام افغان پریشان و عاجز بود وہمیشہ بخدمت پیر سباک قدس اللہ سرہٗ خدمت بود۔ روزے یک گاؤ بہ طریق نیاز بخدمت حضرت بردہ است ایشان قبول کردند۔ و درحق او دعا کردند۔ و فرمودند۔ کہ برسر رفتہ جائے مسکن خود بساز و آن جا قرار بگیر کہ فضل الٰہی شامل حال تو شدہ است اکورہ بموجب حکم آنچنان کرد و در اندک فرصت دیہہ آباد شد۔ و بہ اکورہ آن دیہہ مشہور است۔ کہ بہ مشابہ قصبہ آبادی اُنجا شدہ است وفرزند اکورہ را سرداری تمام افغانان خٹک تا ایں دم کہ یک ہزار یک صد و چہل و شش ہجری (۱۱۴٦ھ) باشد بحال و برقرار است۔ و حدود حکومت فرزندان اکورہ سہ شبانہ روزے زیادہ راہ خواھد بود۔ و بر دو صد ہزار آدم حکم آنہا جاری است۔ چنانچہ رتبہ فرزندان اکورہ کہ بر حکومت ہر کہ مقرر گردد۔ برابر نصف صوبہ کابل است[۱]۔

لکه چې وړاندې ذکر شوے دے - چې اکبر بادشاه ۱۵۸۱ء نه پس په دوېم ځل ۱۵۸۹ء کښې دریائے سندھ نه راپورې وځی نو په دې اساس د شاهراه اعظم په حفاظت تقرری دغه تاریخ یا دغه نه پس یقینی ده -

سر ډینزل ابیټ سن وائ :-

د اکبر بادشاه په زمانه حکومت اکوړ خان د مغل نوکر شو -

---

(۱) قصۂ مشائخ ،خواجه محمد زاهد اتکی ص ۱۴ و ۱۵

او ۱۵۸۷ء کښې يې د کابل درياب په غاړه " اکوړے " اباد کړو ـ د هغۀ زويې يحيٰی خان د درياب د بلې غاړې مندړ نه څۀ علاقه قبضه کړه ـ چې وروستو دغه علاقه د " ترى بولاق " په نوم مشهور شوه[1] ـ

د ذکر شوو اشعارو تعلق ۱٦۸۰ء \ ۱۰۹۱هـ کښې د خوشحال خان خټک يو اوږدې قصيدې څخه دے ـ خو کۀ مونږ دغه اشعار لږ په غور ولولو ـ نو ددغه اشعارو مطلب هر گز دا نۀ راۇځی ـ چې په خټک قوم د خانۍ ابتداء د اکوړ خان نه شوې ده بلکه دا اشعار صفا ښائ چې زۀ ( خوشحال خټک ) د شهباز خان زويې يم ـ چې مړانه مې پشت په پشت ښکاره ده ـ شهباز خان د يحيٰی خان زوئې دے ـ چې داسې بل ځوان نۀ وو ـ او يحيٰی خان د اکوړی زويې وو يا د اکوړی وسېدونکے وو ـ چې د اکبر بادشاه په دور د خټک اولس خان مقرر شو ـ

په دې قصيده کښې د دېرش زره خټک ذکر دے ـ چې د خوشحال خان ماتحت وو ـ بل خوا دغه مبالغه د ميان محمد بادشاه د تاريخ بدرجهان په واقعه کښې هم د دېرش زره خټک منجوران په شکل کښې ليک ده ـ

---

[1] A Glossary of the tribes and castes of the Punjab and N.W.F.P vol :- ii , p 528

مونږ کۀ یحیٰی خان ږومبنے رئیس خټک حساب کړو نو ممکن ده چې د اکبر اعظم په زمانه مقرر وی ـ او د جهانګیر ابتدائ دور کښې د منصب په اعزاز سرفراز شوے وی ـ او د شاهراه اعظم د حفاظت په غرض مامور وی ـ او لکه چې ورکړے شوی اشعارو نه هم ددې خبرې تصدیق کېږی ـ

د یحیٰی خان د اکبر په زمانه د پښتنو خلاف فوج کشی او د جهانګیر په زمانه روا داری یعنی شهباز خان د پښتنو خلاف کار روایۍ نه منع کول د مغل حکومت د معاندانه او دوستانه پالیسۍ تحت طرز عمل ښکاری ـ

تاریخ مرصع مونږ د یحیٰی خان په ژوند د شهباز خان یوسف زی څخه د معاندانه پالیسۍ نه خبره وی ـ اګر چې د هغۀ پلار یحیٰی خان په دغه حرکت راضی نۀ وی ـ ولې هغه نۀ منع کېدو ـ او په دې بدۍ کښې څو وارې زخمی شو ـ خو هر کله چې ۱٦۱۰ء \ ۱۰۱۹ هـ کښې یحیٰی خان وفات شو ـ نو شهباز خان په مندڼ او اکوزی یوسف زو خراج او باج مقرر کړو ـ د تاریخ مرصع مطابق هغۀ د سدو زیو مشر بهاکو خان مقرر کړو ـ خو بهاکو خان چې لږ مضبوط شو ـ نو د شهباز خان احسان ئې هېر کړو ـ شهباز خان یوسف زی څخه د جنګ دوران ۱٦٤۱ء \ ۱۰۵۰ هـ کښې شهید شو ـ

سن د هجر زر پنځـــوس وو
چې شهید شۀ شهبـاز خان

د جهانګیر د وفات نه پس د هغۀ زویې شهاب الدین شاهجهان بادشاه شی ـ هغه د خپل پلار پښتنو څخه د دوستۍ او رواداری پالیسی برعکس د اکبر اعظم پالیسی اختیار کړی ـ ۱٦۳۰ء\ ۱۰٦۳هـ کښې پېښور کښې د کمال الدین بغاوت او په ۳۱ جنوری ۱٦۳۱ء د خان جهان لودی شهادت ددغه پالیسی کړی دی ـ د جهانګیر په دور حکومت یحیٰی خان مجبور وو ـ چې یوسف زو یا نورو پښتنو څخه ښۀ سلوک وساتی ـ ولې د شاهجهان ۱٦۲۸ء\ ۱۰۳۷هـ تا ۱٦۵۸ء \ ۱۰٦۸هـ په دور حکومت شهباز خان د شاهجهان د پښتون دشمن پالیسی یو فعال کردار وو ـ عن چې په دغه پالیسی د عملدرامد په سبب د کمال زی د اکازیو دلاسه قتل شو ـ او بیا دغه پالیسی د هغۀ زویې خوشحال خان اختیار کړه چې یوسف زو سره د جنګ دوران موجود وو ـ او هغه هم په دې جنګ کښې سخت زخمی شوے وو ـ

عبدالحلیم ګل بن حضرت شیخ رحمکارمونږ ته د مناقب په وساطت د شهباز خان د ژوند ځینې اړخونه ښکاره کوی ـ ددغه مناقباتو پښتو ترجمه افضل خان په تاریخ مرصع کښې کړې ده چې خلاصه یې په دې شکل ده :-

(۱) شهباز خان د حضرت کاکا صاحب مخلص مرید او پېرو کار وو

(۲) شهباز خان خپل ښائسته عراقي اس په دربار شریف کښې نذر کوی او قربانوی ـ

(۳) شهباز خان په اکوړی کښې په یو موقعه د خپل پیر و مرشد د مهمان نوازئ شرف حاصلوی ـ

(۴) شهباز خان د ۱۶۳۰ء د مغل و پښتون د جنګ په نتیجه کښې د خپل پیر په ایماء خېر اباد کښې ډیل کېږی ـ

(۵) شهباز خان د خټکو د حمکرانئ نه بېرته کېږی او صوبېدار خپل زویې د هغهٔ په ځائے مشر کوی ـ خو هغه په خپل مرام کښې ناکام کېږی ـ

د عبدالحلیم ګل بابا په دې منقبتونو کښې کهٔ یو اړخ مونږ د شهباز خان د ژوند د ځینې پټو اړخونو نه خبرېږو نو بل اړخ ددغه مناقباتو ځینې فقرې زمونږ د توجو وړ دی لکه په یو منقبت کښې هغه " امیر ختک " بیان دے ـ

,, ناگاه شهباز خان امیر ختک بخدمت حضرت ایشان حاضر آمده [۱] ,,

یو بل بیان دے :-

,, وملک خطک ازشهباز خان گرفت [۲] ,,

---

[۱] مناقب شیخ رحمکار (فارسی) ص ۲۵ (ذاتی قلمی نسخه) ، تاریخ مرصع ، ص ۵۶۹

[۲] مناقب شیخ رحمکار (فارسی) ص ۳۰۴ (ذاتی قلمی نسخه)

" شهباز خان له ویرې د پښتنو اټک ته روان شو"[1] ـ

د ١٦٣٠ء د جنګ دوران شهباز خان اټک پلۀ تښتی ـ ولې د هغۀ بالمقابل نور منصبداران په خپل ځایونو موجود وی ـ " خټک" په دې جنګ کښې د نور پښتانۀ قبائل ملګری وی ـ او د مغل خلاف جنګ کښې شریک وی ـ ولې شهباز خان د مغل مرستیال وی او بیا په تېره تېره د جنوبی اضلاع خټک ١٦٣٥ء \ ١٠٤٤ھ کښې هم د مغل خلاف بر سر پیکار وی ـ

,, جب بادشاہ کشمیر سے واپس ہوا ـ تو وہ راجہ جگت سنگھ بنگش پائین کی تھانیداری اور خٹک قبیلے کے سرکشوں کی تنبیہہ کے ـ لئے مامور ہوا ـ کہ جو اس علاقے کے باشندے تھے[2] ،،

١٦٤١ء \ ١٠٥٠ھ کښې شهباز خان وفات شو ـ نو د خټکو مشر خوشحال خان مقرر شو ـ

په دا میان کښې فرمان د سرداری له حضوره د بادشاه په نامه د خان علین مکان صادر شۀ ـ او منصب د پلار ورته مرحمت شۀ[3] ـ

د خوشحال خان د کلام یا د تاریخ مرصع نه ظاهره نۀ ده

---

تاریخ مرصع ص ٥٨٥

ماثرالامرا جلد دوم ، ص ٢٤٠

تاریخ مرصع ص ٢٧١

چې د شهباز خان د وفات په وخت د هغهٔ ځهٔ منصب وو - چې خوشحال خان ته مرحمت شهٔ - د شاجهان د زمانې د سرکارې تاریخ بادشاه نامه او غیر سرکارې تاریخ شاه جهان نامه دواړه معتبر تاریخونه په دې حقله خاموش دی - د بادشاه نامه د منصبدارانو په فهرست کښې د شهباز خان په نوم څوک منصبدار نشته - البته شاهجهان نامه کښې د منصبدارانو په فهرست کښې شهباز خان افغان پانصدی منصبدار دے - بادشاه نامه کښې د نورالدین محمد جهانګیر د حکومت په اخری کال ١٦٢٨ء \ ١٠٣٧هـ کښې د شهباز خان افغان ذکر :-

,, و امدن نذر محمد خان والیې بلخ و بدخشان به هوس تسخیر کابل ،، موضوع تحت درج دی وَ سردار خان و شهباز خان افغان.. ...این خدمت گذاشتند[١] "

د مراة الخیال په نزد شهباز خان افغان د خټکو د کورنی امیر شهباز خان دے - او لیکی چې نور الدین محمد جهانګیر ١٦٢٨ء \ ١٠٣٧هـ کښې د نوښار په مقام د شیخ المشائخ غوث الا عظم شیخ رحمکار حضرت کاکا صاحب په خدمت کښې حاضر شو هغوئ ته ئې د خټکو علاقه جاګیر ورکړه - ولې هغوئ دغه جاګیر

---

[١] بادشاه نامه . جلد اول ص ٢١٣

خپل مرید شهباز خان ته بخشش کړو ـ خو حقیقت داد ے چې شهباز خان افغان او د خټکو مشر شهباز خان د یو شخصیت نوم نۀ د ے ـ بلکې د دوه مختلف شخصیاتو نومونه دی ـ د نور الدین محمد جهانګیر د وفات روستو د شاهجهان په زمانه حکومت د مغل د تاریخونو په صفحات د شهباز افغان ذکر موجود د ے ـ او د منصبدارانو په فهرست کښې هم موجود د ے ـ چې د خټکو شهباز خان نه مختلف شخصیت د ے ـ د جمیل بېګ د تذکرة الاولیاء دا بیان البته زمونږ د دلچسپۍ باعث د ے ـ

,, کاتب ایں کتاب جمیل ابن شہباز افغان خٹک مرید شیخ رحمکار افغان خٹک ،،

شهباز افغان خټک او شهباز افغان دوه مختلف شخصیات د ے ـ

د شاهجهان د پالیسۍ مطابق " پھوٹ ڈالو اور حکومت کرو "

( درنګ واچوه او حکومت کوه ) او د هغۀ د اهلکارو د هدایات په رڼا کښې شهباز خان د خپلې سردارۍ د شان و شوکت او رعب بر قرار ساتلو په غرض د خټکو مختلفې برادرۍ او خېلونه پخپلو کښې په جنګونو بوخت ساتل ـ دې کښې شک نشته چې د غورى او بنګش قبائلی ځینې مشران هم دغه زمانه د مغل حکومت د تقویت باعث وو ـ ولې د هغوئ پالیسی د شهباز خان یا خوشحال خان نه برعکس وه ـ هغوئ خپل قبائل متحد ساتل ـ او د هغوئ د قبیلې دشاخونو تر مېنځ تربګنی او دشمنی موجود نۀوه ـ او غېر قوت او

بل قبائل دپاره متحد وو - ولې مونږ کۀ د تاريخ مرصع بيان وګورو - او د خټکو خپلو کښې د دشمنۍ او جنګ و جدل جاج واخلو - نو د شهباز خان او خوشحال خان شخصيت مشکوک شی - او د ميان محمد بادشاه دا بيان چې چنجو او اکوړ خان هندوستان نه راغلی وو - يعنی پښتانۀ نۀ وو - مخې ته رامخکښې شی - چې اخېر کار داسې څۀ وجوهات او اسباب وو - چې د مغل مکمل حمايت او حکومت وخت څخه د وفادارۍ او ددې په عوض کافی سهوليات باوجود يو خېل د بل خېل وينو ته تږے ناست وو - تاريخ مرصع د خټکو د مختلف خېلونو واقعات دغه زمانه داسې بيانوی :-

" اوس هر چې پۀ دا ميان کښې د خټک يو تر بله عداوت شوے دے کوښښ شی - د ميره خېل د ايسوړی سره —— د ايسوړی او انوخېل تر مېنځه ، د انوخېل د ساغری سره د اورياخېل او مهمندی تر مېنځه ، د ميری خېل او د څېنی ( بولاق) تر مېنځه ، د درملوک او ساغری تر مېنځه ، د بتی خېل او بولاق تر مېنځه ،٠ د څېنی او حسن خېل عداوت ، د څېنی او مهمندی عداوت ، د اوريا خېل اوخلوزی تر مېنځ بدی او دشمنۍ عام وې[1] " -

---

[1] تاريخ مرصع - ص ٢٦٦

خوشحال خان هم د ډوډه د جنګ نه روستو د خټک ځینې خېلونه داسې ستائ :-

شاهی بېګ مرزا دار وو یو ځو سوارهٔ وو
نهٔ وو نور د ځوترې نمک حرام
په دا هسې یو دوه ایسوړی نهٔ وو
نهٔ خورم نهٔ درویش خېل وو بدفر جام
شابی خېل کهٔ مکوړی وو په اولجه شول
د خورمو تنبې ښهٔ وکړل خرام
شاهی بېګ ساغرے په تن ملک میرے دے
تر شیرا اول ددهٔ کړئ کار تمام

مونږ حېران یو چې داسې حالت کښې چې هره قبیله من حیث القوم د بلې قبیلې خلاف په دې وجه متحد او صف ارا وو - چې زیاته نه زیاته علاقه قبضه کړی - او لکه چې خټک په خپل اولنی دور کښې چې دې علاقو ته راکوز شول - کافی متحد او یو موټے وو - وروستو ولې داسې منتشر شول - چې خپلو کښې ئې تربګنی شروع شوې - اندازه ده چې ددغه وخت مشرانو خپل خبر د نورو په ورانه کښې لیدو - نهٔ پوهېږو

چې داسې حالت کښې خوشحال خان په خټک قوم د خپل احسانات وربار کولو کوشش ولې کوی -

درست خټک زمـــا په دور
نــامـــور شــو پــه دوران
کۀ خټک په زمکه پروت وو
پـــاس مې يـــورو په اسمان

# خوشحال خان خټک

۱٦٤۱ء \ ۱۰۵۰هـ کښې شهباز خان په حق ورسېدو ـ نو دغه وخت د خوشحال خان ( ولادت ۱٦۱۳ء \ ۱۰۲۲هـ ) عمر اتۀ ویشت کاله وو ـ د نورو درې ورونو جمېل بېګ ،. شمشیر خان او میر باز نه مشر وو ـ نو په دې وجه د مشرۍ پټکے خوشحال خان ته پسر شو ـ هغۀ ډېر زر د خپل پلار د شکست او قتل بدل کمال زو او امازو یوسف زو نه واخېستو ـ او بیا دې نه پس مسلسل د خټکو د یوسف زو په علاقه یرغل او لوټ تالان شروع شو ـ دغه زمانه د خټک قوم مشر کۀ خوشحال وو ـ نو د یوسف زی مشرے هم د یو قابل ، بهادر او زړۀ ور جنګجو سردار بهاکو خان په لاس وه ـ یوسف زی یو بهادر تکړه قوم وو ـ خو خوشحال خان ته د حکومتِ وخت ډاډ او مرسته حاصل وه ـ او د یوسفً زی په مقابل خټک په جدید اسلحه او وسائل پوره وو ـ د مغل حکومت تعاون او امداد

خوشحال خان ۱۶۵۳ء \ ۱۰۶۳هـ کښې د بنګش په علاقه ګرفت او
ضبضې ته هم لېواله کړو ـ او د خټک او بنګش تر مېنځ هم د دشمنۍ
و رقابت یوه اوږده سلسله شروع شوه ـ چې د ګنبت او ډوډې
جنګونه پکښې د ذکر قابل وړ دی ـ

۱۶۵۸ء \ ۱۰۶۸هـ وو چې د شاه جهان په ځائے اورنګزېب
ملک خود مختار بادشاه اعلان شو ـ د تخت نشینۍ د وراثت د
جنګ دوران د هغۀ عوام څخه وعده وه چې د تخت د وراثت په
جنګ کښې د کامیابۍ او کامرانۍ نه پس به هغه د ټول ملک په
شاهراهانو محصول او راهداری معاف کوی ـ چې عام عوام ته ترې
روز مره اشیاء ضرورت په حصول کښې اسانې او ارزانی پېدا شی
ه دې وجه هغۀ ۱۶۵۹ء \ ۱۰۶۹هـ کښې حسب وعده د راهدارۍ د
مانعت احکامات جاری کړل ـ او په ټول ملک کښې د بادشاه په
حکم عملدرآمد یقینی شو ـ ولې یو خوشحال وو چې ځان ئې ددې
حکم د متابعت نه مبراء ګڼلو ـ او باقاعده یې راهداری او محصول
وصولولو ـ او دا سلسله ۱۶۶۴ء \ ۱۰۷۴هـ پورې جاری وه ـ عن چې
سید[1] امیر خان خوانی صوبیدار کابل په هدایت د هغۀ نائب او د

---

[1] سید میر بخطاب امیر خان او د کابل صوبیدار ۱۶۶۲ء \ ۱۰۷۲هـ تا
۱۶۶۸ء \ ۱۰۷۹هـ (وفات ۱۶۷۰ء \ ۱۰۸۰هـ ) مآثرالامرا جلد دوم ص ۴۷۹

پېښور حکمران مرزا عبدالرحیم خوشحال خان قېد کړو - او دوه میاشتې د کوټله محسن خان په قلعه کښې د مستجاب خان مومند د نګرانۍ تحت قېد و بند نه پس پابند سلاسل هم دغه کال دهلی پلؤ بوتلے شو -

اشرف خان د خپل پلار د رهایی په غرض چې کابل ته ورسېدو - نو صوبیدار هغه قېد کړو - خو د دلیر همت خان په سفارش قېد نه خلاص شو -

تاریخ مرصع لیکی :-

" د بادشاه په امیر خان اعتراض وو - د بل صوبه دار فکر ئې کاوۀ - په دا مېنځ کښې خان جنت نشان ( اشرف خان ) له مصلحته د خان علین مکان ( خوشحال خان ) د خدا یار خلیل د جګرام هندو په قول راغے - لار یې ورانه کړه ---------- خان جنت نشان هم په مغل ورغے - ویې تاړۀ[1] "

د خوشحال خان او تاریخ مرصع دعویٰ ده چې صوبیدار پنځوس زره روپۍ رشوت غوښتو :-

" وغوښتې پنځـوس زره روپۍ صـــوبیـــدار
ما وې در به نۀ کړم یو پوچک نۀ یو دینار "

---

[1] تاریخ مرصع ، ص ۲۷۵

او دغسې د خوشحال خان انکار د هغهٔ د گرفتارئ سبب وگرزېدو - چې صحی نهٔ ښکاری - بلکې د خپل ځان د بې گناه ثابتولودپاره محض الزام تراشی معلومېږی -

خوشحال خان په خپله اقرار کوی - چې خلق زما د گرفتارئ متعلق مختلف خبرې کوی - خو زهٔ په خپل ځان کښې هیڅ گناه نهٔ وینم - اوس د هغهٔ د گرفتارئ په حقله د خلقو څهٔ خیال وو - هغه دغه راز نهٔ ښکاره کوی - بلکې د خپلې بې گناهی اظهار کوی - او خپل هنر د خپل ځان دشمن گڼی -

زهٔ په ځان کښې گناه نهٔ وینم په خدائے گو
ولې نـــور خـــلـــق خبرې کا شان شان
د گنـــاه مې ســـر رشتـــه نـــهٔ ده معلومه
مـــکـــر خپـــل هـــنر د ځـــان وینم تاوان

د عام عوام تزنول ، د حکومت د واضح احکامات خلاف ورزی ، او د خپل ذات د استحکام دپاره ناجائز طور محصول اخېستل ، او په عام عوام د اشیائے ضروریات په قیمت کښې گرانی او اضافت راوستل د هغهٔ د قېد و بند اسباب وو - او صوبیدار کابل ممکن ده - د خوشحال خان نه د محصول او راهدارئ هغه ټول رقم چې په ناجائز طریقه د هغهٔ په تصرف کښې وو - په قومی خزانه کښې د جمع کولو حکم وو - خوشحال خان یو منصبدار وو - او د

مغل طاقتور حکومت د احکامات ښکاره خلاف ورزی د هغهٔ د شان مناسب نهٔ ښکارېدل ـ نو په دې وجه قېد شو ـ

ملک منصب جاگیر زما تغیر حال محال

دولس منصبدار مې تابینی[1] شول پائمال

دلته منصب د ملازمت یا عهدې په معنٰی مستعمل دے ـ یعنی ددهٔ ماتحت په ملازمت چې کوم دولس کسان مشران وو ـ او د کیشتو په پل ئې محصول اخېستو ـ دغه ټول ملازمان برخاست شول ـ تاریخ مرصع دغه خیال د خوشحال خان د ١٦٨٤ء | ١٠٩٥هـ د واقعات په حواله داسې راوړی :-

" امیر خان منصوبه باز وو ـ طامع وو ـــــــــــــــــ ما لره ئې هم وکښل ـ کهٔ څهٔ مالره راکړې ـ ما ورلره وکښل ـ چې زهٔ ارباب ملک او اجاره دار نهٔ یم ـ چې له ما نه څهٔ غواړې ـ خو یو نوکر یم وطن زما په جاگیر کښې دے ـ کهٔ لږ دے او کهٔ ډېر دے ـ قناعت مې پرې کړے دے ـ خدمت کوم د بادشاه[2] "

---

[1] د تابعین مخفف او مفغن= تابین ، د تابین دپاره وگورئ تاریخ مرصع ص٢٧٩ " تابین د میربخشی شهٔ " یا د بهاکو خان څوئے د تا تابین شهٔ ـ

[2] تاریخ مرصع ص ٥٠٢

د خوشحال خان زویې سکندر خان ۱٦۵۴ء | ۱۰٦۵هـ تا ۱۷۰۴ء | ۱۱۱٦هـ ددغه منصب ذکر داسې کوی -

یوسف زی ددهٔ لـه تیغـه
خوار حیران وو استـحـقـار
په قلیل منصب ئې کار کړو
بې کـومـک لـه صوبیدار

د اورنګزیب د وفات نه پس د شهزاده محمد معظم شاه عالم بهادر شاه د هندوستان په لور ۱۷۰۷ء| ۱۱۱۸هـ کښې تګ او د تخت نشینۍ د جنګ په ضمن کښې د افضل خان دا بیان هم صفا ظاهره وی چې د دوئ منصب د اټک په سیند د کیشتو په پل تړلو او مرمت تر حد محدود وو -

" د اټک د سیند پل هر چې تعلق یې زما په اولس وو - په ښهٔ روش ورته تیار شهٔ --------- زما اولس هغه کار چې د پل بندی تعلق په دوئ لری - تر ما په هغه لور ددهٔ میر بحری وه[1] "

افضل خان د دولس تنه د منصبداری متعلق ذکر په یو بل ځائې داسې راوړی -

---

[1] تاریخ مرصع ص ۳۸۲

" لاړم - بادشاه زما د منصب اضافه وفرمائېله او لس دولس تنه ئې زما د قبیلې په منصبونو سرفراز کړهٔ[1] "

د خوشحال خان د صوبیدار خلاف د رشوت الزمات او تهمت په خپل ځائے خو مونږ ددې حقیقت نه هم سترګې پټولے نهٔ شو - چې د صوبیدار ماتحت ذات سوار لښکر نه علاوه د فوځدار ماتحت شاهی دسته هم په صوبه کښې ماموریت لرهٔ - چې صرف د شاهی احکاماتو تابع او بادشاه ته نېغ په نېغه جوابده وه - او صوبیدار د فوځدار د رضامندئ او متفقه فیصلې خلاف اقدامات نه بې بس وو - دغه شاهی دسته د احدی په نوم یادېده - چې خوشحال خان ئې هم ذکر کوی -

درسته شپه څوکئ د محب خپلو په خپل ځان
بـــل وی مصری خان داؤدزی یو ټول احــدیان

د خوشحال خان د قېد و بند نه جوخت وروستو هغه یوسف زی چې د خوشحال خان د لاسه هره لمحه په لړزان او پرېشان وو - د پښتنې ننګ و غېرت تحت د حمزه خان او الله داد خان په مشرئ کښې بائېزی اکوړی ته راپورې وتل - او د خوشحال خان ټول بال بچ ئې سېکری کاټلنګ ته د مغل واکدارانو.د بې عزتئ نه بچ محفوظ

---

[1] تاریخ مرصع ص ۲۰۹

ورسول ـ د یوسف زی په دې حرکت خوشحال خان په فراقنامه کښې شاباش او افرین وائ ـ خو قهر و بند نه پس بیا هم هغه یوسف زی سپکوی ـ چې ددهٔ عزت او ابرو ئې محفوظ ساتلې وه ـ هغه د یوسف زی دغه ټول احسانات شاته وغورځوی ـ او د یوسف زی نوم څخه سم په کنځلو او بد رد شروع کوی ـ اول خو د یوسف زی په تعریف کښې دا کلمات وی :-

زهٔ د یوسف زی پــــه خـــان زهـر وم قاتل
بل مقصود مې نهٔ وو په خدمت کښې د مغل
شاباش پـــــه هغهٔ شه چې د ننګ وکا پالل
راغلهٔ یوسف زی لــکــه پېښ شو کار مشکل
لاړل تـر سیکری ورسره کـــــوورونه ســــل
نـــــور ختک مې واړه پخپل ځائے ودرېدل

او بیا لږه موده پس د احسان فراموشی یې دا حال شی :-

واورئ یارانوچې خوشحال ختک څـهٔ وائ
د سپی اشنائ ښهٔ ده نهٔ یاری د یوسف زی

او تاریخ مرصع د یوسف زی د هغه محسن مشر په شان کښې دا کلمات راوړی :-

" د حمزه سک په معرفت تمام یوسفزے ورغے[1] "

" سک حمزه هغه کار خور کړو[2] "

او خوشحال خان وائ :-

د جهان عیبــونـه واړه سره ټول کړه

هغه واړه د حمزه د غاړې پسول کړه

مخزن د درويزه د میان نور شیخي پیری

الثـالث بـالـخیر د حـمـزه خـانی میری

۱۶۶۶ء \ ۱۰۷۶هـ وو چې اورنګزیب ته خبر ورسېدو ـ چې د هغهٔ باغی او لا پته ورور شاه شجاع د ملا چالاک او بهاکو خان په امداد او مرسته د یوسف زی په سیمه د هغهٔ د بادشاهت خلاف د بغاوت جنډا پورته کړې ده ـ نو په دې وجه هغهٔ دا ضروری وګڼل ـ چې د دوئ خلاف د خوشحال خان او اشرف خان اعتماد حاصل کړی ـ او د خپل مقاصد د تکمیل دپاره ئې استعمال کړی ـ نو دواړه ئې د قېد و بند نه ازاد کړل ـ

---

1 تاریخ مرصع ص ۵۰۲

2 تاریخ مرصع ص ۳۲۴

,, به همراهان خویش ولشکری گکهر واشرف وخوشحال ختک وبرخی دیگراز بندهائے بادشاهی که به اونزدیک برآمده ـ بگذر هارون که روبروئے ولایت یوسف زی واقع است ـ بقصد تنبیهه آں جهالت منشان روان شدا ،،

د قید و بند د ازادئ نه وروستو خوشحال خان د دهلي د سیل و سیاحت په غرض ایسار شو ـ ولې خپل زویې اشرف خان ئې ډیر په تیزئ د دریائے سندهـ غاړې ته د بهاکو خان په مخالفت او د مغل حاکم اټک کامل بیګ په حمایت را رخصت کړو ـ د خوشحال خان دا لویه غلطي وه ـ چې اشرف خان ته ئې د سردارئ او مشرئ یو نادره موقعه په لاس ورکړه ـ چې هغه پرې وروستو سخت پښېمانه وو ـ

,, خوشحال خان کے التماس پر پرانی جاگیر اس کے بڑے بیٹے اشرف خان ہجری کے نام مسلم رہی۲ ،،

۱۶۶۷ء \ ۱۰۷۷هـ کښې د مغل او یوسف زی تر مینځ په هارون گذرگاه یو زبردست جنګ وشو ـ چې یوسفزو پکښې شکست وخوړو په زرګونو قتل شول ـ او د سرونو میناورنه ئې ساز شول ـ

د مغل دپــــاره مــــا تــــورې وهلې
پښتنو به راتـــــه کـړې ډېرې کنځلې
پښتـانـــــهٔ مې پـــه زرګــــونو دی وژلی
پـــه سرونو به ئې خرهٔ غوایهٔ وو لشلی

۱ عالمگیرنامه ص ۱۰۴۲ ۲ پشتون کون، پریشان ختک ، ص ۳۴۳

لا تـــر اوسه د سرونو ئې انبار دے

په اټک په پېښور کښې ئې مينـار دے

په دې جنګ کښې د خوشحال خان زويې اشرف خان خپل خټک لښکر څخه د بادشاهی فوځ په امداد باقاعده شامل وو ـ اودغسې د خوشحال خان دعوې او مغل نه د نفرت او کرکې دا چغې سورې يې بې معنې وختې ـ چې :-

پس لـــه بنــــده دے دا عزم

د خـــــوشحـال د خاطر جزم

يـــا نيـــولے مـــخ مـــکې ته

يـــــا مـــغـــلـــو سره رزم

يا

مرګه هومره مهلت راکړې په جهان کښې

چې جمدر د مــــــدعی په وينو سور کړم

خوشحال خان دد غه باړو وهلو برعکس د مغل حکومت سر دوباره وفادار شو ـ او ويې وئېل :-

په اګره کښې مې پښې وا شوې

بيا نـــوکـــر د بـد سلطان شوم

او بيا د مغل د قېد و بند ترهه پرې دومره زياته غالبه وه چې د ويرې او خوف نه چپه خوله ساتل بهتر ګڼی :-

ما چې دا قصیده ووې
په دهلی مې اقامت دے
شلورمه د رجب وه
زر اووۀ اویا هجرت(۱۰۷۷هـ) دے
نور څۀ مۀ وایه خوشحاله
که څۀ وائې قباحت دے

د قېد و بند د ازادئ نه وروستو چې د امیر خان په ځائې مهابت خان[1] صوبیدار کابل مقرر شی ـ نو د تاریخ مرصع د ص ۲۹۴ په حواله مهابت خان اورنګزېب ته د خوشحال خان دپاره د مراعات چې کوم کوشش او سفارش کوی ـ نو خوشحال خان د مهابت خان په نیمګړی سفارش خفا کېږی ـ ځکه چې هغه د اورنګزېب بادشاه نه د مراعات زیات توقعات پامته دار وو ـ

" بیا دۀ په عرض ورسول ـ دا خانه زاد (موروثی خدمتګار )دے ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ خان په دا خبره له مهابت خان ډېر ازرده شۀ ـ چې بادشاه په مهربانی راغلے وو ـ تا به ما دپاره ډېر څۀ غوښتی وو ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ بیا ئې زویه د بادشاه تر نظره تېر کړل په امېد د منصب "

---

[1] ۱۶۷۴ء|۱۰۸۴هـ تا ۱۶۷۵ء|۱۰۸۵هـ صوبیدار کابل (وفات ۱۶۷۵ء| ۱۰۸۵هـ) ماثرالامرا ، جلد سوم ، ص ۴۹۳

۱۶۶۹ء ۱ ۱۰۷۹هـ وو چې خوشحال خان خپل وطن ته

بېرته راغے ـ خو اوس فضا بدله وه ـ د مغل د سرداری په مسند د

هغهٔ زويې اشرف خان قابض وو ـ د پلار او د زويې تر مينځ د اقتدار

رسه کشی شروع شوه ـ چې وروستو په دې رسه کشی کښې د

اشرف خان ورور بهرام خان هم شامل شو ـ خوشحال ښکاره ليدل

چې مغل او خپل زويې اشرف خان يا بهرام خان نه اقتدار بېرته

اخېستل يو ناشونکے او مشکل کار دے ـ نو د وخت د مصلحت يا د

مغل سرکار په هدايت يې پلړه بدله کړه ـ او د اېمل خان او دريا

خان مدح سرائ يې شروع کړه ـ چې دغه زمانه د مغل خلاف

جنگونو کښې پرله پسې کامياب کامران او برسر پېکار وو ـ دا هغه

وخت دے چې خوشحال خان کهٔ يو اړخ خپل ځان د ننگ و غېرت

پېکر گڼی ـ نو بل خوا د پښتون بالخصوص او د پښتون قبائل

بالعموم خامی په گوته کوی ـ بد رد او سپک ورته وائ ـ د بدنامولو

کوشش ئې کوی ـ او د تحرير په شکل کښې د پښتنو کمزوری په

ډاگه کوی ـ چې بل ترې فائده واخلی ـ او خپل ځان :-

د افغان پـــه ننـــگ مې وتړله توره

ننگيالے د زمانے خوشحال خټک يم

خو د ننگ و غېرت مرد مومن او په خپل ذات کښې جذب دغه

مغرور پښتون ۱۶۷۳ء ۱ ۱۰۸۴هـ کښې د امين خان په ځائے د

مهابت خان د تقرری په موقعه یو ځل بیا د پښتنو د سنګر نه مغل پلؤ ودانګی ـ تاریخ مرصع لیکی :-

" د پښتنو د مغلو هیڅ اعتبار پاتې نۀ وو ـ حق احسان ئې راباندې وو ـ ددۀ ( مهابت خان ) بدخواه نۀ وم[1] "

د قید و بند سختئ د مغلو ناروا سلوک او د هغۀ په نزد بې وجهې ګرفتارئ او مغلونه نفرت او کرکه او د خپلې بې ګناهئ اظهار د خوشحال خان د کلام یوه ډیره لویه برخه ده ـ چې د هغۀ په دیوان کښې موجود ده ـ او د مغل خلاف ئې په دغه تاؤ جن اشعار د رزم او نفرت میدان ګرم کړے دے ـ او غالباً دا ټول اشعار د قوت ګویایئ ترحد محدود دی ـ او د کردار او عمل اړخ په کښې ډیر کم محسوس کیږی ـ د ایمل او مغل تر مینځ د جنګ تود میدان ته نۀ رادانګی ـ بلکې د غرۀ په سوکه ناست د خیالونو او سوچونو غشی را وریٔ ـ او په فرضی دنیا کښې ارمان لری ـ چې ایمل بریالے شی او مغل زما د مرستې پامته دار شی ـ

په فساد کښې هیڅ فائده نشته خوشحاله
د فساد پــــه اور کښې سېزی وابۀ دروزه

---

[1] تاریخ مرصع ص ۳۰۰

او لکه چې بیا ۱٦٧٠ء \ ۱۰۸۰هـ کښې د خوشحال خان د مغل د نوکرۍ دې ارمان نه صفا ظاهر ده ـ

خوار شه یوسف زی چې تـریـن ئې حاکمی کا
اوس کهٔ ښکار د باز کاندې هیلۍ نـــهٔ ده ګرمه
څو چې په څو کاله شمشیر خان[1] ترین کار کړے
ما به په څـــو میاشتې واړه چـــار کړه مستحکمه
پـــوهـــه تمیز نشته دا فلک په سترګو ړونـد دے
ښځـــه د خـــانۍ پـــه خـطـــاب کـــا مکرمه

د خوشحال خان دیو غزل د تنې بودې نه داسې برېښی چې د قېد و بند د تکالیف نه وروستو هم ورته راحتګی حاصل ده ـ او د مغل په نظر او سلوک کښې د قدر و منزلت خاوند دے ـ او بیا د ټولو نه لویه خبره داده چې اشرف خان او بهرام خان څوک وو ـ چې د مغل په غېږ کښې ناست وو ـ او داسې حالت کښې چې هغه اوس د مغل د کار نهٔ وو بوډا وو ـ او اوس د یو جنګو سردار په ځائے محض یو شاعر وو ـ او صرف په خیالی سوچونو کښې ډوب د یو درنه د بل سپکې نه یې بل کار نهٔ وو : ـ

[1] حیات ترین بخطاب شمشیر خان، مآثرالامراء، جلد دوم ، ص ٦٧٦

د خوشحال طالع تر خرم بنۀ دے
چې بنده شو خاوند بیا وروست تر تخته
و هفتاد (۷۰) و ته نزدې شوم
هر نعمت راځی په کور

خوشحال خان چې ولیدل چې زما مطلب پښتنو څخه په ملګرتیا نۀ حل کېږی نو په جار یې ووې :-

څۀ یوازې ننګ په ما راغلے نۀ دے
پښتانۀ ډېر دی په غرونو په سمونه
یا به واړه د مغلو درم پرېږدی
یا به زۀ هم په لاس واخلم درمونه
چې ښوروا خوری د مغلو واړه سپی دی
د سګانو په خوله څۀ اخلم نومونه

او بیا لږه موده تېره نۀ وه ـ چې د مغل ښوروا ته هغه یو ځل بیا کښېناستو ـ هغه ۱٦۷۷ء \ ۱۰۸۸هـ کښې د یو اوږد نظم دوران لیکی چې هغه څنګه د څوترې نه شهزاده شاه عالم او امیر خان څخه د روغې دپاره راغلے وو ـ

یا چې راغلم څوترې ته
شهزاده لره روان شوم
په دا کال چې شاه عالم راغے له هنده
صلح وشوه د مغلو د افغان

دا سړ کال چې يې تاريخ رحمت تم(۱۰۸۸هـ) دے

پـــه وګـــړی مبـــارک دے پـــه هـــــر شان

د خوشحال خان دا بيان چې د مغل او پښتنو تر مېنځ جوړه وشوه ـ دا صحی ده ـ چې د خوشحال او مغل تر مېنځ جوړه وشوه ـ حقيقت کښې ايمل خان او دريا خان د خپل ژوند تر اخېر وخته ۱۶۸۴ء ۱ ۱۰۹۵هـ پورې د مغل خلاف برسر پيکار وو ـ د خوشحال او تاريخ مرصع بيانات تواريخی حقائق مسخ کړل دی ـ تاريخ مرصع د خـــوشحـــال او مـــغـل تـــر مـــېـنـخ د جـــوړې او دوستی روئيداد په دې شکل بيانوی :-

" فدائ خان تغير شۀ صوبه داری د کابل امير خان د خليل خان زويې بيا مونده ـ بهادر شاه چې د اورنګزېب په وخت بادشاهزاده وو ـ بادشاه په صلح د پښتنو د کابل صوبې ته را روان کړو ـ امير خان يې ورسره راوست ــــــــــ اول ئې دے (خوشحال خان ) وبالۀ ــــــــــــ کۀ اول تۀ ماته راشې نور پښتانۀ به واړه ماته راشی ـ د ما نقش د صوبيداری به کښېنی ـ دۀ هم کام نا کام اختيار يې د ملازمت وکړو ــــــــــــ په پېښور کښې يې د بهادر شاه ملازمت وکړو ـ امير خان په خېبر د وړاندې لاړ وو ـ چې بهادر شاه په غريب خانه ورغے ـ امير خان هم مخې لره ورته ورغے ـ خان علين مکان يې ملازمت وکړو ـ بغل ګيری

يې ورسره وکړه ـ ډېره مينه او مهرباني يې وکړه ـ خوشحال شهٔ ـ دوه زره روپۍ يې ددهٔ د خرڅ دپاره ورکړې ـ هرګاه چې بادشاه خبر شهٔ ـ چې خان علين مکان ملازمت وکړو ـ بهادر شاه او امير خان ته ئې وکښل ـ چې په هر شان چې شی خوشحال له لاسه مهٔ پرېږدئ ـ په هر څو منصب چې راضی کېږی راضی ئې کړئ ـ ويې ساتئ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ په وخت د رخصت يې يو آس يو سروپا يو مرصع خنجر، دوه زره روپۍ بهادر شاه ورکړې ـ يو آس يو سروپا جسونت سنګهـ راجه ورکړو ـ يو سروپا دوه زره روپۍ امير خان ورکړې ـ يو سروپا رام سنګهـ راجه ورکړو[1] " ـ

خوشحال خان ددغه مراعاتو او د مغلو په غېږ کښې د بيا ناستې او دوستۍ دفاع په يو اوږد نظم کښې په دې شکل کوی :-

د بـې نـــنګـــو پښتنـو له غمه ما
لـــوئ پـــرېښـــوه ونيـولـه کمه ما
هغه ملا مې چې په هوډ سره لوئے غر وو
پـــه نــاکـام کــړه و مغل تــه خمه ما

او بيا دپښتو او پښتونولۍ په هغه لويو لويو دعوؤ خپله شرمساری او د پښتنو په سترګو کښې د خاورو اچولو کوشش داسې کوی : ـ

---

1 تاريخ مرصع ص ۳۷۴

پہ هغه لویو خبرو شرمسار یم
چې هر چا وته وېستې له فمه ما

او بیا ۱۶۸۴ء / ۱۰۹۵ھ کښې پہ فخریه انداز وائې :-

کهٔ لـه خپله حقیقته درته وایم
زهٔ خـائی یـم د مغل نمک حلال
پہ اباؤ پہ اجداد خان و سردار یم
کارنامې لرم د جنګ او د جـدال
چې د ښو سړیو قدر بانـدې نشته
ځکه زهٔ ورځینې ګرزم پـه جبال
لکه دے زما زوال وته ناظـر دے
زهٔ له نهٔ غــوارم ددهٔ هسې زوال
تر اویا کلــونــو تېر شو زما عمر
زړهٔ هغه دے تن پیری کړلو پائمال

مونږ کهٔ د خوشحال خان شاعری پہ ژور نظر وګورو ـ نو یو اړخ خو هغه د ننګ غېرت پښتو او پښتنو څخه د دوستئ خبرې کوی ـ ولې بل اړخ هغه مغل څخه هم د خپلې وفادارئ اظهار نهٔ پرېږدی ـ نهٔ پوهېږو چې د هغهٔ پہ شخصیت کښې دا دوه مختلف خویونه ، طرز عمل او عناصر ولې راغونډ دی ـ او د هغهٔ مقصد څهٔ دے ـ دې کښې شک نشته چې خوشحال خان د پښتو ژبې یو

بهترین شاعر دے ـ او د کلام له رویه یې په پښتو ژبه لوئے احسان دے ـ خو یو طرف د پښتنو تعریف او بل طرف کنځل زمونږ په دې شک کښې اضافه کوی ـ چې ګوندې دا د مغل یو سیاسی چال وو ـ او خوشحال خان ددغه سیاست او ډپلومیسی اله کار دے ـ چې د پښتنو د مختلف قبائل تر مېنځ نفاق زرغون شی ـ او د هغوئ ددغه وخت د مغل خلاف اتحاد او اِتفاق پاره پاره او دړې وړې کړی ـ

د خوشحال خان دې شعر څخه صفا بربښی چې هغه د خټک قوم په سر یو حاکم مقرر وو ـ د خټک علاقه یې په اجاره وه ـ او عن چې څۀ وخت دپاره د یوسف زی علاقه هم دده په اجارداری کښې وه ـ

رعیت مې یوسفزیه درست خټک وو
په عزت او په حرمت کښې مې څۀ شک وو

# شاعري

د پښتو ژبې ئې ډېــره خوبی ورکړه
چې خوشحال کۀ په پښتو شعر اغاز

خوشحال خان د پښتو د شعر و ادب یو عظیم فن کار دے ـ د هغۀ فنکارانه او شاهکارانه صلاحیت او عظمت د دنیا د لویو شعراء او ادباء په قطار کښې حساب دے ـ هغۀ د ژوند په هر مسائل کۀ هغه سیاسی ، اجتماعی ، اخلاقی یا معاشرتی دی ـ او کۀ هغه اقتصادی ، علم البدن ،مذهبی او یا د مارغانو د ساتنې پالنې متعلق معلومات دی ـ هغه یو نابغه روزګار ،عالم فاضل او همه جهت شاعر دے ـ د سرداری او امارت په ناز و نعم یو بې مثله او عجیبه شخصیت کله خنجر تر ملا ، د غر دپاسه ناست ، کله د بازونو په ښکار ، کله سېر و سیاحت او کله د علم و دانش خبرې شیندل ددغه مدمغ زمانه ، لوئے مفکر ، اهل علم و قلم ، صاحب نظر او ادیب لیکوال حکیم ، سیاستدان ، مرد مېدان او مصور شغل وو ـ هغه یو شعله بیان سحر انګیز شاعر وو ـ هغۀ چې خپل خیالات د شعر پـــه رنګین الفاظ کښې په کوم حسن تعلیل بیان کړی دی ـ

شاید کۀ داسې نادر شاعرانه تشبیهات ، استعارات ، کنایات او تلمیحات بل یو شاعر داسې په تېز و تند او چست انداز وئېلی وی :-

" زما ژبه نۀ ده اور ده
گوزارونه د توپک کا "

" چې په ما به یې نظر د حقارت کړو
هغه واړو په هنر کښې وپسندلم
چې دا هسې ښۀ وئېل کا زۀ حېران یم
چې خوشحال راوړو له کومه دا ادراک "

هغه د شعر و ادب د مېدان ښۀ لوبغاړے ، هر فنِ مولا ، حاذق طبیب او د منفرد حېثیت خاوند دے ـ هغه کثیرالتصانیف ، کثیر الازواج او کثیر الاولاد شخصیت دے ـ د اخلاقیات درس ، د عشق و محبت جذب ، د مملکت رموز ، د قیادت معیار ، سخاوت تاریخی واقعات ، جنسیات ، مدح و ذم او د ننګ و غېرت خبرې خوشحال خان د کلام خاصه ده ـ نۀ پوهېږو چې هغۀ سره دا ومره وخت او د لیکلو دومره لوئې قوت څنګه پېدا شو ـ اګر چې بینې خلق خیال لری " چې خپلو خپلوانو ، دوستانو یا د خټکو بینې خلقو د خوشحال خان د کلام ذخیره په دې وجه زیاته کړه

چې خوشحال خان ته یو مخصوص مقام حاصل شی - کلام به د دوئ وو - او کسر به ئې پرې د خوشحال ورسور کړو - او دغسې د خوشحال د اشعارو یو انبار جوړ شو"- او لکه چې مېجر راوټی د خوشحال دوه نیم سوه کتابونه ، او ډاکټر انسه خدیجه فېروزالدین درې نیم سوه کتابونه ښائ - چې مبالغه ښکاری - او بیا د ټولونه لویه خبره داده چې شاعر امن پسند او انسان دوست وی - د جنګ و جدل تلقین نۀ کوی - ولې د خوشحال ژوند د بزم نه علاوه د رزم نه هم ډک دے -

,, شومئ قسمت کہ اس کی لڑائیاں پڑوسی قبائیل سے ہوکر حکومت وقت اور اپنے بچوں تک سے رہی۔ جن کے تعداد ایک سو بنتی ہے [1] ،،

د خوشحال د زړۀ خوښی به هغه وخت وی

چې بـــرېښنـــا د سپینو تورو شی د زغرو

زما مخې ته د خوشحال خان هغه دیوان پروت دے - کوم چې دوست محمد خان کامل ( مرحوم ) ترتیب و تدوین کړے دے - په دې دیوان کښې کم و زیات یو زر غزلونه ، نظمونه او قصائد وغېره د " خوشحال " په تخلص درج دی - او اندازتاً اویا غزلونه وغېره داسې دی - چې مقطع ئې خوشحال خټک راځی - ډېرې غزلې بغېر

---

۱ پشتون کون ، ص ۳٦۸

مقطع او تخلص دی ـ چې لوستونکے شک خوری چې شاید دا د بل
چا غزلونه وی ـ ددغه دیوان په صفحات ۵۵ او ۳۹۵ دوه غزلونه
داسې دی ـ چې صفا ظاهرېږی چې لکه د خوشحال خان نهٔ وی ـ
ددغه غزلونو مقطعې په دې ډول دی :-

کهٔ په سېل د ګلزار زهٔ فیض طلب ګرځم
بې له دوسته کهٔ ځی ګرم دے زما روح

هر شاعر څخه تازه مضمون د خان دے
د ښهٔ لیندې صدقه خوری د ښکار شاړی

---

# د شاعرۍ اصناف

---

مونږ د خوشحال خان شاعری په درې اهم برخو کښې وېشلے شو ـ
(۱) خرافات یا جنسیات (۲) ذم و هجو (۳) روایتی شاعری
(۱) د دنیا په مخ به شاید داسې شاعر په تېره روانه او یا راتلونکی
وخت کښې پیدا شی ـ د چا په کلام کښې به چې د جنسیات په
لحاظ دومره لچرپن ، لغویات ، فضولیات ،واهیات د اخلاقو نه

پرېوتی اشعار او خرافات موجود وی ـ لکه څومره چې د خوشحال خان په کلام کښې موجود دی ـ ځینې خلق د هغهٔ د کلام دغه اړخ د هغهٔ سپین زړهٔ او بې باکۍ څخه مخصوص کوی ـ خو افسوس دے چې هغوئ دې حقیقت نه بیخئ چشم پوشی کوی چې د انسانیت او سړیتوب هم څهٔ تقاضات وی ـ انسان د خپل نجی ژوند په دائره کار کښې کهٔ هر څو پرېوتی حرکات و سکنات لری ـ ولې اجتماعی ژوند کښې د اخلاقیات د اقدار نه لاندې مراسم او فضولیات نه ډېره او څنګ کوی ـ چې د نورو په نظر کښې د انسانیت د درشل نه ښکته ګوزار ثابت نهٔ شی ـ مونږ چې خوشحال خان د روایتی شاعرۍ په رڼا کښې څومره اوچت وینو ـ دومره د جنسی خرافات د بیان ضمن کښې د هغهٔ کلام او د هغهٔ شخصیت لاندې ښکاری ـ نهٔ پوهېږو چې د هغهٔ د دیوان د ترتیب په موقع د هغهٔ نمسی افضل خان یا وروستو پوهانو لیکوالو یا ادارو د هغهٔ د کلام نه د خرافات دغه ګندګی ، ښځله یا کچره ولې بهر نهٔ کړه ـ او دا احساس ئې ولې ونکړو ـ چې د هغهٔ کلام به راتلونکې زمانه کښې زنانه او ځوانه طبقه هم لولی ـ او د هغوئ په ذهن به زمونږ د ژبې ددې دومره لوئے شاعر متعلق منفی اثرات مرتب کېږی ـ نن حال دادے چې هیڅ ذی هوش پښتون د هغهٔ دیوان پخپل کور کښې ښکاره په میدان پرېښودے نهٔ شی ـ خصوصاً هغه کورونو ځایونو

کښې چرته چې زنانه یا نارینه اولاد تعلیم یافته وی ـ زۀ دلته د هغۀ د لغویات او فضولیات د اشعارو د مثالونو ورکولو نه اجتناب کؤم ـ البته د هغۀ د جنسی خرافات د یو قطعه ددې شعر په راوړلو اکتفا کؤم ـ

د ځوانۍ حال مې نۀ دے چې مې ووې
دا خبره د پیرۍ د هفتاد (۷۰) کړم

یو بل ځائے لیکی :-

زۀ چې زوړ یم حال مې دادے
د ځوانانو به څۀ حال وی
ورځ او شپه مې دا فکرونه
کۀ وادۀ مې کال په کال وی
تر اویا کلونو تېر شوم
واویلا مې بښۀ جمال وی

ځکه خو وائ :-

په زېبا گفتار دې هېڅ تقصیر ونکړو اے خوشحاله
کۀ کردار دې هم زېبا وے چار به ولې وه مشکله

---

# ذم و هجو

ذم و هجو د خوشحال خان ختک د شاعرۍ یو اهم او پسندیده موضوع ده ـ د هغهٔ په شاعرۍ کښې مدح سرائ نسبتاً کمه ده ـ هغه د بهلول لودی ، شیر شاه سوری او د خپلې زمانې د ایمل خان او دریا خان د جنگجویانه صلاحیت او پښتونیت تعریف کوی او د شاه جهان د احسانات اقرار هم کوی ـ ولې د مدح دغه شو اشعارو نه علاوه د هغهٔ د بدگویۍ ، هزل او سپکو سپورو ذخیره په تول درنه ده ـ هغه ځینې خپل همعصر د خپل ذاتی عناد په موجب بنه بنه کوی ـ چې مناسب نهٔ ښکاری ـ او د خوشحال خان عظمت او مرتبت ته نقصان رسوی ـ د هغهٔ په نظرکښې د مدح و ستائش جوګه ډیر کم کسان دی ـ هغه د خپل حرص او لالچ په بناء د هر چا مخالف دے ـ د نورو نه علاوه اورنګزیب بادشاه او د هغهٔ خپل زویې بهرام خان د هغهٔ د غندنې خصوصی ښکار دی ـ ځکه چې اورنګزیب هغه د منصب نه معزول کړے وو ـ او بهرام خان نافرمان وو ـ یعنی د هغهٔ په منصب قابض وو ـ او بل خوا ئې د مغل د

چاکری په منصب نامزد اشرف خان هجری مخالفت کولو ـ هزل او فحش ګوئ د خوشحال خان د کلام خاصه ده ـ خو هغه ددې هر څۀ باوجود خپله پوچ ګوئ او بد رد کنځل نۀ ګنی ـ کوم چې د هغۀ د خولې د جذباتیت او انتقام تحت شعوری یا غیر شعوری طور راوځی :-

کۀ څوک شته چې یې د زړۀ په غوږو واوری
مسخرې مـــذاق مې نـــۀ دی دا ارشاد کړم

حال حقیقت وایم چې هر چا وته معلوم شی
زۀ څۀ شاعر نۀ یم هی توبه له مـــدح وذمه

خوشحال خان د اورنګزیب خلاف دے ـ بد ئې وائ ـ د خپل زامنو خصوصاً د اشرف خان او بهرام خان بر خلاف دے ـ غندی ئې ـ پښتانۀ ورخخه ملا نۀ تړی ـ سپکوی یې ـ د یوسف زی ، غوری خېل ، بنګش ، اورک زی او افریدی غندنه کوی ـ او دغسې د ځینې مغل منصبدارانو هم ښۀ په ډاګه مخالفت کوی ـ دا څو شعرونه د مثال په طور وګورئ :-

څۀ یوازې په ما نۀ ده کۀ ژوندے وی
اورنګ شاه بادشاه به ډېر کاندې پائمال

شاه جهان غونډې بادشاه په بند بندی کړې
پـه اورنګ باندې خطاب د محی الدین ږدې

کــۀ لـــه هجوے له غندنے درته وایم
فردوسی مې په دا کار کښې نۀ دے سیال

فردوسی لری څو بېته له محموده
زۀ لرم د اورنګ زېب د ذم جوال[1]

ما هم هېڅ تقصیر په ذم د چـا ونکړو
د اورنګ بادشاه پـه غـــاړه دا وبال

هندستان به ګــوره څۀ شی ستا له فعله
خداے دې ورک کړه رافضی علی مردانه

اورنـــګ شاه وتـــه نظر کړه
چې یو څۀ خونی خونخوار دے

---

[1] پنډ ، انبار

څۀ شو شمشير خان ترين كۀ پوخ پنجهزاري دے
مـــا وتـــه هيڅ نـــۀ دے مګر بې اومه شلغمه

تفـــاوت د خپل پـــردی وربـــاندې نشته
كۀ ئې ګورې اورنګ زېب بادشاه ګمراه دے

خـــدايـــه زر يو بل اورنګ لره پيدا كړه
په جهان كښې ښادی نشته چې اورنګ شته

شمس العلماء قاضی مير احمد شاه رضوانی د خوشحال خان متعلق ليكی :-

په شكوه د اورنګ زېب او د بهرام كښې
فردوسی هـــم ورتـــه پاتې شی حـــېران

د خوشحال خان د كلام لوستو نه پس مونږ ته د هغۀ د زويې عبدالقادر خان خټک دا شعرونه عجيبه شان ښكاری :-

" سپک وئېل يې هر ګز نۀ وتل د خولې نه
چې به چاوته پـــه قهر و پـــه عتاب شۀ "

" كلام ډېـــر ددۀ شيرين وو تـــر نباته
كم ددۀ تر خولې تراخۀ وتل و چـــاته"

# روایتی شاعری

د خوشحال خان خټک د شاعرۍ یوه لویه برخه په روایتی شاعرۍ باندې بناء ده ـ او لکه د نورو شاعرانو حمد و نعت ، تصوف ، اخلاقیات ، مذهب ، عشقیات او منظر کشی وغیره موضوعات شامل دی ـ هغۀ د ژوند په مختلف اړخونو لکه همدردی ظلم و انصاف ، حرص و لالچ ، دروغ رشتیا ، وفاداری ، صبر ، زهد تقوٰی ، محنت ، پت ، قناعت ، سخاوت او نور ډېر متفرق موضوعات طبع ازمائ کړې ده ـ البته د هغۀ په شاعرۍ کښې د قومیت ، باز و شاهین ، ښکار ، رموز مملکت ، تواریخی واقعات او غېرت شجاعت موضوعات یو خوا کۀ تر څۀ حده نوی دی نو بل خوا هغه په دې موضوعات د خپل فکر نیلے د نورو پښتنو شاعرانو په مقابل زیات زغلولے دے ـ او په دې موضوعات یو منفرد مقام لری ـ ددۀ د شاعرۍ دا هغه غټه برخه ده ـ چې څوک پرې ملامت یا وټه اېښودے نۀ شی ـ او ددغه شاعرۍ د موزونیت کۀ هر څومره تعریف وشی کم دے ـ

دخینې مختلف موضوعات دا څو شعرونه د مثال په طور وګورئ :-

چې پـــه دواړو لاسو ونهٔ وهی تورې
چا تختونه په میراث نهٔ دی موندلی

ښښتنې جـــونـــه مې ولیدې په سترګو
څوک چې ترکې د خطا ستائ خطا دی

مړهٔ هغه چې نهٔ ئـې نام نهٔ ئې نشان شته
تـــل تـــر تـــلـــه په ښهٔ نام پائ ښاغلی

د منت دارو کهٔ مرم پکار مې نهٔ دی
کهٔ علاج لره مې راشی مسیحا هـــم

یا د سپینې تورې مرد شه یا عاشق شه
چې یـــادېـــږې پـــه سندرو په بدلو

لکه باز په لـــوئـے لوئـے ښکار زما نظر دے
نهٔ چې ګرځی ګونګټ نیسی باد خورک یم

کهٔ اسمان دې د مزری په خوله کښې ورکا
د مزری په خـــولـــه کښې مهٔ پرېږده همت

له په خوب کښې په لرزه پرېوزی له کټه
چې د چا تر غوږ زما د توري شرنـګ شی

زهٔ ئې چالره وهم قدر ئې چا زده
پـــه اور وسېزه دا توري قلمونه

پـــه جهان د ننګيالی دی دا دوه کاره
يا به وخوری ککری يا به کامران شی

زهٔ خوشحال کمزورے نهٔ يم چې به ډار کړم
پـــه ښکاره نارې وهم چې خوله ئې راکړه

---

# رباعيات

ربع په معنٰی د څلور يا څلوريزه ده ـ رباعی يا څلور مصرعيزه د شعر هغه صنف يا قسم دے ـ چې اولنے شعر يې هَم قافيه وی او د دوېم شعر دوېمه مصرعه يې د اولنی شعر دواړو مصرعو سره هَم قافيه او هَم وزن وی ـ رباعی کښې هم لکه د ټپې ټول مطلب او مدعا قلمبند وی ـ رباعی د بحر هزج د اصول مطابق وئيلے شی ـ د بحر هزج څلورويشت وزن دی ـ چې دولس د شجرۀ اخرب تحت د " مفعول " او بـاقی دولس د شجرۀ اخرم په وزن "فعولن" نه شروع کېږی ـ

رباعی په شاعرانه اصطلاح کـښې هغه صنفِ سخن دے چې په څلور مصرعو کښې شاعر خپل ټول مقصد بيانوی ـ او د اولنی ، دوېمې او څلورمې مصرعې د قافيو خپلو کـښې تړون يا هَم قافيه او هَم وزن خاص خيال ساتی ـ

رباعی کښې ژوند سره تړلی هر قسم موضوعات شامل وی رباعی پښتو کښې فارسی نه منتقل ده ـ په فارسی کښې د عمر خيام رباعيات لوئے شهرت لری ـ او د دنيا په هره ژبه کښې ئې ترجمې

موجودې دی - پښتو کښې اولنۍ ښـهٔ ترجمه د صنوبر حسېن کاکاجی ده - خو ناچاپ ده -

خوشحال خان د پښتو ژبې اولنے شاعر دے چې ډېرې زياتې رباعيانې ئې ليکلې دی - او تعداد ئې شپاړس سوه څلور دے او دا ټول رباعيات ئې د بحر هزج د اصول مطابق دی -

---

# مجموع البرکات او اکوړ خان

د سید عبدالله شاه بخاری د " مجموع البرکات " دوه قلمی نسخې زما په وړاندې دی ـ یوه نسخه د فجر من الله کاکاخېل المشهور سپین دادا ملکیت ده ـ چې په غټ قلم تحریر ده ـ لوستو کښې واضحه ده ـ او واقعات ئې په زمانه ماضی بناء لزی ـ دوېمه نسخه د پښتو اکېډیمۍ ده ـ چې ق ۹۳۳ نمبر لری ـ دا په ډېر نری قلم تحریر ده ـ لوستو کښې ډېره واضحه نهٔ ده ـ فوټو سټېټ نقل دے ـ ډېر الفاظ پکښې کټ شوی هم دی ـ په زمانه حال مبنیده ـ او ځینې فقرې ئې د سپین دادا د نسخې نه هم مختلفې دی ـ او سن تحریر هم نهٔ لری ـ معلومېږی چې دا نسخه د یو بل کتاب نه فوټو سټېټ نقل دے ـ

دا دواړه نسخې هم لکه د میان محمد بادشاه د قلمی کتاب تاریخ بدرجهان[1] (نثر) او مناقب شیخ رحمکار[2] (نظم ) د خټکو د خانانو د کورنۍ مشر " اکوړ خان " د هندوستان نه راغلے بولی - د تاریخ بدرجهان په منقبت کښې دا واقعه د همایون بادشاه د ړومبی دور اخېری ورځو دور حکومت څخه ښکاری - او دا واقعه ملک محمد درویش المعروف ملک چنجو څخه منسوب ده - چې د نورو قلمی نسخو برعکس بیان دے - ځکه چې په نور نسخو کښې د بادشاه د نوم ذکر نشته - او دا واقعه اکوړ خان څخه منسوب ده - چې د اکبر په زمانه ئې ژوند کوو - البته د میان محمد بادشاه په دې دواړو نسخو کښې د اکوړ خان اصلی نوم انور خان ذکر دے - داسې معلومېږی چې د تاریخ مرصع د اکوړ خان متعلق د رهزنۍ واقعات هم د سلطان صدرالدین ، میان ولی ، اخوند شرف بلخی او اخون میان داد په مناقبات بناء دی - او لکه چې ښکاره ده افضل خان د ښاغلی دوست محمد خان کامل او پرېشان خټک مطابق دېر ځایه د تاریخ شکل مسخ کړے دے - او د هندوانو د مندری پرېکول ، وژل او بیا خپله شجره نسب د خوشحال خان د بیاض او دستار نامه په حواله د کاکا صاحب میان ګانو څخه په یو نوی

---

1 قلمی نسخه پښتو اکېډیمی ، نمبر ۸۳۸ ، ص ۱۱۱

2 قلمی نسخه پښتو اکېډیمی ، نمبر ۸۴۴ ، ص ۸۰

رنګ او انداز کښې پېش کړې ده ـ او د کاکا صاحب سېدان او خټک وغېره اقوام ئې د يو نيکهٔ " کرلاڼ " نمسی شمارلی دی ـ د خوشحال خان ډېر کتابونه د تيرؤ نه متواتر بهر راوتل را روان دی چې وروستنے مثال ئې " نام حق " دے ـ ولې په خپل بياض چې هغهٔ د خپل ځان متعلق کوم واقعات درج کړی دی ـ او تاريخ مرصع ئې ثبوت دپاره بيا بيا ذکر کوی ـ مونږ ترې تر ننه محروم يو ـ

راځئ چې د مجموع البرکات د اکوړ خان متعلق د منقبت هغه برخه وګورو ـ د کوم مطابق چې اکوړ خان د هندوستان نه راغلے وو ـ او د ځوره په علاقه کښې ئې رهزنی او لوټ مار کوؤ ـ او بيا د شيخ مست بابا په سفارش ئې يو اهم مقام حاصل کړو ـ سيد عبدالله شاه بخاری د ذکر شوی کتاب په " مناقب قسم دوم " کښې داسې قلمطراز دے ـ

" مناقب قسم دوم "

در احوال شريفه و مقامات عاليه و مراتب سنية و خوارق کافيه و کشوفات وافيه قطب الاقطاب غوث الاعظم شيخ المشائخ شيخ مرشدے و صاجيم مخدومنا زيدة السالکين ، قدوة العارفين ، عمدة المحققين حضرت شيخ بهادر قدس الله سرهٔ که در اين جائے شيخ ابک صاحب مشهور است ـ و پدر حضرت شيخ رحمکار قدس الله سرهُ اند ـ پس بدان اے عزيز که چهار مناقبات چهار تن حضرت ايشان از خلفائے اوشان کرده اند ـ و آن به تمام ها فقير معلوم نموده اند ـ و حکايت ها از کتب تصوف و مناقبات بتبع ديگران بسيار اند ليکن اصول چهار است ـ يکے سلطان صدرالدين که از همه عمده خليفه ايشان

بود ۔و در مرتبه دوئم از بقاء[1] الله دراتک زیارت شریف مشهور دارند ۔و ایشان به وے بسیار مشفق بودند ۔از ان به همه اوصاف او موصوف است۔ تا از پیروی ایشان او نیز بظاهر بوشیده ، و معشوق ایشان بود ۔و هم رضائے ایشان ویرا[2] معلوم بود و مقامات و ولایت بلند دارند ۔و دیگر میان ولی که در ولایت چچ از جهت که بمزار شریف او خانهائے سفید است ۔به تکری صاحب حضرت مقام پنجم از مرتبه فردانیت بمرض چشم بسیار تشهیر دارند ۔و دیگر اخوند شرف بلخی در اول فردانیت ، و اخون میان داد ، و او در دورا نیست است ۔ازین صاحبان چنین نقلے است که حضرت شیخ بدر ایشان راسه پسران بود ۔چون حضرت شیخ غالب حضرت مادر زاد بود در غایت عروج ۔و آن پسران خورد بودند ۔و چون بالغ شدند ۔تا مرتبه دورانیت یافت و حضرت ایشان بتدریج درآن وقت تامداربت حاصل کرده بود۔ اتفاقاً هر سه از پدر رخصت یافت و ازو ملک خوړه آمدندو دریک جائے خلوت ساختند ۔و در آن زمان اکور خان نام که جد کلان خانواده ختک بودند ۔و از طرف هند آمده ۔و درملک مذکور سکونتے کردند ۔و هر جانب راهزنی کردند و عالم ازوے تنگ آمده تا بادشاه آن زمان اگاهی یافت ۔و برائے تاراج وکشتن او فوج عظیم مقرر ساخته بود ۔ روان ساخت و بفرمود هر که درکوه هائے پشاور بیابید ، بقتل برسانید پس درآن زمان حضرت ایشان به صاحبان فرمودند ۔اے برادران از شهر دهلی برائے شریان سوار ها بسیار آمدند ۔مبادا از سبب ناشناسی به ماضررے برسیاند ۔ بباید که از این جابر ویم گفتند ، دعوے کشف این قدر کنی و این نوع توکل به خدا نیاری از قضائے او کجا گذر کنی نه رویم ، بلکه رضا به قضائے او رهیم بارها گفتگوئے واقع شدند ، اخیرالامر حضرت ایشان که به رتبه کمالات بلند منور بود ۔برخاست و برفت و صاحبزادگان که از آن خبر نداشت بلکه الحال در مرتبه مذکور بودند ۔در آن جابماند ند ۔پس از چند روز قضائے الٰهی چنان وارد

---

[1] د تصوف اخیری مقام

[2] هغهٔ ته

شد که سرهائے متبرکه ایشان هم در آن جائے از دست آن ظالمان بُریده شدند ۔ و در نیزهاپیچیده روانه کردند ، اجساد شریف ایشان پس ایشان رفت۔ بدانجائے که هنوز مدفن دارد ۔ ایشان دانستند که اولیاء الله راکشتیم سرهائے خود بدست هائے گرفتند و عوام و خواص بروبداند ۔ که به هم آن جامه که بخون الوده بود ۔ به پدر رفتند حضرت ایشان بصاحب مابسیار ملامتے نمودند ۔فرمود اے حضرت مادر این کار تقصیرے نیست چه کردے که بسیار الحاحے به ایشان کردم۔ اثر نکرد پس امدند هم در این جائے که سرهائے ایشان برجسدهائے برابر شدند ۔ و دفن ساخت بعد از آن ملک نیز از این امر مطلع شدند ۔ استفسهارےنمودند ۔ که ایشانگیانند ظاهر شد که اهل رسول است که به فلان نام رواجے دارند ۔ و پسران فلان که آن حضرت کلان راملک به خوره نه آمده ۔ لیکن خوب دانسته چونکه در آن وقت ابتدائے حال شیخ مستی بود ، و آن زمان در این ولایت ملک نه آمده ازان چندین استفسارے کرد ۔ که چون معرفت یافت برائے تسلی و غور خواهی از دهلی روانه شدند ۔ پس امدند ، و نذرها و شکر ان ها بسیار از هر نوع به دربار شریف ایشان نهادند ۔ گفت ۔ حضرته برائے خدا عذرم قبول دار ، ایشان به وے بسیار مهربانی و شفقت فرمودند ۔ و گفت پسران من شربت شهادت چشیدند و قسمت از آن زیاده نبوده ۔ حمدالله ، که درجۂ شهادت یافت چه تقصیر است ۔ هر چه کند خدائے جل شانه کند ، و در حقیقت بنده راهیچ نیست و مجازًا در برابر آن چیزے نیست که تو بظاهر در عالم اسبابِ حکم قتل عموم فرمودۂ ، از امرتو چهار هزار عالم کشته شدند و آن همه به ناحق کشته شد و این همه ناحق بودند ۔ که از مدعیان کسے نیافتند ۔ ملک بسیار زاری کرد ،و گفت صاحبه در آن وقت از خدائے تعالیٰ امرزش من بخواه فرمود ضمان دیگران برمن نیست ۔ در آن چه کنم و چون بار ها از و واقع شد ند ۔ فرموده خیراست و چند کارها در کفارت آن بدو تعلیم کردند ۔ که در برابر آن چنان وچنین امیدوارم ۔ که الله تعالیٰ از تو خوشنودشد ۔ باز که طبع من چشیت ۔ مگر شمابه خود از من چیزے بخواهی هر چند که باشد بد هم هر چند الحاحے نمود قبول نه داشته ۔ الغرض گفت چون زیاده چیزے نه خواهی این ملک ختک کوهستان ایشان قبول کرد ۔ و بدان دعائے ساخت پس فرمود که من به عیال خود نگزارم مگر آن شخص که موجد این فتنه بود ۔ طلبم و او

رابحضور مقرر یم ........ و مهتر ان ختک رانیز طلب کرد و بدان بیعتے و عهدے درباب او خواست فرمود، و فرمود که اے مرد مان این امیر شمایان هست و شما تابع او اید[1] -

د مجمع البرکات په اخېر کښې درج دی :-

" الحمدلله علی الاتمام والشکر لله الاختتام والصلوة والسلام علی الرسول خیرالانام ال قیام الساعة وساعة القیام که نسخه مبارک مسمی مجموع البرکات درمناقبات سلسهائے خواجه شیخ رحمکار ولی قدس سره بخیر و عافیت باتمام رسید در روز سه شنبه از ماه عاشوره در ۱۲۸۵ھ[2] -

## ترجمه :- دویم قسم مناقب

د شریفانو حالات د اعلیٰ مقامات او د اوچتې درجې د خاوندانو مرتبه د متواتر او مسلسل خوارقاتو او حقائقو کشف حضرت قطب الاقطاب غوث الاعظم شیخ المشائخ شیخ مرشد او زمونږ پیر دستګیر غوره او منتخب سالک د عارفانو پېشوا او امام

1 د کاکا صاحب د فجر من الله المشهور سپین داد ملکیت کښې چې کومه اصلی خطی نسخه ده ـ دا منقبت په ص ۳۱ و ۳۲ درج دے ـ چې د ډاکټر میان سهیل انشاء په کوشش او مهربانئ ما څخه يې نقل موجود دے ـ دویم منقبت د پښتو اکیډیمی پېښور یونیورسټی په نمبر ق ۹۳۳ درج دے ـ هسې خو ص ۴۸ ده ولې د شمېر په لحاظ ص ۲۶ ده ـ د پښتو اکیډیمی نسخه چرته د یو بل اصل نقل دے ـ

2 بمطابق ۱۸۶۹ء -

تحقیق کؤنکو کښې د ټولو نه اعلیٰ او ښهٔ حضرت شیخ بهادر قدس الله سرهُ چې دلته په شیخ ابک صاحب مشهور دے ـ او د حضرت شیخ رحمکار قدس الله سرهُ پلار دے ـ نو اے وروره خبر شه چې د دوئ په شان کښې د دوئ شلور خلیفه ؤ شلور مناقب بیان کړی دی ـ او دغه ټول مناقب ما فقیر ته معلوم دی ـ یو سلطان صدر الدین وو ـ چې د هغوئ په ټولو کښې غوره خلیفه وو ـ او د تصوف اخېری مقام " بقاء الله " کښې په دویمه مرتبه وو ـ د دوئ زیارت په اټک کښې دے ـ او ښهٔ مشهور دے ـ او هغوئ په دوئ ډېر مهربان وو ـ ځکه چې د ډېرو اوصافو مالک وو ـ او تر دې چې دهٔ ته د خپل پیر پټ رازونه معلوم وو ـ او د خپل پیر په رضا او مصلحت وو ـ او دے هم د ډېر اوچت مقامات او ولایت مالک وو ـ او بیا دویم میان ولی وو ـ چې مزارشریف ئې د چچ په علاقه کښې په ټېکری کلی کښې دے ـ او په مزار ئې سپین ګنبت دے ـ او د رتبې په لحاظ په پنځم مقام دے ـ او د سترګو د بیمارو دپاره شهرت لری ـ او بل اخوند شرف بلخی صاحب دے ـ چې ځانته د پو منفرد مقام مالک دے ـ او اخون میان داد هم د خپل دور مشهور ولی وو ـ

ددې بزرګانو نه نقل دے چې :-

د حضرت شیخ ( مست بابا ) دِرې زامن وو چونکې حضرت مست بابا د خپل وخت مادر زاد ولی الله وو ـ او دغه زامن ئې وارۀ وو ـ خو چې لوئے شول او د مرتبو خاوندان شول نو په دوئ کښې دغه زمانه حضرت بهادر بابا د " قطب " په اعلٰی مقام مقرر وو ـ اتفاقاً دغه درې وارو زامنو د پلار نه رخصت واخستو ـ او دغه ځائے نه د "خوړه" علاقې ته راغلل ـ او دغلته په یو ځائے کښې خلوت نشین شول ـ او دغه زمانه اکوړ خان نومې یو سړے چې د ختکو د خانانو د کورنۍ مشر دے او د هندوستان نه راغلے وو ـ په دې ملک کښې ئې سکونت اختیار کړے وو ـ او هر اړخ ئې د رهزنۍ او لاره شوکولو بازار گرم کړے وو ـ او خلق د هغۀ نه ډېر تنگ راغلی وو ـ عن تر دې چې ددۀ د ظلم نه ددغه وخت بادشاه خبر شو ـ او ددۀ د تباهۍ او قتل دپاره یې یو لوئے فوځ راولېږلو ـ او حکم ئې وکړو ـ چې د پېښور په غرئیزه علاقه کښې هر څوک چې په لاس درشي وژنئ ئې ـ پس دغه وخت حضرت بهادر بابا دغه خپلو ورونو ته وفرمائېل چې اے ورونو ! د دهلی د ښار نه یو لوئے لښکر د شر و فساد کوُنکو خلاف راروان دے ـ هسې نه چې په نا پېژندگلو کښې مونږ ته نقصان راورسوی ـ نو باید چې دې ځائے نه لاړ شو ـ دوئ ورته په جواب کښې ووې ـ چې د کشف دعوٰی څو لرې ولې په خدائے پاک توکل نۀ لرې ـ د مرګ نه خو چرته هم خلاصے نشته ـ

مونږ دې ځائے نه نۀ ځو ـ او مونږ د الله د طرف نه په قضا رضا يو
بحث و مباحثه ډېره وشوه ـ اخېر کار حضرت بهادر بابا چې د
لويو کمالاتو په مرتبهٔ منور وو پاسېدو ـ او روان شو ـ صاحبزادګانو
ته له دغه وخت د هغۀ په شان مرتبه حاصل نۀ وه ـ دوئ دغلته
پاتې شول ـ د الله پاک د طرف نه څو ورځې پس دوئ په داسې
مرګ شهيدان شول چې سرونه مبارک يې د ظالمانو د لاسه همدغه
ځائے پرېکړے شول ـ او په نېزو کښې تومبلی روان شول ـ ولې د
دوئ تنې په دوئ پسې روانې وې ـ او چې کوم ځائے اوس دوئ ښخ
دی ـ دغه واقعه هم دغلته واقع شوې ده ـ دغه ظالمان پويې شول
چې د الله وليان مو ووژل ـ

دغه تنو چې خپل سرونه يې پخپلو لاسونو کښې نيولی وو ـ
او عام و خاص خلقو هم پېژندل ـ په هغه وينو لړلو جامو کښې خپل
پلار ته حاضر شول ـ زمونږ صاحب خپل پلار ډېر ملامت کړو ـ خو
هغوئ ورته وفرمائيل چې زما په دې کښې هېڅ ګناه نشته ـ څۀ مې
کړے وے ما خو ډېر اصرار وکړو خو په هغوئ يې هېڅ اثر نۀ وو ـ
زۀ ترې څکه لاړم ـ او د دوئ سرونه چې هم دې ځائے خپلو تنو
سره برابر شول ـ نو مونږ دلته ښخ کړل ـ حاکم چې دې واقعات نه
خبر شو او تپوسونه ئې وکړل ـ نو هغۀ ته معلومه شوه چې دوئ خو
اهل رسول وو ـ چې په فلانی نوم مشهور دی او د فلانی زامن دی ـ

نو دغه حاکم خپل ځانی دلته راغلو ـ ګوندې هسې به چرې هم د "خوړه " علاقې ته راغلے نۀ وو ـ او دغه زمانه شېخ مست هم دلته تازه تازه راغلے وو ـ حاکم چې د دوئ د تسلی او دل جویی دپاره دهلی نه راغلو ـ د هر قسم شکرانې او نذرانې یې هم ځان څخه دربار ته راوړې ـ او د حضرت مخکښې ئې دا هر څۀ کېښودل ـ او وې وئېل ! چې یا حضرت زمونږ عذر قبول کړه ـ خو حضرت د ډېرې مهربانی او شفقت نه وفرمائېل ـ چې زما زامنو د شهادت شربت نوش کړو ـ او د هغوئ نور ژوند په قسمت نۀوو ـ د الله پاک شکر دے چې د شهادت درجه ئې بیا مونده ـ ستاسو په دې کښې هېڅ ګناه نشته هر څۀ چې کوی لوئے الله کوی ـ او په دې کښې د انسان هېڅ وس نشته ـ تاسو د عام خلقو د قتل حکم وکړو او ستا په حکم څلور زره کسان په ناحقه قتل شول ـ عن چې اوس ددغه خلقو څوک مدعیان هم پاتې نۀ دی ـ حاکم ډېر منت وکړو ـ چې د الله پاک نه ما دپاره معافی وغواړئ ـ دوئ وفرمائېل چې زۀ خو د نورو ضمانت کولے نۀ شم ـ خو دومره درته وایم چې دومره څۀ وکړه ـ چې الله پاک تانه راضی شی ـ حاکم ووې چې زۀ خپله مرضی کولے نۀشم ـ البته تاسو مانه څۀ وغواړئ ـ چې هر څۀ وی ـ زۀ به ئې درکړم ـ حاکم ډېر اصرار وکړو ـ ولې حضرت قبول نۀ کړل ـ الغرض دا ئې ووې چې نور څۀ نۀ غواړئ نو کم نه کم دا د " ختکو " ملک

قبول کړئ - دوئ وفرمائېل چې زما اولاد ته ددې ضرورت نشته - البته زۀ دلته تاته هغه سرے راغواړم - چې ددې ټول فساد جرړه ده تاته ئې حاضر کوم - - - - - - - - او بیا ئې د خټکو مشران هم راوغوښتل - او هغوئ نه ئې ددۀ په حق کښې وعده او عهد واخستو او وې فرمائېل چې اے خلقو اوس دے ستاسو امیر دے - او تاسو ددۀ تابع شوئ[1] -

د مجموع البرکات د کتاب په اخېر کښې د تحریر کال ۱۲۸۵هـ درج دے - چې د عیسوی کال مطابق ۱۸٦۸ء جوړېږی -

" الحمد لله علی الاتمام والشکر لله الاختتام والصلوة والسلام علی الرسول خیر الانام ال قیام الساعة وساعته القیام. که نسخه مبارک مسمیٰ مجموع البرکات درمناقبات سلسلهائے خواجه شیخ رحمکار ولی قدس سرهٔ بخیر و عافیت باتمام رسید. در روز سه شنبه از ماه عاشوره در ۱۲۸۵هـ[2] -

د سید عبدالله شاه بخاری لیکلے کتاب " مجموع البرکات " او د میان محمد بادشاه مناقب شیخ رحمکار[3] دا واقعه د سلطان صدر الدین ، میان ولی ، اخوند شرف بلخی او اخون میان داد د

---

1 قلمی نسخه پښتو اکېډیمی ق ۹۳۳ ص ۴۸ و قلمی نسخه فجر من الله المشهور سپین دادا ص ۳۱

2 قلمی نسخه فجر من الله المشهور سپین دادا

3 د پښتو اکېډیمی قلمی نسخه نمبر ۸۴۴ ، ص ۸۰ و ۸۱

مناقبات په اسناد بیان ده ـ څوک چې د بهادر بابا (ابک بابا) خاص الخاص مریدان او خلفاء وو ـ او ددغه زمانې د واقعات چشم دید ګواهان وو ـ مجموع البرکات لیکی :-

" بدان اے عزیز که چهار مناقبات چهار تن حضرت ایشان از خلفائے اوشان کرده اند ـ و آن به تمام ها فقیر معلوم نموده اند "

نو بل اړخ ته میان بادشاه لیکی :-

بـــارې څــلور کسه مشهور دی
پـــــه درګــاه د رب منظور دی

د صـــاحب پـــــه پـټ کــردار
دا څـــــلــــور وو خـــــبردار

هم له دوئ بـــه ئې مصلحت وو
چې بـــه فـــارغ له عبادت وو

دا څـــــلــــور ئې هم نشین وو
پـــــه دوؤ کــونو کښې ګزین وو

هر یو بیل کړے کتاب
مناقب د فیض مآب

د هر یو کتاب مې ګوره
دے لیدلے زما وروره

هر یو کاندې سطنت تل
پس له فوته زیادت تل

یومیان ولی صاحب نېک نام دے
چې په چچ کښې ئې مقام دے

په تیکرو زیارت زیبا دے
د ړندو د لاس عطا دے

دویم شاه صدرالدین دے
په سلطان صاحب مبین دے

په اتک پورې مقام دے
ننګیالے ولی نیکنام دے

بـــل دربم اخـــون مېداد دے
چې د پاک رب په مینه شاد دے

او څـــلـــورم اخـــون شرف دے
چې پـــه بلخ کښې مشرف دے

پـــه مـنـاقـبـات کښې دا شـان
دا بـيـــان دے پـــه يـــو شان

---

مونږ ددې کتاب ددې اولنۍ برخې لوستو نه پس په دې نتیجه رسو چې :-

۱. د اکوړ خان اصلی نوم انور خان وو -
۲. اکوړ خان د هندوستان نه راغلے وو -
۳. اکوړ خان ۱۵۸۹ء یا دې نه وروستو د شاهراه اعظم په حفاظت مقرر وو -
۴. د خوشحال خان ځینې اشعار د اکوړ خان په ځائے د یحیٰ خان په قیادت او سیادت دلیل دی -
۵. خټک پښتانهٔ او سادات دوه مختلف قومیتونو دی - خو "دستار نامه " او " تاریخ مرصع " خوشحال خان او حضرت کاکا صاحب د یو نیکهٔ اولاد ښائ -

٦. د تاریخ مرصع اکثر بیانات او واقعات مبهم و مشکوک او جانبدارنه دی -

۷. د خوشحال خان ننگ غیرت د شاه جهان په مرسته او د اورنگ زیب خلاف د نفرت اعلان وو -

۸. د خوشحال خان تعلق " بیگ " نسل سره یقینی دے -

---

# خوشحال خان یا خوشحال بېګ

" بېګ " د ترکی ژبې لفظ او اعزازی لقب دے ـ د ترک النسل ځینې خاندان د اوچتې درجې حېثیت لرونکو دپاره دا لفظ د لقب په طور مخصوص وو ـ لکه د انا طولی د ریاستونو حاکمان خصوصاً د سلجوقیانو د اخلاف قراقر یونلو څخه د " بېګ " د کلمې استعمال عام وو ـ تیمور اعظم هم اصلیت کښې " بېګ " وو ـ او لکه څنګه چې یوه زمانه د لویو لویو بادشاهانو نومونو څخه خاقان ، کاغان ، خان یا سلطان لګېدو ـ او بیا د " خان " دغه کلمه پښتون نژاد نوم څخه عام مستعمل شوه ـ نو دغسې هندوستان کښې تُرک النسل مغل شهزادګانو سردارانو او نوابانو نوم څخه د " بېګ " د کلمې استعمال شروع شو[1] ـ

---

[1] دائره معارف اسلامیه ، جلد ۵ ، ص ۲۹۵

مونږ حیران یو چې د جهانګیر په زمانه د خان جهان لودی ، ابراهیم خان مومند ، احداد خان مومند نومونو څخه د بېګ کلمه ولې ونۀ لګېده ـ حالانکه پیر خان المعروف خان جهان لودی د جهانګیر دومره زیات قربت کښې وو ـ چې هغۀ ته ئې خپل زویې وې ـ او د فرزند خان په خطاب نمانځلے شوے وو ـ او د جهانګیر د حرم پرده نشینو هغۀ نه ستر او پرده نۀ کوله ـ او بیا هم ددغه جهانګیر دوران حکومت بېرم خان آفغان ، شیخ رکن الدین داؤدزی بخطاب شېر خان ، سردار خان افغان ، جمال خان افغان رستم خان افغان او یا د پېښور په سیمه د غوری قبائل نواب ملک مهب وغېره په اهم مناصبو مقرر پښتنو سردارانو ته دغه اعزاز حاصل نۀ شو ـ د شاهجهان په دور بهادر خان داؤدزی او د اورنګزېب په زمانه حکومت دلېر خان داؤدزی شان اوچت جرنېلان په دې خطاب سرفراز نۀ شول ـ د مغل په شاهی دربار کښې د نورو ډېرو مختلف اقوام نمائندګی او بیا د مغل په اخېری دور کښې نور پښتنو سردارانو لکه د فرخ اباد روهېلکنډ یا بهوپال صوبیدارانو یا نور پښتنو سردارانو ته دغه لقب نصیب نۀ شو ـ ولې د خوشحال او جمیل نوم څخه خصوصاً او د خوشحال خان د کورنۍ ځینې افرادو ته د " بېګ " خطاب مخصوص شو ـ حالانکه ددغه پښتنو سردارانو بالمقابل خوشحال خان د ډېر کم منصب خاوند وو ـ

د خوشحال نوم څخه د " بېګ " د لقب اضافت زمونږ ګمان په يقين بدلوی - چې د خوشحال خان د مغل کورنی څخه د خپلوی ، رشته داری يا قرابت داری څۀ نا څۀ مراسم يا تعلق ضرور موجود وو -

راج ولی شاه ختک ليکی :-

" د فقير بابا نوم جميل دے - چې د هغه وخت د مغلو سره ددې کورنی د تعلق په وجه به ورته "جميل بېګ " وئيلے شو[1] "

ميان شمس الدين وائ :-

نـــۀ پـــوهـېږم پـــه تقصير
پـــه تقصير کـــۀ بـــې تـــقصير
خوشحال بېګ يې بنديوان کړو
هنـــدوستـــان تـــه يې روان کړو
خوشحال بېګ راغـے د بـــاندې
د هـــغـــې ونـــې د لانـــدې[2]

دغسې د " مناقب جميل بېګ " په ص ۷ داسې درج دی :-

---

1 مناقب جميل بېګ از ميان شمس الدين ، . ص ٦

2 مناقب جميل بېګ ، تحقيق و ترتيب راج ولی‌شاه ختک ص ۲۰۹و ۲۱۴

تمت تمام شد کتاب نور محمدیه از تصنیفات قطب الاقطاب فقیر جمیل بیګ با اتمام انجام مید بدست خط فقیر پر تقصیر ولی محمد پسر غلام محمد یکے از نواسۀ خوشحال بیګ و جدیل بیګ -

" د فقیر بابا خپل اصلی نوم جمیل خان وو - چې د مغلو سره د پلار نیکۀ د تعلق په وجه په جمیل بیګ مشهور شو[1] "

د خوشحال خان یا خوشحال بیګ زویې عبدالقادر خان خټک (۱۶۵۳ء ۱۰۶۳ھ تا ۱۷۱۳ء ۱۱۲۵ھ په یو رباعی کښې وائی :-

کـۀ عقل پـوهه کۀ تبغ کۀ دیګ وو
په پښتانۀ کښې د خوشحال بیګ وو
زر ئې همت وتـه په شمار د سلو وو
زر یې سخا تـه د صحرا ریـګ وو[2]

نجیب سربندی لیکی :-

قصیده د خوشحال بیګ ده
فاضل زیـاتـــه کـړه لـه[3]

---

1 زیست روزګار د فقیر جمیل بیګ ، ص ۳۶

2 حدیقۀ خټک ، ص ۲۱۲

3 دیوان نجیب سربندی ، ص ۱۸

کفایه شعبی په عربی ژبه د منتخب احادیثو کتاب دے - چې نور محمد کاتب عبدالقادر بن خوشحال بېګ خټک دپاره ۱۱۱٦هـ \ ۱۷۰۵ء کښې رانقل کړے دے - ددې کتاب یوه معلومه نسخه د طارق شاه کاکا خېل په ذاتی کتب خانه کښې موجوده ده ددې کتاب په اخېر کښې نور محمد لیکی :-

" تمت هٰذا نسخة الشریفه العظیمه --------- المسمی کتاب کفایه شعبی بید ضعیف النحیف الراجی الیٰ رحمت الله العزیز الوهاب نور محمد غفرالله له ولوالدیه و احسن الیهما بفرمودۀ رب العلماء خادم الفقراء عالی همت وبه حجت عبدالقادر بن خوشحال بیک خطک نگارش شد فی التاریخ ۷ شهر ربیع الثانی ۱۱۱٦هـ "

سردار شېر محمد خان گنډا پور د " شجره نسب لقمان عرف خټک بن برهان بن ککی بن کرړان " ضمن کښې هم د جمال خان ورور خوشحال بېګ خان ښائ[1] -

,, عہد شاہ جہانی میں اس قوم ( یوسف زئ ) کے ممالک کا ٹھیکہ بارہ ہزار روپے مقرر رہوا - اور اس کی ٹھیکہ داری شہباز خان خٹک اور اس کے بعد خوشحال بیگ خان سے متعلق رہی[1] ،،

د " فراقنامه خوشحال " په اختتام دا ذکر هم د لوستو دے

---

[1] تاریخ پشتون ( اردو ) اشاعت ۱۹۸٦ء ، ص ۵۲۳

(۲) تاریخ پشتون ، شیر محمد گنډا پور ، ص ۴۳۹

" تمت شد کتاب د فراقنامې د خان کلان د خوشحال بېګ نورالله مرقده[۱] "

## ګوپال داس لیکی :-

شجرۂ نسب رئیسان قوم خٹک میں جن کا دار الریاست ضلع اکوڑہ تھا۔ سعادتمند خان (ملقب بہ سرفراز خان) بن محمد افضل خان بن اشرف خان بن خوشحال بیگ خان بن شہباز خان بن یحیٰی خان بن اکوڑ خان بن درویش محمد معروف چیچو[۲] "

د خوشحال خان ددې بیان توضیح به اخېر مونږ څنګه کوؤ :-

اوس لـــه خـپله اصله نسله
یــو سړے نشتـه لـــه اصـله
یـــو زۀ بـــل شاهی بېګ دواړه
هنـــدو بېـګ زمونږ په غاړه[۳]

## افضل خان لیکی :-

" بل شېخ جمیل بېګ چې سکه ورور د خان علین مکان وو[۴] "

---

۱ فراقنامه ، ص ۷۲
۲ تاریخ ضلع پشاور ، ص ۲۷۷
۳ فراقنامه ، ص ۵۳
۴ تاریخ مرصع ، ص ۲۵۸

دغسې تاريخ مرصع د خوشحال خان د کورنۍ د ځينې کسانو نومونه شاه بېګ ، ساقي بېګ (د خوشحال خان د ترۀ آدم خان زويې ) خضر بيګ او غفور بېګ ( د ملک اکوړ خان زامن ) عوض بېګ ياده وی[1] ـ

افضل خان يو بل ځائے ليکی :-

" غفور بېګ وغېره اکوړ خېل چې په څۀ سبب آزرده لاړ وو[2] "

پته خزانه نهۀ ځايه خوشحال خان د خوشحال بېګ په نوم ياده وی ـ

" ذکر د خان علين مکان خوشحال بېګ "

" خوشحال بېګ د شهباز خان خټک زويې وو "

" خوشحال بېګ څو کاله په هندوستان بندی وو "

" خوشحال بېګ د خټکو سرداری کوله "

" خوشحال بېګ هم د غزلو ديوان لرينه "

" خوشحال بېګ د مغلو په بند کښې وو "

" د خوشحال بېګ کلے اکوړه يادېږی "

" خوشحال بېګ عالم او شاعر،پيدا شو "

---

1 وګورئ تاريخ مرصع ، ص ۲٦۰ تا ۲٦۱

2 تاريخ مرصع ، ص ۲۰۸

" خوشحال بېګ هدايه په فقه کښې په پښتو راواړوله "

کوپال داس ليکي :-

„ مشہور ہے کہ یہ مسجد شیر محمد خان عرض بیگی ساکن اکوڑہ کے بناء کردہ ہے [1] ،،

غلام محمد ملتانى پخپل کتاب " تاريخ کوهاټ " کښې ليکي :-

„ تصدیق ایں امراز تواریخ مرصع تصنیف خوشحال بیگ خان اکوڑخیل کردہ شد [2] ،،

کوپال داس د جلسي نومې کلي د ذکر ضمن کښې ليکي :-

„ جب اقوام خٹک اولاد لقمان نے بہ نیت مجموعی علاقہ خٹک پر دخل پایا تو نعمت خان وفقیر خان ورحم بیگ ومنصب خان قوم خٹک [3] ،،

دوست محمد خان کامل ليکي :-

„ تاریخ ادب پشتو میں ص ۴۸ پر جمیل بیگ کا نام جمال خان اور انہیں خوشحال خان کا بڑا بھائی لکھا ہے۔ انگریزی ترجمہ حیات افغانی ص ۲۰۷ شجرہ اور تاریخ خورشید جہان ص ۲۴۱ شجرہ میں ان کا نام جمال خان اور خوشحال خان کا نام خوشحال بیگ خان لکھا ہے۔ تاریخ مرصع (قلمی) نسخہ ہوتی کے حاشیہ پر بھی جہاں خوشحال خان کی اولاد کا ذکر شروع ہوتا ہے۔ غالباً کاتب نے اور فراق نامہ کے کاتب نے بھی کتاب کے خیر میں خوشحال بیگ اور پٹہ خزانہ کے مؤلف نے بھی خوشحال خان کا نام مختلف جگہ خوشحال بیگ اور خوشحال خان لکھا ہے [4] ،،

---

(۱) تاريخ ضلع پشاور ص ۳۳۶

(۲) فراقنامه تعليقات ، ص ۱۰

(۳) تاريخ ضلع پشاور ص ۳۵۰

(۴) خوشحال خان خټک ص ۴۰ حاشيه

## روشن خان لیکی :-

,, اس حملہ میں خوشحال خان اس کا بھائی جمیل بیگ اور ایک برادرزاد ساقی بیگ ولد آدم خان ساتھ تھے۔ مقابلہ ہوا ساقی بیگ مارا گیا [1] ,,

## دوست محمد خان کامل لیکی :-

,, ملک اکوڑے کے آٹھ بیٹے یحیٰی خان، نظام خان، یوسف خان، تاتار خان، خضر خان، عبدالغفور خان جسے غفور بیگ کہتے ہیں۔ طاؤس خان او مصری خان تھے ---------- اور غفور بیگ وغیرہ اکوڑہ خیل کو بھی جو بہ سبب آزردگی ہندوستان چلے گئے تھے۔ خوشحال خان کے ساتھ وطن رخصت کیا [2] ,,

## ڈاکٹر راج ولی شاہ خٹک لیکی :-

" چونکه د مغلو منصب دار وو - نو په دې وجه خوشحال بېګ بللے شو - همدغه رنګ جمیل خان چې د خوشحال خان نه کشر او د نورو دواړو وروڼو نه مشر وو - د حکومت او سردارۍ په کاروبارکښې يې د خپل مشر ورور خوشحال بېګ سره پوره لاس لرلو - په جمیل بېګ مشهور شو [3] "

## میجر راورٹی لیکی :-

**"Beg Occuring in the name of an Afghan appears strange, but it seams to be applied as by a Mame,, (Notes on Afghanistan and Balochistan p - 408 .)**

---

(۱) تاریخ حافظ رحمت خانی ، از پیر معظم شاہ ، ص ۶۰۸

(۲) خوشحال خان خټک ، ص ۲۱ و ۴۶

(۳) زیست روزګار د فقیر جمیل بېګ ، ص ۳۱

ترجمه :- د یو پښتون نوم سره د بېګ کلمه عجیبه لږی - ولې داسې ښکاری چې دا د نوم برخه وی -

هغه مخکښې لیکی :-

**It is probable that the nick name of Beg was applied to them because they were in Mughal pay, for that Mughal have no doubt refer to vassat of or one in the pay of the Mughal Government and not to one of that nation p - 408 .**

ترجمه :- اندازه ده چې د " بېګ " تعارفی نوم مغل قوم څخه د تعلق په وجه نهٔ وو - بلکې د هغوئ د ملازمت په وجه وو -

د خېبر په مقام د محمد امین خان د شکست و رېخت نه پس مهابت خان د کابل صوبیدار مقرر شو - په دغه موقعه افضل خان د خوشحال خان په حواله قلم طراز دے - چې لوست نه یې صفا برېښی چې د دوئ مغل څخه قربت ، رشته او قبیله داری موجود وه -

" ارمان مې دا وو - چې یو ځله مې توره په مغل واخېستے - ولې د قبیله داری په سبب بل د سن و سال د کبر سن په واسطه - بل له قدیمه نقش د اباء و اجداد چې د مغل په خدمت کښې مړهٔ وو - حق د نمک یې ډېر وو - بې وفائ مې نکړه[۱] "

مونږ د خوشحال خان د ظاهریت او باطینیت په دې انداز نهٔ پوهېږو - چې یو اړخ د انا ، ننګ و غېرت او پښتو پښتونولی اشعار وائ -

---

[۱] تاریخ مرصع ، ص ۳۰۱

ولې بل خوا د مغل په نمک حلالی هم فخر کوی لکه چې ۱۶۸۵ء ا ۱۰۹۵ھ کښې د مغل اورنګزیب متعلق یو قصیده کښې وائ :-

کـه له خپله حقیقته درته وائم
زهٔ خـائ یم د مغل نمک حلال
لکه دے زما زوال وته ناظر دے
زهٔ لـه نهٔ غوارم ددهٔ هسې زوال

خوشحال خان په فخریه انداز وائ - چې ما د مغل خلاف د افغان په ننګ ملا وتړله خکه چې :-

پـه بـل غشی تـوپک هېڅ ویشتلے نهٔ یم
کـه ویشتـلے یم خـو بیا پخپل توپک یم

تپوس کـه خـوک د خـوږو زړونو کاندی
د خپل قوم له لاسه ورک خوشحال ختک دے

د وفـا پـه خـائے هـمـه واړه جفا ده
چې بـه مـاتـه رسېـده لـه خپله قامه

د ایمل خان او دریا خان تحت پښتنو د مغل خلاف زبردست کامیابی حاصل کړې - ولې خوشحال خان دغه فتوحات د پښتنو ګڼی - او خپل کور هم هغسې وران وینی - دا ولې :-

## پښتنو وکړې ګټنې

## زما کور دا هسې وران

افضل خان په تاريخ مرصع کښې مختلف ځايه په داسې متعصبانه مبهم او مخصمانه انداز د پښتنو ذکر کوی ـ لکه چې پښتانهٔ يو بل ذات او افضل خان دوئ نه يو جدا نسل څخه تعلق لری ـ دا څو مثالونه وګورئ :-

" ناصر خان ته ورغلم پښتانهٔ خبر شول " ص ۳۹۱

" دوئ پښتانهٔ دی يو تر بله به وپوهېږی " ص ۳۹۲

" اخېر د تمام پښتانهٔ لښکر په نوښار سره يو ځائې شهٔ " ص ۳۹۲

" نور لښکر د پښتنو تفرقه کېدهٔ " ص ۳۹۳

"د پښتنو لښکر وو چې يو خل تفرقه شهٔ نور بيا ټول چرته" ص ۳۹۵

"کهٔ مونږ نه د رفاقت طمع لرې تهٔ دا لښکر د پښتنو رخصت کا" ص ۳۹۵

د سکندر خان بن خوشحال خان دا رباعی هم زمونږ په شک کښې اضافه کوی :-

ذات د بابا يم په قوم خټک يم

مغل پښتون ته په جواب کلک يم

د لېچو زور و قـوت مې ډېر دے

ولې دا هېڅ دی د بـل په وک یم

دصدر خان د " معجزات" نومې کتاب دا بیان هم زمونږ شک زیاتوی چې لکه خوشحال خان واقعی د " بهګ " په حواله مغل یا بل قوم وو ـ په اصل نسل ختک نهٔ وو ـ بلکې ختک یې لقب وو :-

" تمت تمام شد نسخه معجزات بزبان افغانی تصنیف صدر خان ختک ولد خوشحال خان عرف ختک برائے عندالله و عندالرسول[1] "

خوشحال خان وائ :-

مګر تـــا خـــه سامان د سلطنت دے

چې په هوډ مې سپینه خوله غواړې ختکه

اشرف خان هجری وائ :-

زهٔ ختک د یار طلب کرم مونډے نهٔ شی

له ناکامه ئې د غـــم ســـره اشـنـا شوم

عندلیب ختک بندی په هسې مـلـک شو

چې طـــوطـــا ئــې ژبه وائ د غـــراب

کامګار خان وائ :-

---

[1] د صدر خوشحال ژوند او اثار ؛ زرین انځور ص ۸٦

په پښتو ژبه محال دے چې پېدا شي
د کامګار غـونـدې شاعر بې له ختټکه

د افضل خان د خوشحال خان په حواله دا بیان هم تعجب خېز دے :-

" هم جاګیر هم عمر ختټکو سره تېر کړے ـ څو رنګه رعایت مې ورسره کاوۀ هېڅ وو[1] "

خوشحال خان په خپله منی چې زۀ محض د مغل یو نوکر یم ـ بل هېڅ نۀ یم :-

" زۀ ارباب ، ملک او اجاره دار نۀ یم[2] ـ چې له مانه څۀ غواړی ـ خو یو نوکر یم ـ وطن زما په جاګیر کښې دے[3] "

" دا جامه د حکومت اګر چې دغه رنګ ده ـ لیکن مونږ ته ابائ او اجدادی یعنی له پلاره له نیکۀ پشت په پشت اوۀ پېړی په میراث رسېدلې ده ـ چاړۀ په غاړه خلاصے مو ځینې نشته ستاسو شړی کند لباس د فقیری د درویشی دے ـ تـــاسو سره هېڅ نسبت مناسبت نۀ لری[4] "

---

1 تاریخ مرصع ، ص ۳۱۷

2 ارباب ملک او اجاره دار به حکومت د خپل قبائل یو فرد مقرر وو ـ البته جاګیردار هر څوک کېدے شو ـ او ددغه جاګیر دار تحت به خپل ملازمان وو ـ چې د جاګیر امدن راټول کړی ـ جاګیر دار ته ئې حواله کړی ـ

3 تاریخ مرصع ص ۵۰۲

4 تاریخ مرصع ، ص ۴۴۹

# خوشحال خان ، خوشحال بيګ
# يا
# خوشحال بيګ کاشغري

---

۱٦۴۱ء / ۱۰۵۰هـ کښې د شهباز خان د وفات نه پس خوشحال خان د خپل پلار په منصب سرفراز شو - دا منصب څۀ وو - د خوشحال خان په کلام کښې او د تاريخ مرصع په صفحات ددې پوره ذکر نشته - البته دا مونږ ضرور وئيلے شو - چې دا منصب د پنځۀ صدی نه ارو مرو کم وو - ځکه چې د شاه جهانی دور منصبدار کم نه کم پانصدی وو - خو د اصالت خان په وساطت ممکن ده - چې خوشحال خان په ړومبی ځل د کانګړه د تارا ګړهـ په مهم د روانېدو نه اګاهو يا وروستو پانصدی منصب حاصل کړے وی - او بيا ورو ورو د شاه جهان د بلخ و بدخشان او قندهار په

---

مهمات يې دغه منصب کښې مزيد اضافه شوې وی ـ البته د پلار د وفات نه وروستو :-

" په دا ميان کښې فرمان د سرداری له حضوره د بادشاه ، په نامه د خان علين مکان صادر شۀ ـ او منصب د پلار ورته مرحمت شۀ[1] "

د خوشحال خان د سرداری او منصبداری ژوند شروع کېدو څخه سم دغه دوران د شاه جهان بادشاه يو امير راجه جګت سنګهـ حاکم ماؤ ، نور پور او تارا ګړهـ لکه د خپل مشر ورور د راجه سورج مل ولد راجه باسو (د جهانګير په زمانه ) نافرمان شو ـ او بغاوت يې وکړو ـ شاه جهان بادشاه ددې بغاوت چکولو دپاره د نور ډېر اهم اميرانو او منصبدارانو نه علاوه د شيعه مسلک يو منصبدار مير عبدالهادی بخطاب اصالت خان بن مير ميران بن مير خليل الله يزدی هم مقرر کړو ـ د چا چې د خوشحال خان کورنی څخه اګاهو نه ښۀ تعلقات وو ـ د تسخير تارا ګړهـ د روانېدو نه اول لکه چې د مغل نظام سلطنت دستور وو ـ اميران او منصبداران په شاهی نوازشات او ترقی سرفراز کېدل ـ او دغه دستور د کاميابی نه پس هم يقينی وو ـ نو په دې اساس لکه چې وړاندې اووئېل شول ـ

---

[1] تاريخ مرصع از افضل خان . ص ۲۷۱

خوشحال خان به د تاراګړهـ د مهم دوران د پانصدی په منصب مشرف شوے وی :-

" ترد دات چې خان علین مکان په دا کار کښې کړی وو -----
خلعت فاخره په اضافه د منصب سرفراز شۀ[1] "

د کلیات خوشحال خان او تاریخ مرصع په حواله د مغل د سرکاری منتظمینو او منصبدارانو ذکر د خوشحال خان د سید اصالت خان او بهادر خان داؤدزی څخه تعلقات او د هغوئ ماتحت جنګونو کښې شرکت بنائ - چې خوشحال خان هم د مغل دربار کښې د اثر رسوخ او د منصب خاوند وو - چې هغه ئې په خپله بار بار ذکر کوی - د تاریخ مرصع او د خوشحال خان د دیوان په تتبع کښې هر لیکوال هغه د یو لوئے منصب خاوند ښودلے دے - ولې ددې برعکس د شاه جهان د منصبدارانو په فهرست کښې د هغۀ یا د هغۀ د پلار نوم نشته - اخبر ولې ؟

د اخلاف و اسلاف د شجرې تشکیل د یو اهم شخصیت په کردار بناء وی - خوشحال خان یو اهم شخصیت او منصبدار وو - او ددۀ په وجه ددې کورنی د نورو اهم افرادو ذکر کېږی - نو راځئ چې وګورو چې خوشحال خان څوک وو -

---

[1] تاریخ مرصع از افضل خان ، ص ۲۰۷

د جهانګیر بادشاه د زمانې په اخېری دوره کښې د شهباز خان په نوم دوه منصبداران ذکر دی ـ

(۱) اول شهباز خان لودهی وو ـ چې د جهانګیر په زمانه ۱۶۲۱ء ۱ ۱۰۳۰هـ کښې راجه بکر ماجیت رائے رایان څخه د سورج مل ولد راجه باسو خلاف د قلعه کانګړه د فتح په مهم مقرر وو[1] ـ

(۲) دوېم د شاه جهان نامه عمل صالح د درېم جلد په اخېر کښې د منصبدارانو په فهرست کښې دوه کسان د شهباز خان په نوم یاد شوی دی ـ یو شهباز خان افغان دے ـ او بل شهباز خان روهیله دے ـ اول الذکر پانصدی او اخېر الذکر سه هزاری منصبدار وو ـ خو حقیقت کښې دا دواړه د یو شخصیت نومونه دی ـ مونږ کهٔ د عبدالحمید لاهوری " بادشاه نامه " وګورو نو ۱۶۲۷ء ۱ ۱۰۳۷هـ کښې چې د بلخ او بدخشان په مهم کوم شهباز خان افغان یاد شوے دے ـ او د کوم متعلق چې مراة الخیال ګمان لری چې دغه شهباز خان افغان د خوشحال خان پلار دے ـ یا دوست محمد کامل یې د درېم دور منصبدار ګڼی[2] نو په اصل کښې د هند په سیمه اباد روهیله پښتون دے ـ چې عمل صالح یې غلطی څخه دوه مختلف ځایه په مختلف منصب ذکر کوی ـ

---

[1] ماثرالامراء جلد دوم ـ ص ۱۸۷

[2] خوشحال خان ختک ، ص ۴۱۶

شهباز خان افغان چې د جهانګیر د ژوند په اخېرى کال یعني ۱٦۲۷ء | ۱۰۳۷هـ کښې پانصدی منصبدار وو - وروستو د شاه جهان په دور حکومت هم دغه شهباز خان افغان سه هزاری منصبدار دے - د بادشاه نامه جلد اول په مختلف موقعو:-

" شیر وی روهیله بخطاب شهباز خان سربلند شد" ( ص ۲۰۴ )

" آمدن نذر محمدخان والی بلخ و بدخشان به هوس تسخیر کابل ۱۲۲۷ء | ۱۰۳۷هـ" د موضوع تحت :-

" و سردار خان و شهباز خان افغان........این خدمت گذاشتند ص ۲۱۳ "

" و شهباز خان افغان و رشید خان انصاری و پهار سنگه بندیله ص ۲۴۲ "

و صفدر خان و شهباز خان افغان و راجه رام داس و شمس الدین و امان بیگ ص ۲۹۸ "

" شهباز خان معروف بشیر خان روهیله سه هزاری ذات و دو هزار سوار سال چهارم در دکن جان فشانی نموده. حیات ابد اند وخت ص ۲۹۸ "

" و شهباز خان افغان بمرحمت علم ( ص ۲۹۸ ۱۰۳۹هـ کښې ) "

" روز دیگر به اتفاق راجه بهار ته و شهباز خان و دیگر منصبداران ص ۳۷۴ "

او ز دیگر به اتفاق راجه بهار ته و شهباز خان و دیگر منصبداران و احد یان به عزم گرفتن قصبهٔ قندهار سوار شد ص ۳۷۴ "

" و چون در این روز از غنیم اثرے ظاهر نه شد. بهادر خان روهیله و شهباز خان و رشید خان انصاری ص ۳۸۰ "

" شهباز خان به پسرش به پایه گرانمایه شهادت رسید ص ۳۸۱ " نه بنکاره ده چې دا د خوشحال خان پلار شهباز خان نهٔ دے - بلکې شهباز خان المعروف شېرو شهباز روهیله دے - وګورئ ماثرالامراء جلد دوم ص ۶۵۰ ، څوک چې ۱٦۲۷ء | ۱۰۳۷هـ کښې د بلخ په مهم وو -

او بیا وروستو ۱۶۳۱ء / ۱۰۴۰ھ کښې د دکن د تلنګانه د قندهار په علاقه کښې د یو مهم دوران قتل شو ـ

## دوست محمد کامل لیکی :-

,, بادشاہ نامہ اور عمل صالح میں بادشا ہزادوں کے بعد نو ہزاری سے پانصدی تک منصبداروں کے نام ہیں۔ ان میں نہ تو شہباز خان خٹک اور نہ ہی خوشحال خان خٹک کا نام ہے۔ جس سے معلوم ہوا۔ کہ ان کا منصب پانصدی سے کم تھا،، (خوشحال خان خٹک ، ص ۴۱۶)

مونږ د کامل صیب دې بیان څخه مکمل اتفاق لرو ـ چې د شهباز خان منصب به ارو مرو د پانصدی نه کم وو ـ او د صوبیدار کابل سعید خان بهادر ظفر جنګ په سفارش به د شهباز خان د مرګ ( ۱۶۴۱ء / ۱۰۵۰ھ څورلسم جلوس شاه جهانی ) نه وروستو هم دغه منصب خوشحال خان ته مرحمت شوے وی ـ خو د تارا ګړهـ په مهم کښې د ښهٔ کارکردګئ او د اصالت خان په سفارش به د خوشحال خان په منصب کښې اضافه شوے وی ـ او د مرکزی حکومت د منصبدارانو په فهرست کښې به شامل شوے وی ـ او د شاه جهان منظور نظر به ګرزېدلے وی ـ او بیا هم دغه خوشحال خان چې مونږ ئې د تاریخ مرصع په حواله د بلخ و بدخشان په مهم اصالت خان څخه د شهزاده مراد بخش ماتحت یو فعال جنګجو سردار وینو ـ مونږ یو بل خوشحال چې په دغه معرکه کښې د خوشحال بیګ کاشغری په نوم یادېږی ـ او بادشاه نامه او عمل

صالح دواړه يې ذکر کوی ۔ داسې ظاهرېږی چې خوشحال خان او خوشحال بېګ کاشغری هم د يو شخصيت يا جنګجو منصبدار دوه مختلف نومونه دی ۔ راځئ چې د مهماتو په رڼا کښې د خپل جنګجو سردار د بهادرانه صلاحيتونو جاج واخلو ۔

(۱) **د تارا ګړهـ مهم** :- تارا ګړهـ د کانګړه په ايالت کښې شامل ځائے وو ۔ " د کانګړه ښار ته نګرکوټ هم وائی ۔ ددې ځائے قلعه په ټوله دنيا کښې د خپل استحکام په بناء شهرت لرلو ۔ د لاهور شمالاً غرونو کښې وه ۔ ډېره پخوانی قلعه وه ۔ د سلطان فيروز شاه د زمانې راسې يې د فتح کوششونه جاری وو ۔ اکبر بادشاه ۱۵۸۲ء ۱ ۹۹۰هـ کښې شاهی لښکر څخه د دريائے سندهـ په لور وو ۔ نو هغهٔ د نګر کوټ پخوانی مندر کتوته راغلے وو ۔ ددې قلعه درېويشت برجونه او اووهٔ دروازې دی او دا د يو اوچت غر په سر ده[۱] ۔

د شاهجهان نه اګاهو د جهانګير په زمانه هم د راجه جګت سنګهـ مشر ورور سورج مل ولد راجه باسو د مغل حاکميت خلاف بغاوت کړے وو[۲] ۔

---

۱ ماثرالامرا ، جلد دوم ص ۱۷۸ تا ۱۹٦ نه اقتباس

۲ وګورئ بادشاه نامه جلد دوم ۔ از عبدالحميد لاهوری ، ص ۲۸٦

د شاه جهان په زمانه د کانګړه د حکمران راجه جګت سنګهـ دغه بغاوت د کم اهمیت حامل نهٔ وو ـ د غریزې علاقې او د قلعې استحکام مغل سلطنت دپاره د تشویش باعث وو ـ نو په دې اساس د حالات او واقعات د نزاکت په سبب د مغل مرکزی لښکر څخه اوږه په اوږه د کابل د ایالت لښکر شمولیت لازمی وو ـ د پښتنو د غرونو د جنګ تجربه او بهادری ، ځوانمردی او بیا په تېره تېره د سیالکوټ په لور د کانګړه محاصره داسې جنګی او عسکری ضرورت وو ـ چې شهزاده مراد بخش ته په خصوصی توګه احکامات جاری شول چې :-

*,, اور کابل کے دیگر منصبداروں کولیکر سیالکوٹ کے راستے اس سرکش کی طرف روانہ ہو۔ اور اسے نیست ونابود کریں ۱ ،،*

عبدالحمید لاهوری لیکی :-

" اصالت خان به عبدالکافی برادرش ...... و دیگر منصبداران از صوبه کابل براه سیالکوٹ متوجه پیتهان(اوسنے پٹان کوټ) گردد ۲"

تاریخ مرصع لیکی :-

" هغه کال چې سن زر پنځوس ۱۶۴۱ء ۱ ۱۰۵۰هـ وو ـ خان علین مکان د پلار په ځائے تازه ناست وو ـ جګت سنګهـ د بادشاه نه

---

۱ عمل صالح جلد دوم ، ص ۲۸۴

۲ بادشاه نامه ، جلد دوم ، ص ۲۴۰

یاغی شو ـ خان علین مکان هم دوه زره پلی سوارۀ ورسره په مهم د جګت سنګهـ په خپل التماس د بادشاه په حکم وسیله ئې سید اصالت بخشی وو لاړ شۀ ـ د مورچو جنګ وو ـ چې دے ورغے ـ بهادر خان ( داؤدزی ) او اصالت خان د شلو زرو لښکر سره تارا ګړهـ لره روان وو[1] "

" تنـها خـان علین مکان ، زر بندوقچی یې ورسره پرېښول ص ۱۲۷٦ ت ـ م "

" د خـان علـین مـکان لښـکرې واړه تـار پـه تـار شوې ص ۲۷٦ \ ت ـ م "

## افضل خان لیکی :-

" زۀ په صلاح د اولس "خان" شوم ـ زۀ په مجرد د رسېدو چې ورغلم بهادر خان اصالت خان دواړه سره ناست وو[2] ـــــــــ دوه زره توپچیان هندوستانی چې د دمړی په کار نۀ وو ـ راسره ئې تعنیات کړل[3] "

د تاراګړهـ په مهم مغل شاهی لښکر اګست ۱٦٤۱ء کښې روان شو ـ اول ئې د مؤ او نور پور قلعه ګانې راجه جګت سنګهـ نه قبضه

---

1 تاریخ مرصع از افضل خان ، ص ۲۷٦

2 تاریخ مرصع ، ص ۲۰٦

3 هـمـدغـه ص ۲۰۷

کړي - او بیا دغه لښکر چې دسید خان جهان ، سعید خان بهادر او اصالت خان ماتحت وو - ۱٦٤۲ء | ۱۰۵۱هـ کښې د تارا ګړهـ په تسخیر روان شو - د تارا ګړهـ په مهم کښې د سخت مزاحمت امکان وو - ځکه چې د راجه جګت سنګهـ د کامیابۍ او ناکامۍ انحصار په دې قلعه وو - دې دپاره د مزید کومک او امداد ضرورت وو - ځکه چې د مؤ او نور پور د قلعه ګانو په تسخیر هم ډېر زیات لښکر تباه شوے وو :-

"قلعہ مؤ نزدیک آ گیا - تو پٹھان پیادے جو تیز رفتاری میں سواروں کے برابر ہیں - حملہ آور ہوئے ---------- بھادر خان کے جانباز سپاہی لاشوں کے اوپر پاؤں رکھ رکھ کر آگے بڑھتے تھے - خان موصوف کے سات سو پٹھان اور اتنے ہی آدمی دوسرے منصبداروں کے زخمی اور قتل ہوئے[1] "

افضل خان د نور پور په قلعه د حملې متعلق لیکي :-

" د بله لوریه د بهادر خان عالم یورش کړو - ښهٔ ښهٔ عالم پښتانهٔ ضائع شول[2] "

د قلعه مؤ او نور پور د تسخیر نه وروستو د تارا ګړهـ د مهم دوران زمونږ شاعر جنګجو سردار د اصالت خان په وساطت دغه جنګ کښې شریک شو -

---

۱ عمل صالح ، اردو ترجمه ډاکټر ناظر حسین زیدی ، ص ۲۹۳

۲ تاریخ مرصع ، ص ۲۰٦

,, یہ قلعہ گھنے جنگل کے وسط میں جہاں کانٹے دار درخت چھائے ہوئے ہیں۔ایک اونچی پہاڑی پر واقع ہے۔ماحول ایسا ہے۔کہ انسان تو کیا،ہوا بھی وہاں سے گزرنا مشکل ہے[۱] ،،

د تارا ګړهـ قلعه مغل لښکر فتح کړه ـ راجه جګت سنګهـ د خپل اعمال معافی وغوښته ـ او په دې فتح شاه جهان د شهزاده مراد بخش او د هغهٔ ماتحت لښکر نه ډېر خوشال شو ـ او په جنګ کښې برخه اخستونکی منصبداران او امیران يې په قسما قسم نوازشات سرفراز کړل ـ

" ترد دات چې خان علين مکان په دا کار کښې کړی وو ـ په عرض د بادشاه رسيدلی وو ـ خلعت فاخره په اضافه د منصب سرفراز شهٔ ـ وطن ته ئې رخصت کړو[۲] "

دغسې د مغل لښکر يو بل منصبدار خوشحال بېګ کاشغری نوم مونږ په ړومبی ځل د بادشاه نامه په صفحات وينو ـ چې د جمنا درياب په غاړه د دارلشکوه د نومولود زوئے ممتاز شکوه په خوشالی کښې د جشن په اهتمام کښې شرکت کوی ـ او د نورو ډېرو سردارانو نه علاوه خوشحال بېګ کاشغری راؤ ستر سال او علاء الملک هم ستمبر ١٦٤٢ء \ ١٠٥٢هـ کښې په دغه جشن کښې شامل

---

١ عمل صالح شاه جهان نامه ، ص ٢٩٥

٢ تاريخ مرصع ، ص ٢٠٧

وو ـ چې خوشحال بېګ د دوؤ زرو روپو په انعام مشرف شو ـ

" بیست و چهارم رجب ۱۰۵۲هـ ( بمطابق ۱٦٤۲ء ) خوشحال بېګ کاشغری به انعام دو هزار روپیه کامیاب شد[1] "

د بادشاه نامه برعکس عمل صالح ( شاه جهان نامه ) د خوشحال بېګ کاشغری نوم نهٔاخلی ـ البته د راؤ ستر سال او ملا علاء الملک د اعزاز ذکر کوی ـ ځوک چې خوشحال بېګ کاشغری ځخه سم د اعزاز حقدار ګرزی ـ

" راؤ ستر سال اور علاء الملک کوهتنهی عنایت کی[2] "

داسې ښکاری چې د تارا ګړهـ د مهم نه پس د شاه جهان له اړخه په اول ځل چې د تاریخ مرصع او بادشاه نامه په صفحات د کوم " خوشحال خان " ذکر د انعام و اکرام په لړ کښې کېږی ـ لکه چې دواړه د یو خوښحال نومونه وی ـ تاریخ مرصع دا نهٔ ښائ چې د خوشحال خان په منصب کښې ځومره اضافه وشوه ـ او بل خوا بادشاه نامه او عمل صالع د منصب د اضافت ذکر نهٔ کوی ـ البته اول الذکر کتاب ئې د دوه زره روپو او اخرالذکر تاریخ یې د هاتی په انعام ذکر راوړی ـ

شاه جهان نامه عمل صالح وړاندې لیکی :-

---

1 بادشاه نامه ، عبدالحمید لاهوری ، ص ۳٤۲

2 شاه جهان نامه ، جلد دوم ، ص ۳۲۵

" ۱۸ محرم ۱٦٤۲ء \ ۱۰۵۲ھ کو بھادر خان اور اصالت خان کوہِ کانگڑہ مھم سے واپس آکر لاھور کے مقام پر باریاب ھوئے[۱] - اور ۲۰ محرم ۱٦٤۲ء \ ۱۰۵۲ھ کو اصالت خان بلخ و بدخشان کے مھم پر روانہ ھوا[۲] "

د عمل صالح تاریخ مرصع او بادشاه نامه د بیانات نه ښکاری چې خوشحال خان هم دغه خوشحال بېگ کاشغری دے ـ د بېگ په حواله شاه جهان نامه کښې کافی نومونه دی ـ چې دوئ کښې مغل نه علاوه د ایران ، کاشغر ، ازبک او ترک نژاد بېگ هم شامل وو ـ خوشحال بېگ کاشغری نه علاوه خوشحال بېگ خواندۀ مرزا رستم او خوشحال بېگ قاقشال نومونه هم د منصبدارانو په فهرست کښې درج دی ـ چې شپږ صدی منصبداران وو ـ خو هغوئ د تارا گړھ ،بلخ و بدخشان یا د قندهار په مهم کښې شامل نهٔوو ـ

دوست محمد کامل د خوشحال خان او بهرام خان تر مېنځ ۱٦۷۳ء \ ۱۰۸۴ھ کښې د جنگونو د ذکر لړ کښې لیکی :-

,, خوشحال خان بہرام خان کے امدادیوں میں جموں کے کہستانیوں کا ذکر بھی کرتا ہے۔ جموں افریدیوں کے علاقہ میں بھی ایک جگہ ہے۔ لیکن بہرام خان کے امدادی جموں کے کہستانی مغل فوج کے سپاہی تھے اور اس جموں سے مراد ریاست جموں وکشمیر کا جموں ہی ہے [۳] ،،

---

1. شاه جهان نامه ، ص ۳۰۱

2. شاه جهان نامه ، ص ۳۰۲

۳. خوشحال خان خٹک ، ص ۱۴۸

مونږ د دوست محمد خان کامل دې خیال سره مکمل اتفاق لرو ـ ځکه چې خوشحال خان د تارا ګړهـ په مهم د جمون په علاقه د مغل په فوج کشۍ کښې شامل وو ـ او خوشحال بیګ کاشغرى د بلخ و بدخشان د مهم نه وروستو هم د کشمیر د راجه د سرکشۍ په سلسله کښې دغلته تلے وو ـ

دا هغه موقعه وه چې خوشحال خان د یو مقامى سردار په ځائے د بادشاه د منصبدارانو په ډله کښې شامل او منظور نظر شوے دے ـ او د صدبیدار کابل په دربار کښې د حاضر باشۍ په ځائے ئې د شاه جهان د دربار د حاضرۍ سعادت حاصل کړے دے ـ د تارا ګړهـ په مهم کښې د سرخروۍ ، کامرانۍ او ښۀ کارکردګۍ وجه وه چې خوشحال خان یا خوشحال بیګ د یو منصب په اعزاز سرفراز شوے دے ـ ددې نه اګاهو مونږ د شاه جهان په مهمات کښې د دواړو ذکر نۀ وینو ـ

**د بلخ و بدخشان مهم** :- د بلخ و بدخشان مهم د تاریخ مرصع او شاه جهان نامه په حواله په درې برخو کښې وېش دے ـ

د تاریخ مرصع په حواله اولنۍ برخه کښې اولنے مهم دے ـ چې تاریخ مرصع کښې صفحه ۲۰۸ نه تر ۲۰۹ واقعات دی ـ د تاریخ مرصع ابتداء په دې شکل ده ـ

" پس له دوو درېو کالو (يعنی د تارا ګړهـ د مهم نه پس ) بيا سلسله جنبان په مهم د بلخ شۀ" (ص ۲۰۸)

## په دې برخه کښې تاريخ مرصع ليکی :-

" اصالت خان قوم د احشام علی دانشمندی راولېږده وو ـ بنده هم له بنۀ جمعيته ، هم سوارۀ هم پيادۀ ورسره وو ـ هر ګاه چې په کوتل د هندو کوه ورغلو ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ په کلی ئې د اندراب د ارباب ډېره برپا کړه ـ بنده هر اول وو ـ له قوته د هزاره مقابل شۀ او مال مويشی د احشام علی دانشمندی د قوم چې هزاره وو[1] "

تاريخِ مرصع په دې برخه کښې د اندراب ،کوتل طُول او هندو کوه ذکر په خصوصی توګه کړے دے ـ

**عمل صالح** :- د عمل صالح د اولنی مهم اولنۍ برخه په صفحات ۳۵۵، ۳۵۹، ۳۷۸ تا ۳۸۳ واقعات درج دی ـ او دا واقعات مئ ۱۶۴۵ء نه تر اګست ۱۶۴۵ء دی ـ

## محمد صالح کنبوه ليکی :-

,, سپاہیوں کو اصالت خان کی ماتحتی میں اس مہم پر تعینات کر دیئے ۔ اگلے دن اصالت خان آٹھ روز کی رسد سنبھالے ہندوکوہ سے گزر کر برق و باد کی طرح اندراب کے پاس پہنچا ۔ باشندوں کے مویشی مال و اسباب ، ساز و سامان کو ایسا لوٹا ۔ کہ جھاڑو سی پھیر دی ۔ علی دانشمندی ---------- میر ہزارہ جات قاسم بیگ کو ہمراہ لے کر پلٹا ،، (عمل صالح شاہ جہان نامہ، ص ۳۸۰)

---

[1] تاريخ مرصع ، ص ۲۰۸

د تاریخ مرصع او عمل صالح نه ښکاره ده ـ چې د اصالت خان لښکر د هزاره ؤ فوځ ته شکست ورکړو ـ د هغوئ مشر احشام علی دانشمندی ئې گرفتار کړو ـ او پابند سلاسل ئې شاه جهان ته راوستو ـ بادشاه د اصالت خان اود هغهٔ د ملگرو نه خوشحاله شو ـ او په انعام و اکرام ئې ونمانځل ـ

## افضل خان لیکی :-

په دا سفر کښې اصالت خان رضامند شهٔ ـ هر گاه چې له کابله را ووت ـ ما ته ئې ووئیل چې سامان د دربار وکړه ـ په ما پسې له ورونو سره را روان شهٔ ـ په دهٔ پسې لاهور ته لاړم ـ بادشاه زما د منصب اضافه وفرمائیله ـ اولس دولس تنه ئې زما د قبیلې په منصبونو سرفراز کړهٔ ـ یاد داشت د نقدیحکم شهٔ ـ دوه میاشتې کم و بېش په لاهور کښې پاتې شو ـ نور رخصت شو ـ کور ته راغللو[1] ـ

د افضل خان د بیان تصدیق عمل صالح شاه جهان نامه په دې الفاظو کښې کوی :-

,,۱۵ رمضان (۴ نومبر ۱۶۴۵ء کو لاہور کے دولتخانے میں (شاہ جہان) اترے------ کابل سے اصالت خان او نجابت خان وغیرہ بھی حاضر بارگاہ ہوئے-------اصالت خان نے ترقی پا کر چار ہزاری ذات تین ہزار سوار کے منصب پر سرفرازی پائی---------۲۱ جنوری ۱۶۴۶ء/۱۰۵۵ھ عمر گرامی کے ۵۵ ویں شمسی سال کے آغاز کا جشن قلادان معمول کے مطابق کمال وزینت سے منعقد ہوا۔

---

[1] تاریخ مرصع ، ص ۲۰۹

اس مسرت انگیز جشن کے موقعہ پر--------- کے منصب پر ترقی یاب ہوئے۔ خوشحال بیگ کاشغری کو ہزاری ذات چار سو سوار کے منصب پر ترقی ملی،، (عمل صالح ص ۳۸۳ تا ۳۸۶)

دغسې ساجده س علوی د مراةالعالم تاریخ اورنگزیب از بختاور خان په حاشیه کښې د ماثرالامرا جلد اول ص ۷۷۳ په حواله په خپل کتاب کښې په صفحه ۲۶ لیکی :-

" سال نوزدهم (یعنی ۱۲۴۵ء \ ۱۰۵۵هـ) جلوس فردوس آشیانی به منصب هزاری چهار صد سوار چهرهٔ عزت برافروخته. به سلطان مراد بخش به تسخیر بلخ و بدخشان رخصت پذیرفت. او اخر سال سی و یکم (یعنی ۱۲۵۷ء \ ۱۰۶۷هـ) به مهاراجه جسونت سنگھ جهت سد راه بودن بر فوج دکن به صوبه مالوه دستوری یافت. پس ازان در جنگ سمو گڑھ به رکاب سلطان داراشکوه بود. باقی احوالش به نظر نرسیده "

**وضاحت** :- مونږ کۀ د تاریخ مرصع " دوه میاشتې کم و بېش په لاهور کښې پاتې شو "

د عمل صالح " ۴ نومبر ۱۶۴۵ء تا ۲۱ جنوری ۱۶۴۶ء " څخه موازنه کړو ـ نو صفا ښکاره ده ـ چې د اصالت خان تحت خوشحال خان او خوشحال بېګ دواړه د يو شخصيت نومونه دی ـ چې په ۲۱ جنوری ۱۶۴۶ء د هزاری ذات چار سو په منصب سرفراز کېږی تاریخ مرصع دا نۀ ښائ چې د خوشحال خان په منصب کښې څومره اضافه وشوه ـ او نۀ دا ښائ چې څومره روپۍ ورته انعام

ورکړے شوې ـ داسې ښکاري چې په ۲۴ رجب ۱۶۴۲ء ۱ ۱۰۵۲ھـ کښې د خوشحال بېګ کاشغري دوه زره روپۍ انعام او جنوري ۱۶۴۶ء کښې خوشحال خان ته د نقد رقم ورکولو خبره يوه ده ـ خو د دوؤ مختلف ژبو ليکونکو مؤرخينو ئې مختلف ځايه ذکر کړے دے دغسې د هزاره خلاف مهم کښې د خوشحال خان د منصب اضافه او خوشحال بېګ کاشغري ته هزاري ذات منصب مرحمت کېدل هم د يوخوشحال ذکر ښکاري ـ

**د بلخ و بدخشان دوېم مهم** :- وائ :- چې د بلخ و بدخشان د حکمرانِ نذر محمد خان خلاف خپل زوئے عبدالعزيز خان بغاوت وکړو ـ شاه جهان ته چې د پلار او زوئے تر مېنځ د ناچاقۍ خبرونه راورسېدل ـ نو شاه جهان بې قرار شو ـ چې د توران حاکم نذر محمد خان نه د هغۀ د وړاندينو ګستاخو بدل واخلي ـ چې په کومو ورځو کښې د جهانګير د وفات او د شاه جهان د تخت نشينۍ دوران هغۀ په کابل فوج کشي کړې وه ـ او خانِ خانان مهابت خان هغه د کابل نه ناکام زغلولے وو ـ هغۀ د شهزاده مراد بخش زيرِ کمان يو لوئے مغل شاهي لښکر په ۵ اپرېل ۱۶۴۶ء ۱ ۱۰۵۶ھـ د کابل په لور لاهور نه روان شو ـ

,, بہادر خان داؤدزئی پشاور میں تھا۔اس کے لئے خلعت خاصہ جمدھر مرصع، پھول کٹارہ، طلائی ساز والا اسپ خاص اور نقرئی ساز کا ہاتھی اصالت کے ہاتھ روانہ کیا۔[1]،،

د شهزاده مراد بخش تحت دغه لوئے لښکر په ۱۷ مئ ۱٦۴٦ء دریائے سندھ نه راپورې وتو - او په ۲۱ مئ ۱٦۴٦ء پېښور ته را ورسېدو :-

,, اور کوچ کرتے ہوئے بدخشان کی طرف بڑھے---------- شاہی بیلداروں کو حکم دیا گیا کہ سڑک کا برف صاف کرو۔ تا کہ اونٹ اسانی سے گذر سکیں---------- ہندوستان کے آدمی برف کا نام سن کر تھراتے ہیں-------- اگلے دن بہادر خان، راجہ بیٹھل داس اور اصالت خان نے اپنے سواروں کو حکم دیا۔ کہ راستہ تیار کرو---------- بہادر خان کے پٹھانوں نے بڑی جانفشانی سے کوس بھر تک جہاں برف بہت زیادہ تھا۔ دو گز چوڑا کوچہ نکالا۔ اور ۲۲ جون ۱٦۴٦ء کو مغل لشکر سراب (بدخشان) میں خیمہ زن ہوئے[2]،،

د مغل په دې لوئے عسکری قوت کښې کۀ یو خوا بهادر خان او اصالت خان شامل وو - نو بل اړخ د خلیل الله خان زبر کمان د دوه سوه پنځۀ امیرانو منصبدارانو د گس اړخ ( مېسره ) محفوظ دسته وه - چې په دغه کښې خوشحال بېگ هم اصالت خان څخه موجود وو[3] -

,, بهادر خان اور اصالت خان، افغان اور سادات کی ایک جمعیت کے ساتھ گئے تھے[4]،،

---

۱- عمل صالح ، ص ۳۹۱

۲- عمل صالح ،ص ۳۹۷ و۳۹۸

۳- عمل صالح ، ص ۳۹۰

۴- منتخب الالباب از خافی خان ۲۰۷

بهادر خان څخه پښتانهٔ وو ـ او اصالت خان څخه شیعه ګان ـ نهٔ پوهېږو چې خوشحال خان د کوم مصلحت تحت د تارا ګرهـ او د بلخ و بدخشان د مهم دوران د شیعه ګانو په لښکر کښې شامل وو ـ او د بهادر خان نه ئې زیات تعلقات اصالت خان څخه وو ـ

" و طرح دست چپ به خلیل الله خان....... صف شکن خان ، خلیل بېګ و خوشحال بېګ کاشغری و جبار قلی ګهکر و هاشم بېګ کاشغری والله دوست کاشغری و جمله دیګر از بندهائے منصبدار محکم ګردید[۱] "

افضل خان لیکی :-

په دې بهار کښې اصالت خان او تمام لښکر د هندوستان له شهزاده مراد بخش سره په مهم د بلخ رخصت شو ـ پېښور ته راغے ـ او زر کسه سوارهٔ او پیاده په ما (خوشحال خان ) هم مقرر شول ـ زهٔ وراندې و اصالت خان ته ورسېدم ـ لښکر مې واړه بهادر خان سره پرېښودو ـ د پینځو سورو او پینځهٔ پیاده ؤ سره جریده اصالت خان ته ورسېدم ـ هر ګاه چې په کوتل تول ( طول ) ورغلو ـ غاښے واؤرو

---

۱ [illegible] ۴۸۶

لاندې کړے وو - په غابنې ختل مشکل وو -------- زۀ تر واړو وړاندې سراب ته ورغلم[1] -

تاریخ مرصع لیکی :-

لښکر زما چې سوارۀ پیاده وو - د زرو کسو وو --------
په وخت د نماز پښین اصالت خان زۀ په ملازمت د شهزاده وروستم -------- لـه حـضـوره اضـافه او منصب د دوئ ( بهادر خان او اصـالت خـان ) د هـمـراهانو وشو - او مواجب د بنده هم اضافه شۀ - ( ص ۲۱۲ ، ۲۱٦ )

عبدالحمید لاهوری لیکی :-

" و ارجن و خوشحال بیگ کاشغری و شادمان پکلی وال به مرحمت خلعت و اسپ عز افتخار اندوختند " ( بادشاه نامه ص ۴۸۸)

تاریخ مرصع چې د کوم زر کسو ذکر کوی - نو معلومیږی چې دغه زر کسه د خوشحال خان منصب وو - او همدغه هزاری ذات منصب دغه وخت د خوشحال بیگ کاشغری هم دے -

د بلخ و بدخشان د مهم ددې دوېم دور واقعات د تاریخ مرصع په صفحات ۲۰۹ نه تر ۲۱٦ درج دی - او د عمل صالح په نزد ص ۳۸۷تا ۴۱۹ دی - یعنی اپریل ۱٦۴٦ء تا اګست ۱٦۴٦ء دې

[1] تاریخ مرصع ، ص ۲۰۹ ، ۲۱۰

دوران د دریائے امو دې غاړه ټوله علاقه د شهزاده مراد بخش تحت فتح شوه ـ خو په دغه سیمه د گرفت د مضبوطیا په ځائے شهزاده مراد بخش د شاه جهان د اجازت نه بغېر پېښور ته خان راورسوو ـ د شهزاده په دې حرکت شاه جهان سخت ناراض شو ـ په ۹ اگست ۱٦۴٦ء سعدالله خان مغل لښکر څخه بلخ ته واستولے شو ـ سعدالله خان هلته د بادشاه د حکم مطابق رسمی طور منصبداران په مختلف عهدو مامور کړل ـ چې په دوئ کښې نورو نه علاوه خوشحال بېگ کاشغری‌ته د سان چاریک انتظام حواله شو ـ

,, خوشحال بیگ کاشغری کو سان چاریک کا انتظام سپرد کیا ،، (عمل صالح ، ص ۴۱۸)

" و سر پل و سان چاریک به خوشحال بیگ کاشغری به دیگر کاشغریان" (بادشاه نامه ، ص ۵۲۵"

## ماثرالامراء لیکی :-

ترجمه :- خوشحال بېگ سلطان مراد بخش څخه د بلخ و بدخشان د تسخیر په مهم مقرر وو ـ د بلخ د فتح دوران د شهر پور او سام چاریک تهانېدار مقرر شو[1] ـ

تاریخ مرصع د ځائے ذکر نهٔ کوی :-

---

[1] ماثرالامراء ، جلد اول ، ص ۷٦۴

اصالت خان زۀ وبللم ـ چې ارباب د نارین د دوئ له فساده فریاد کړے وو ـ تعین کړم ـ ( تاریخ مرصع ، ص ۲۱۲)

**وضاحت** :- د عمل صالح او بادشاه نامه " سان چاریک " د ماثرالامراء " سام چاریک " او د تاریخ مرصع " نامعلوم ځائے " چې خوشحال خان ئې نوم ښودلے نۀ دے ـ او په انتظام ئې مامور کېږی د محل و وقوع په لحاظ دغه ټول ځایونه یودی ـ او خوشحال خان او خوشحال بیګ هم د یو شخصیت او منصبدار نوم دے ـ چې د هزاره ؤ خلاف مقررېږی مونږ دلته د مزید وضاحت دپاره د عمل صالح او تاریخ مرصع نه څو اقتباسات په اختصار درج کوو ـ

,, شہزادہ ۲۱ جون ۱۶۴۶ء کو افواج قاہرا کے ہمراہ درۂ طول کو عبور کر کے اگلے دن سراب کے میدان میں خیمہ زن ہوا ـ خسرو (خسرو سلطان) سے ملنے کے لئے ایک روز یہاں قیام کیا ـ اور ۲۴ جون کو کوچ کر کے تین روز میں نارین پہنچا ـ اصالت خان کو حکم دیا ـ کہ آگے چل کر قندوز میں داخل ہو،،

(عمل صالح، ص ۴۰۲)

**افضل خان لیکی :-**

" اصالت خان په دیدن د خسرو سلطان روان شو ـ زۀ هم ورسره ووم - - - - - - - - شپه تر مېنځ و نارین ته لښکر د بهادر خان او د توابع یې راغے ـ لښکر زما هر چې سوارۀ پیاده وو ـ قریب د زرو کسو وو ـ له وروښواو له اسبابه او له آذوقې سره له لښکره د مراد بخش راغے ـ په مجرد زما د لښکر د رسېدو اصالت خان زۀ وبللم په

سر ئې د خوست د هزاره ؤ چې ارباب د نارين د دوئ له فساده فرياد کړے وو ـ تعين کړم[1] "

د ماثرالامراء ، شاه جهان نامه او بادشاه نامه لوستو نه صفا ظاهر ده چې خوشحال بېګ کاشغرى د سان چاريک يا سام چاريک تهانېدار مقرر شو ـ خو ددې برعکس خوشحال خان چې د نارين د ارباب د خوست د هزاره ؤ خلاف په فرياد او شکايت کوم ځائے مقرر شوے دے ـ هغه ددغه ځائے نوم د خپل مهم جويي په تاريخى سفرنامه کښې ذکر نۀ کوى ـ ولې د بادشاه نامه او شاه جهان نامه د لوستو نه صفا ظاهرېږى چې د خوشحال خان د تقررۍ ځائے هم دغه سان چاريک وو ـ

د خوشحال بېګ د سام چاريک تهانېدارى چې د کوم مقصد دپاره وه ـ د تاريخ مرصع د خوشحال خان د هزاره ؤ خلاف تقررى د خوشحال بېګ د فرائض او ذمه وارۍ وضاحت دے ـ چې خوشحال بېګ ( خوشحال خان ) په ښۀ طريقه خپله ذمه وارى سرته ورسوله او د هزاره ؤ قېديان او پريکړى سرونه او مال و اسباب يې اصالت خان ته پېش کړل ـ او ددې په نتيجه کښې شهزاده مراد بخش د هغۀ په منصب کښې د اضافت او نور مراعات سفارش وکړو

---

[1] تاريخ مرصع ، ص ۲۱۲

تاریخ مرصع وړاندې لیکی :-

" بله ورځ له هغه ځایه کوچ واقع شهٔ ـ دوه شپې تر میان قندوز وته ورسېدو[1] "

تاریخ مرصع چې د خوشحال خان د دوه منصبدار ملګرو شمشېر خان حیات ترین او علاول خان ترین ذکر کوی ـ ددهٔ د منصب برابر ملګری وو ـ شمشېر خان حیات ترین یونیم زری ذات او یو زر سوار[2] ـ او علاول خان یو نیم زری ذات اتهٔ سوه سوارهٔ منصبدار وو[3] ـ

و خوشحال بیګ کاشغری به اضافه پانصدی صد سوار، هزار و پانصدی ،پانصد سوار ـ

خوشحال بیګ په یو نیم زری ذات اګست ۱٦۴۹ء\ ۱۰۵۹ھ کښې مقرر شوے وو[4] ـ

,,علاول خان ترین ڈیڑھ ہزاری ذات آٹھ سو سوار ـ خوشحال بیگ کاشغری ڈیڑھ ہزاری ذات سات سو سوار کے منصب پر سرفراز ہوئے [5] ,,

---

1 تاریخ مرصع ، ص ۲۱۲

2 ماثرالامراء جلد دوم ص ٦۷۵

3 عمل صالح ، ص ۳۷۹ و ۸۸۲

4 بادشاه نامه از عبدالحمید لاهوری ، ص ۵۹۵

5 عمل صالح ، ص ۵٦۱

## افضل خان لیکی :-

شمشېر خان او علاول خان سرګشته ګرزېدل ـ یو د بله پېش شو ـ په سر د پل کښېناستو حېران او متفکر وو ـ چې کوم طرف روان شو ---------- شمشېر خان ته مې ووې چې علاول خان مرد عیاش طبیعت دے[1] ـ

شمشېر حیات خان ترین د علی خان زوئے وو ـچې د ټټه په جنګ کښې مړ شوے وو ـ د بلخ و بدخشان د مهم دوران هزاری ذات منصبدار وو ـ خپل اصل نوم ئې حیات خان وو ـ او د بلخ او بدخشان د فتح دوران د شمشېر خان په اعزاز سرفراز شو ـ

علاول خان ترین اپرېل ۱٦۳۸ء کښې د هزاری ذات په منصب سرفراز شو[2] ـ

خوشحال بېګ کاشغری د بلخ و بدخشان د جنګ دوران هزاری ذات منصبدار وو[3] ـ

1 تاریخ مرصع ، ص ۲۱۳ و ۲۱۴

2 عمل صالح ، ص ۲۲۸

3 مآثرالامراء .. جلد اول ، ص ۷٦۴

## محمد حیات خان د خوشحال خان د منصب متعلق لیکی :-

,, بعد شہباز خان کے خوشحال خان بیٹا شاہ جہان بادشاہ کے حکم سے قوم خٹک کا رئیس ہوا۔ بادشاہ کی حکم سے خوشحال خان نے اپنی قوم کی فوج ہمراہ لیکر علاقہ اجمیر میں بوقت یورش قلعہ تارا گڑھ، جس میں ایک باغی راجہ تھا۔ بہت نمایاں خدمت کر کے جب بعد فتح قلعہ لاہور میں واپس آکر باریاب ہوا۔ تو شاہ جہان نے چار لاکھ روپیہ نقد عطا کیا۔ اور ڈیڑھ لاکھ سالانہ کی جاگیر اس شرط سے مقرر کی۔ کہ پانسو سوار اور ایک ہزار پیدل سپاہ واسطے خدمات شاھی اس آمدن سے نوکر رکھ کر حاضر باش رہا کرے۔ پچاس برس تک خوشحال خان کی تحت میں خٹک رہے[١] ،،

## سردار شیر محمد خان گنداپور د خوشحال خان د منصب په حقله لیکی :-

شہباز خان کے بعد اس کا بیٹا خوشحال خان خٹک شاہ جہان بادشاہ دہلی کے حکم سے قوم خٹک کا سردار مقرر ہوا۔ خوشحال خان بادشاہ کے حکم سے اپنی قوم کی فوج لیکر اجمیر چلا گیا۔ اور قلعہ تارا گڑھ کے باغی راجہ کے خلاف حملہ کے دوران کارہائے نمایاں انجام دیئے۔ جب قلعہ فتح ہوا لاہور آکر دربار شاہی میں حاضر ہوا شاہ جہان نے اسے چار لاکھ روپیہ نقد عطا کیا۔ اور ایک لاکھ روپیہ سالانہ کی جاگیر اور ڈیرہ اس شرط کے ساتھ مرحمت کیا۔ کہ اس کی امدنی سے شاہی خدمت کے لئے پانچ سو سوار اور ایک ہزار پیادہ نوکر رکھے۔ اور حاضر باش رہا کرے۔ قوم خٹک پچاس سال تک خوشحال خان کی حکومت کے تحت رہے[٢]

د حیات افغانی او خورشید جهان د خوشحال خان د منصب متعلق یو شان بیان نه صفا ښکاری چې دواړه مؤلفین په دې حقیقت متفق دی - چې خوشحال خان او خوشحال بېګ کاشغری د

---

١ - حیات افغانی ، ص ٣٤٣

٢ - تاریخ خورشید جهان از سردار شیر محمد خان ګنداپور ص ٥٢٩

یو شخصیت نومونه دی ـ او د کلیات خوشحال یا تاریخ مرصع
خوشحال خان د بادشاه نامه ، عمل صالح اداب عالمگیری
ماثرالامرا خوشحال بیگ کاشغری دے ـ

دوست محمد کامل لیکی :-

,,اس مہم کے دوران اپریل ۱۶۴۷ء/ ۱۰۵۷ھ کو اصالت خان میر عبدالہادی چالیس سال کی عمر میں اجل طبعی سے انتقال کیا۔ اصالت خان ہمارے شاعر شمشیر زن خوشحال خان کا محسن و مربی تھا ۱،،

**د بلخ و بدخشان دریم دور** :- ددې مهم دریم دور د تاریخ مرصع په صفحات ص ۲۱۷ تا ص ۲۱۸ دے او د عمل صالح مطابق صفحات ۴۴۹ تا ۴٦۴ چې اپریل۱٦۴۷ء تا جولائ ۱٦۴۷ء دے ـ یعنی د شهزاده مراد بخش پځائے د شهزاده اورنګ زیب او سعید خان بهادر ظفر جنګ تقرری او نذر محمد خان ته د بلخ و بدخشان حکومت دوباره سپارلو پورې موده ده ـ

شهزاده مراد بخش په ۲ جولائ ۱٦۴٦ء بلخ فتح کړے وو ـ او نذر محمد ایران پلؤ فرار شوے وو ـ شاه جهان په دې کامیابی زخت زیات خوشحال وو ـ خو مراد بخش چې د پلار د اجازت نه بغیر هندوستان ته واپس راغلو ـ نو شاه جهان د هغۀ په دې حرکت سخت خفه شو ـ هغۀ د ۱٦۴۷ء اوائیل کښې شهزاده اورنګ زیب د

---

۱ خوشحال خان خٹک ، ص ۵۷

بلخ و بدخشان د مزید کامیابۍ د حصول په غرض مقرر کړو - او په خپله هم کابل ته را ورسېدو - خو اورنګ زېب د دریائے امو پورې غارې علاقو د نیوؤ جرات ونۀ کړو - بل خوا د ازبک د عام عوام حملو او ګوریلا جنګ هغه دې ته مجبور کړو - چې نذر محمد خان څخه صلح وکړی - نذر محمد خان ایران نه واپس راغلو - او خپل ملک ورته حواله شو - د شاه جهان دې بې مقصده جنګ کښې پنځۀ زره فوځ او ډېر مال و اسباب تباه شو - او د وسط ایشیاء تسخیر دهلی سلطنت معاشی طور کمزور کړو -

## محمد صالح کنبوه لیکی :-

,, ۱۱۵ کتوبر ۱۶۴۷ء کو شاہی لشکر کابل کی طرف روانہ ہوئی - درہ عرشک عبور کر کے مقام کیا - راستہ نہایت تنگ تھا - اس لئے بہادر خان تین روز تک درے کے ناکے پر ٹھہرا رہا - بہیر کا عملہ گھاس چارہ لانے کے لئے جنگلوں میں چلا گیا تھا - اس کی محافظت کرتا رہا - اور آگے بڑھتا رہا - ۱۷ اکتوبر ۱۶۴۷ء کو شمشیر خان خوشحال بیگ اور دوسرے کاشغری سرداروں کی باری تھی - کہ گھاس لائیں - اس روز تقریباً پانچ ہزار ازبک اور المان غارتگر اس جماعت پر آپڑے - ان گستاخوں کی آدھی فوج نے شمشیر خان کو نرغے میں لے لیا - بادشاہی دلاوروں نے ان وحشیوں کی ذرا پرواہ نہ کی - بہادر خان کو جونہی اطلاع ملی - کمک کے لئے جھپٹا - اور وہ غائب ہو گئے [1] ،،

د تاریخ مرصع طرز تحریر کۀ هر څو افسانوی ، قیصصی یا د سفرنامې رنګ لری - او د شاه جهان نامه یا د بادشاه نامه د

---

[1] عمل صالح شاہ جہان نامہ، جلد سوم ، ص ۴۸۴

تحریر په شان زیات تواریخي واقعات نهٔ لري ـ ولې بیا هم ددې تواریخي کتابونو تر مېنځ ډېر زیات یکسانیت لیدے شي ـ دلته یې په یو مثال راوړلو اکتفا کوم ـ

" پنځه شپې ورځې په شبر غان کښې وو ـ خبر راورسېدو ـ چې ازبکو خپل عیال اولاد له آب آمو پورې کړو ـ نشان د شهزاده په بهادر خان صادر شو ـ چې اندخوئے ته لاړ شه ـ له هغه ځایه کوچ وکړه ـ په میان د اندخوئے او د شبرغان یوه باغیچه وه ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ دوه درې شپې هورته پاتې شو ـ بل نشان په بلل د دوئ راغے ـ اصالت خان او بهادر خان حقیقت ددې فتحې په ډېر آب و تاب وکېښ[1] "

## شاه جهان نامه لیکي :-

,, شہزادہ مراد بخش نے مزید بے تمیزی کی ـ کہ بہادر خان اور اصالت خان کو جو نذر محمد کو شکست کے بعد شبرغان سے اندخود کی طرف گئے ہوئے تھے ـ واپس بلالیا [2] ،،

د بلخ و بدخشان په دې مهم کښې چې د کوم اهم ځایونو ذکر دے ـ لکه شبر غان ، اندخوئے ( اندخود ) سرمل ( عمل صالح ص ۴۴۰ سرپل ) طول ( تول ) سراب ، قلعه جګتا یا د جګت سنګهـ تانه ( قلعه چوبی جګت سنګهـ ) غوری ، پنجشیر ،

---

[1] تاریخ مرصع ، ص ۲۱۵

[2] عمل صالح ، ص ۴۱۵

اندراب ، خلم ، کهمرد ، قندوز . نارین وغیره په تاریخ مرصع ، عمل صالح او بادشاه نامه کښې یې ذکر موجود دے - دغسې د بهادر خان ، اصالت خان ، نواب علی مردان خان ، شمشیر خان علاول خان ، راجه روپ سنگهـ پسر جگت سنگهـ ، رستم خان ، دولت بیګ قاقشال ، عبدالعزیزخان بن نذر محمد د پښتو ژبې په تاریخ مرصع او شاه جهان نامه ( اردو ترجمه) ، بادشاه نامه (فارسی) کښې په خصوصی توګه درج دی -

# خوشحال خان یا خوشحال بېګ
# په آګره کښې

یمین الدوله آصف خان چې د شاه جهان د زمانې عالی مرتبه نهٔ زری ذات نهٔ زری سوار سپه سالار وو ـ او د چا لور ممتاز محل چې د شاه جهان ښځه وه ـ او د چا په برکت چې شاه جهان خپلو وروڼو څخه د تخت د وراثت په جنګ کښې کامیاب شوے وو ـ او بیا وروستو دغه آصف خان فالج ووهلو ـ او چې خپل زوم شاه جهان څخه ۱٦۴۱ء \ ۱۰۵۱هـ کښې د کشمیر د سېل په هوا خورۍ په سفر وو ـ د لاهور په مقام ئې طبیعت ناساز شو ـ د شاه جهان د قافلې نه وروستو پاتې شو ـ خو وفات شو ـ او لاهور کښې خاورو ته وسپارلے شو[1] ـ

دغه آصف خان په آګره کښې یو عالی شان مکان جوړ کړے وو ـ ددغه ښکلې حویلۍ په شان کښې خوشحال خان د

---

[1] شاه جهان نامه ، جلددوم ، ص ۲۸۸

کلیات خوشحال از دوست محمد خان کامل په زر اتهٔ پنځوس یعنی ۱٦۴۹ء ا ۱۰۵۹ھ کښې او د قندهار چاپ دیوان مطابق زر اتهٔ پنځوس یعنی ۱٦۴۸ء ا ۱۰۵۸ھ کښې یوه اوږده قصیده لیکلې ده ۔

مونږ دلته د قندهار چاپ د نسخې ۱٦۴۸ء ا ۱۰۵۸ھ څخه اتفاق کوو ۔ ځکه چې شاه جهان په ۱۵ مارچ ۱٦۴۹ء ا ۱۰۵۹ھ د لاهور نه د کابل په لور روان وو ۔ چې دغه ځائے نه د خپل مغل لښکر د ایرانی قزلباش فوج خلاف د کار روایی نه ځان خبر وساتی چا چې مغل نه قندهار قبضه کړے وو[1] ۔

او بیا د ټولونه لویه خبره داده چې ۱٦۴۹ء ا ۱۰۵۹ھ کښې خوشحال خان د بهادر خان په استقبال او مهمان نوازی کښې مصروف وی ۔

" چې تر اټک بهادر خان راپورې شو ۔ نو ازروئے اخلاص چې خان علین څخه وو ۔ راغے د ملک اکوړ په سرائے کښې ئې ډېره وکړه[2] "

نو په دې کښې شک و شبه نشته چې د قندهار د چاپ :-

زر اتهٔ پنځوس کالونه د هجـرت وو
د نوروز په دولسم چې دا گفتار شی

---

1 شاه جهان نامه ۔ ص ۵۳۴

2 تاریخ مرصع ۔ ص ۲۱۸

صحی تاریخ دے ۔ او د دوست محمد کامل د " کلیات خوشحال " نهٔ پنځوس کال غلط دے ۔

شاه جهان د ۱۱ جنوری ۱٦۴۸ء \ ۱۰۵۸هـ نه تر ۱۵ اپریل ۱٦۴۸ء ۱۰۵۸هـ آګره کښې وو ۔ البته په ۱٦ اپریل ۱٦۴۸ء \ ۱۰۵۸هـ د دهلی د نوی ښار " شاه جهان اباد " د افتتاح په سلسله کښې آګره نه روان شو ۔ چې دغلته په دهلی کښې په جشن کښې شامل شی ۔

د آصف خان د عالیشان محل متعلق محمد صالح کنبوهٔ لیکی :-

,, ادھر سے خان والا شان آصف خان شہزادوں کے ہمرکاب بہشت اباد سے سوار ہوکر جو فردوس کی مانند اھل عشرت کا مرکز ہے۔ آگے بڑھا[1] ،،

**خوشحال خان ددې محل متعلق وائ :-**

نن زمــا طــالــع لــــه ما سره مدد کا
بخت دې هر کله دا هسې مـدد ګار شی
دا بنــــاء د اصف خـــــان لا لاسه شوې
اوس په حکم د خـــرم پکښې دا کار شی

د خوشحال خان په دې دوه شعرونو کښې نن زما طالع له ما سره مدد کا او " اوس په حکم د خرم پکښې دا کار شی " معنیٰ خېز دی

---

[1] شاہ جہان نامہ، جلداول ص۲۵۵

یعنی بخت زما ملګرے شو - او نن زۀ د شاه جهان د حکم مطابق په اعزازات سرفراز شوم -

د عمل صالح شاه جهان د لوستو نه ظاهره ده - چې د نوروز دغه جشن په ۲۱ مارچ ۱٦٤۸ء بمطابق ۱۰۵۸ھ وو -

,,شاہ عالم پناہ نے تخت سلطنت پر جلوس فرما کر اقبال وکامرانی کی داد دی۔ امرائے نامدار اور منصبداران کے منصب میں اضافے ہوئے[1] ،،

د عمل صالح په حواله د نوروز د دغه جشن په موقعه د منصبدارانو په منصب کښې د اضافت ذکر دے - د خوشحال خان یا د خوشحال بېګ د نوم ذکر نشته - خو د خوشحال خان په دغه موقعه موجودګی بنائ - چې په انعام و اکرام به ضرور سرفراز شوے وی -

نوروز او خوشحال خان :- نوروز د زرتشتی مذهب د پېروکارانو مذهبی ورځ وه - چې د سپرلی په راتګ به ئې د خوشحالی رسومات ادا کول - د اسلام د قبولیت باوجود ایرانی قوم ددې ورځ رواج برقرار وساتلو - د اموی سلطنت کوفی ګورنر حجاج بن یوسف وو - او کۀ د بنو عباسیه ابو مسلم خراسانی یا برمکیان طاهری او صفاریان وو - ددې ورځ بنمانځلو ته ئې خصوصی اهمیت او وسعت

---

[1] عمل صالح، ص ۴۹۲

ورکړو - ددې ورځ نمانځل عموماً په ۲۱ مارچ وی - چې شپه او ورځ یو برابر شی - د ایران دا قدیم او زوړ رسم د ایران شیعیت فرقې هغه ټولو ملکونو ته خور کړو - چرته چې شیعه ګان اباد وو - د ایران دغه رسم سنی مسلک پېروکارانو د جشن بهاران یا عید کائنات په نوم یاد کړو - ځکه چې سپرلے هر ذی روح ته د خوشحالی زېرے دے -

د پاک و هند په سیمه ددې ورځ رواج هغه زمانه عام شو - چې همایون ایران کښې شیعه مسلک اختیار کړو - او د هغوئ په امداد ئې د هندوستان حکومت بېرته واخېستو - مغل شیعه شاهانو د نوروز په شاهانه اهتمام نمانځل شروع کړل - او په دې ورځ مراعات عنایات ،منصبانه اضافت او د انعام و اکرام بخشش عام معمول شو - د مغل دربار شاعران ددې ورځ د وصف او اهمیت په بیان او د بادشاه په مداح سرایی ،سلامتی او کامیابی نذرانه عقیدت پیش کولو په مختلف نوازشات مشرف کېدل -

د شیعه مسلک ایرانی نژاد فارسی شاعرانو ددې ورځ په مناسبت ښکلی بهاریه شعرونه وئیلی دی - لکه شیخ سعدی شیرازی وائ :-

دم عیسیٰ است پنداری نسیم بـاد نو روزی
که خاک مـرده باز آید در و روحی وریحانـی

حافظ شیرازی وائ :-

ابـــر اذاری بـــرآمـــد بـــاد نـــوروزی وزیـــد
وجه می می خواهم ،و مطرب که می‌گوید رسید

د شاه جهان بادشاه د دربار ملک شعراء کلیم کاشانی وائ :-

و گر نوروز عالم را جوان کرد
گلستان رابـه کام بلبلان کرد

د مغلو منصبدار د شاه جهان وفادار خوشحال خان د شاهی دربار د نوروزی محفل او بزم نه متاثره ښکاری ـ او د هغهٔ په فکر و نظر او شاعرئ د نوروز رنګ زخت زیات غالب دے ـ د پښتو ژبې د نورو شاعرانو برعکس د هغهٔ په شاعرئ کښې د نوروز او بهار متعلق کافی اشعار موجود دي ـ عن چې د فارسی ژبې شاعرانو په تتبع کښې یې په دې موضوع اوږدې قصیدې لیکلی دی ـ لکه د یو قصیدې دا ابتدائی شعر یا مطلع :-

د نوروز منت په باغ دے په صحرا هم
نورانی ئې شی لـــه فیضه هغه دا هم

یا د یو بلې قصیدې د اغاز دا شعر :-

بـــرابـــر راشـــه نـــوروزه دل امروزه
ستا په وخت مې اسوده شی سترګې پوزه

د اوږدو قصیدو نه علاوه د هغهٔ په شعرونو کښې نور ځایه هم د نوروز ذکر موجود دے لکه :-

ساقي راپـــاسه چې بيا نوروز راغے
گل په گلشن کښې جهان افروز راغے

په نوروز کښې دا غزل واخله مطربه
پـــه اواز بـــه د بـلبـلې شي ساکت

راشه مطـــربـــه د نـــوروز ســـرود اغاز کړه
ښې نغمې دلسوزې په رباب په نے او چنګ وکـړه

د نـــوروز پـــه دولسم          مياشت صفر کال د غغظ وو

دغسې د هغۀ د شاعرۍ يوه لويه برخه د سپرلی او نوبهار ستائنې سره مخصوص ده ـ او دا ټول تاثير د مغل دربار د نوروزی محفلونو ښکاری :-

د نرگس گلونه پلی سوارۀ راغلۀ
ننـــداره ئې د بهـار کړه افتتاح

په هر لوری نـــوبـهـــار دے غوړېدلے
سترگې وخوره چې به دا ننداره نۀ کا

گلدستې د نوبهار په هر مشام خې
گلدستې ئې تولوی پیر و بـــرنا هم

**د قندهار مهمات** :- د جهانګیر بادشاه په زمانه ۱٦۲۲ء کښې قندهار ایرانیانو قبضه کړو - خو ۱٦۳۸ کښې شاه جهان د ایران ګورنر علی مردان خان څخه ساز باز برابر کړو - او قندهار ئې د ایران نه بېرته قبضه کړو - دسمبر ۱٦٤۸ء کښې شاه عباس دوم قندهار محاصره کړو - او فروری ۱٦٤۸ء کښې د دهلی نه د امداد او کومک په نۀ رسېدو مغل محافظینو قندهار ایران ته حواله کړو - د قندهار د بېرته قبضې دپاره شاه جهان درې ځل خپل فوځونه واستول - خو د هغۀ هر مهم ناکامی څخه مخا مخ شو - ددې درې مهمونو ورکوټې شان تفصیل داسې دے -

**اولنے مهم** :- د ایران د قندهار د نیوو څخه سم پس هم دغه کال ۱٦٤۹ء \ ۱۰۵۹هـ کښې شاه جهان د شهزاده اورنګزېب تحت یو لوئے لښکر ولېږلو - قندهار محاصره شو - خو د درې نیم میاشتو د محاصرې باوجود کامیابی حاصل نۀ شوه - او شاه جهان اورنګزېب بېرته راوغوښتو-

تاریخ مرصع لیکی :- بیا څو مدت پس سلسله جنبانی د مهم قندهار ورپېښه شوه - شاه زاده اورنګ زېب شاه جهان په مهم د

قندهار را روان کړو - بهادر خان او نور امرایان ورسره تعینات روان شول - چې تر اټک بهادر خان راپورې شۀ - از روئے اخلاص چې خان علین مکان څخه وو - راغے د ملک اکوړ په سرائے کښې ئې ډېره وکړه[۱] "

افضل خان دا لیکلی نۀ دی چې په دې مهم ورڅخه خوشحال خان شامل وو یا شامل نۀ وو - البته چې د تارا ګړهـ او د بلخ و بدخشان په مهمات کښې چې کوم خوشحال بېګ منصبدار د اصالت خان تحت فوځ کښې وو - هغه د قندهار په مهمات هم شاه جهانی لښکر کښې شامل وو -

ترجمه :- خوشحال بېګ په دوویشتم جلوس ( جون ۱٦۴۸ء ۱۰۵۸هـ تا جون ۱٦۴۹ء ۱ ۱۰۵۹هـ ) سلطان محمد اورنګزېب څخه د قندهار په مهم لاړ وو[۲] "

۱۸ جولائ ۱٦۴۹ء ۱ ۱۰۵۹هـ وو چې بهادر خان په قندهار کښې وفات شو - د قندهار مهم کۀ هر څو یو ناکام کوشش وو - ولې بیا هم د مغل لښکر کارکردګی مایوس کن نۀ وه - او چې کومو بهادر سردارانو په دغه مهم کښې د جرات او بهادرۍ مظاهره کړې وه - هغوئ اګست ۱٦۴۹ء ۱ ۱۰۵۹هـ کښې د کابل په مقام د منصب

---

[1] تاریخ مرصع ، ۲۱۸

[2] مائرالامرا ، جلد اول ص ۷٦۴

په اضافت سرفراز شوی وو - چې دغه کښې خوشحال بېګ هم شامل وو - او د يو نيم زرى او اووۀ سوه سورو په منصب سرفراز وو -
,,علاول خان ترین ڈیڑھ ہزاری ذات آٹھ سوسوار، خوشحال بیگ کاشغری ڈیڑھ ہزاری سات سوسوار کے منصب پر سرفراز ہوئے[1]''

افضل خان په خپل کتاب تاريخ مرصع کښې د بهادر خان د وفات د ذکر نه وروستو د قندهار د مهم متعلق مونږ د نور معلومات نه محروم ساتى - د خوشحال خان د منصب د اضافت او په دغه مهم کښې د شرکت ذکر هم نۀ کوى - البته د بهادر خان سرائے اکوړى ته راتګ صفا ښائ - چې هغه په دغه مهم کښې شريک وو - او د عمل صالح د خوشحال بېګ په حواله او منصب کښې اضافت همدغه خوشحال خان نه علاوه بل څوک کېدے شي -

**د قندهار دوېم مهم** :- شاه جهان په ۲۵ فرورى ۱٦۵۲ء د قندهار په تسخير دوېم ځل يو لوئے لښکر د شهزاده اورنګ زيب تحت روان کړو - دغه لښکر په ۱۹ مارچ ۱٦۵۲ء پېښور ته راورسېدو دغه لښکر کښې هم خوشحال بېګ شامل وو[2] - د قندهار د دوه مياشتو محاصرې باوجود دا مهم هم ناکامى څخه مخا مخ شو -

---

[1] عمل صالح ، ص ۵٦۱
[2] وګورئ عمل صالح ، ص ۵۹۳

**د قندهار دریم مهم** :- د شهزاده دارالشکوه تحت ۱۶۵۳ء کښې په دریم وار د قندهار د بېرته نیولو کوشش وشو - او تر ډېرو میاشتو په محاصره کښې شو - ولې دا مهم هم ناکام ثابت شو - د قندهار په دې دریم مهم کښې هم خوشحال بېګ مونږ شامل وینو[1] -

د شاه جهان نامه او ماثرالامرا په صفحات مونږ د خوشحال بېګ او دتاریخ مرصع په صفحات د خوشحال خان ذکر د ۱۶۴۱ء ۱ ۱۰۵۰هـ نه وروستو د تارا ګړهـ ، بلخ و بدخشان او عن چې د قندهار د تسخیرات دوران وینو - او د عمل صالح د منصبدارانو د فهرست په صفحه ۸۸۰ مونږ د خوشحال بېګ کاشغری د دو هزاری ذات او اتۀ سوه سورو په اعزاز سر فراز ګورو[2] - خو بادشاه نامه کښې مونږ خوشحال بېګ کاشغری د یو نیم زری ذات او پنځۀ سوه سورو په اعزاز ګورو[3] - ځکه چې د بادشاه نامه مؤلف عبدالحمید لاهوری ۱۶۵۵ء۱ ۱۰۶۵هـ کښې په حق ورسی - او د شاه جهان د دور نور واقعات بیا ډېر وروستو محمد وارث بادشاه نامه جلد سوم اختتام ته رسوی - دغسې د بادشاه نامه دوه ایډیشن دی - یعنی یو

---

1 عمل صالح ، ص ۵۹۳

2 غمل صالح ، ص ۶۱۱

3 وګورئ بادشاه نامه ، ص ۷۳۲

د عبدالحمید لاهوری د لاس لیک دوه جلده دی - او دریم جلد د محمد وارث د لاس لیک دے - او دغسې بادشاه نامه په درې جلدونو مشتمل کتاب دے -

د عمل صالح او بادشاه نامه په صفحات د خوشحال بېګ نوم څخه د کاشغری د الفاظ استعمال زمونږ د تجسس وړ دی - د خوشحال بېګ نوم د اندرونی او خارجی شهادتونو له مخه قابل قبول او بلا شک و شبهه دے - چې د خوشحال خان دپاره مختلف ځایه مستعمل دے - البته د کاشغزی استعمال په حق کښې کورنے شهادت نۀ لرو - د خوشحال خان او خوشحال بېګ په کارکردګۍ کښې د زمان و مکان او محل وقوع تر مخه ډېر اقدار مشترک او یو شان دی - بقوله صمصام الدوله شاهنواز خان :-

,, کاشغر اقلم ششم کی ایک نہایت بارونق ولایت ہے۔ کاشغر کے اتر میں مغلستان کے پہاڑ ہیں۔ اس کی ایک حد تاشقند سے ملی ہوئی ہے۔ ایک حد طرفان سے گزرتی ہے۔ اور قلماق کی سرزمین تک آتی ہے اس کے پچھم میں بھی ایک طویل پہاڑی سلسلہ ہے۔ کہ مغلستان کی پہاڑیاں اس سے نکلتی ہے[۱] ،،

د خوشحال خان د بهادر خان داؤدزی تحت د پښتنو د لښکر په ځائے د اصالت خان د شیعه لښکر په ډله کښې شمولیت یا د خوشحال بېګ د کاشغریانو په ډله کښې د شرکت په سبب

---

۱ ماثرالامرا ،، جلد سوم ، ص ۵۳

شاید کاشغری یاد شوے وی ـ دواړه ځایه تحقیق غواړی ـ د پښتو ادب د سنی مسلک په شاعرانو کښې د اهل بېتو متعلق اشعار د خوشحال خان په کلام کښې ډېر زیات دی ـ ممکن ده ـ د اصالت خان یا د مغل لښکر د شیعه مسلک ملګرو د صحبت او محفل اثر وی ـ

زهٔ خوشحال خټک په حب د اهل بېتو
خــــارجی رافــضی کــړم اخــراجی

**تبصره** :- اندازه ده چې خوشحال خان هم دغه خوشحال بېګ دے ـ چې د تاریخ مرصع په مختلف مراحل د شاه جهان د بادشاهت په زمانه په مناصب سرفراز شوے دے ـ چې په تاریخ مرصع کښې ئې د قندهار د اولنی مهم نه وروستو مونږ څهٔ خاص ذکر نهٔ وینو ـ البته خوشحال بېګ کاشغری د چتوړ د راجه راج سنګهـ خلاف په مهم سعدالله خان ددغه ځائے د قلعه ورانولو دپاره مقرر وی ـ

,, اٹھائیسواں سال میں جملۃ الملک (سعداللہ خان) کے ساتھ چتوڑ (دمیواڑ دارالخلافہ) کے لئے روانہ ہوا۔ اور بہادری کا مظاہرہ کیا ۱ ،،

ماثرالامرا مونږ ته دا اطلاع هم راکوی ـ چې هغه په ۲۹ جلوس شاه جهانی ۱۶۵۴ء / ۱۰۶۵هـ کښې د سری نګر په مهم د

---

۱ ماثرالامرا ، جلد اول ، ص ۷۶۴





اصالت خان کشر ورور خلیل الله خان سره د کمایون د ریاست د زمیندار بهادر چند په سرکوبی مقرر وو -

مونږ کهٔ د خوشحال خان د کشمیر متعلق دا څو اشعار په غور مطالعه کړو - نو د هغهٔ ذاتی معلومات ،تجربات او مشاهدات ښکاری - چې د خوشحال بېګ کاشغری په حېثیت ورته حاصل وو

شړی ور پښتون به سل په ډکه یوسی
کشمیری چې بغرګ شالونه ئې په دوش دی

کهٔ هر څو ښائسته ډېر لرې کشمیره
لکه یار یو نازنین هسې لرې

ما چې ستا د چهرې ښهٔ ننداره وکړه
څوک به ستا په حسن نهٔ وی په کشمیر کښې

کهٔ په حسن د کشمیر خوبان اوڅار دی
یا د چین او د ماچین یا د تاتار دی

په دا هسې پاکیزه اوبو سلسالو
شما تت ئې د کشمیر په شاله مار شی

د مغل حکومت د منصب برکت دے چې هغه دعویٰ لری

کوم ملک دے له ما پاتې چې مې پـــل نۀ دے پرې اېښے

هر ځائے به ورته یـــاد کړم کۀ څوک شته سیاحت کړونے

افضل خان ۱۶۴۹ء \ ۱۰۵۹ھ نه وروستو د شاه جهان د ناروغتیا او د تخت نشینئ د جنګ ۱۶۵۸ء \ ۱۰۶۸ھ پورې اندازتاً نهۀ کاله د خوشحال خان متعلق خاموش دے۔ پته نشته چې د کوم مصلحت تحت د حکومتی معاملات په حقله افضل خان مونږ د خوشحال خان د سیاسی سرګرمو او د یو منصبدار په حېث د هغۀ د حالاتو نه بې خبره ساتی۔

تاریخ مرصع د تخت نشینئ د جنګ دوران خوشحال خان یو غېر جانبدار ښائ :-

" دارالشکوه په لاهور راغے۔ له لاهوره یې نیت د کابل صوبې ته وشۀ۔ یو سور ئې د ښبان سره خان علین مکان خوشحال خان ته واستوۀ۔ چې کۀ د تا صلاح وی۔ زۀ به دغه لور ته درشم۔ د خان علین مکان چې له دارالشکوه سره مخالفت وو۔ په سبب د بهاکو خان د جنبه داری ---------- ځواب ئې ورکړو۔ چې په دا لور مۀ راځه[1] "۔

---

[1] تاریخ مرصع ، ص ۲۲۴

د افضل خان دا بیان څکه مبالغه امیز دے - چي دارالشکوه د سرائے اکوړی نه علاوه کابل ته په نورو لارو ګودرو هم رسیدے شو - خو هغۀ د سابقه ښۀ تعلقات په بناء خان ملک جیون خان ته ورسوؤ - ولې ملک جیون د پناه په ځائے هغه ګرفتار کړو - او اورنګ زیب ته ئې حواله کړو -

د تاریخ مرصع ددې بیان بر عکس ماثرالامرا د خوشحال بیګ متعلق لیکی :-

,, جب سلطان محمد اورنگزیب بہادر کا ارادہ اپنے پدر بزرگوار شاہ جہان کی عیادت کے لئے روانگی کا شہرہ ہوا تھا۔ اس کے بعد سموگڑھ کی جنگ میں سلطان دارالشکوہ کے ساتھ تھا۔ اس کے باقی حالات معلوم نہیں ہوئے [1] ,,

منشی شیخ ابو الفتح قابل خان هم ښائ - چې خوشحال بیګ کاشغری د اورنګ زیب خلاف د دهرمات په مقام په ۱۵ اپریل ۱۶۵۸ء راجه جسونت سنګهـ سره او په ۲۹ مئ ۱۶۵۸ء دارالشکوه څخه د سمو ګړه په مقام جنګونو کښې باقاعده شریک وو -

" و دیگر اعظم راجپوتان و خوشحال بیگ کاشغری و سلطان حسین ولد اصالت خان مرحوم و دیگر بندهائے معتبر بادشاهی تعین [2] "

" و خود به سه هزار سوار ،از عمدها و خاصان و مقربان خویش و

---

۱ ماثرالامرا ، جلد اول ، ص ۷۶۴

۲ اداب عالمگیری ، ص ۱۰۰۴

جمعی از مردم بادشاهی مثل فیض الله خان و خوشحال بیگ کاشغری در قول گرفته[1] "

همدغه بیان د مراة العالم از بختاور خان په کتاب کښې هم په صفحه ۴۵ درج دے ـ

تاسو وینئ چې په دې جنګونو کښې د خوشحال خان د محسن او دوست اصالت خان زوئے سلطان حسېن هم د دارالشکوه په پره وی ـ البته د اصالت خان کشر ورور خلیل الله خان میر بخشی ته د جنګ د موقعې د نزاکت احساس وشی ـ او د سموګړهـ د جنګ دوران اورنګ زېب طرف ته واؤړی ـ او هغهٔ څخه د وفاداری عهد و پیمان وکړی ـ د خلیل الله خان متعلق افضل خان لیکی :-

" چې جنګ په سمو ګړهـ شروع شو ـ له ورایه ئې ورته شا کړه روان شو سید قطب جمعدار چې د خلیل الله خان د فرېب نه خبر نهٔ وو نعرې ئې کړې ـ چې دا چرته روان شوې ـ اے نامرده ، دهٔ ورته ووې چې را درومه[2] "

خلیل الله خان د دارالشکوه ډېر اعتباری او وفادار منصبدار وو ـ خو اورنګ زېب سره ئې ساز باز برابر کړو ـ او په عېن موقع ئې دارالشکوه سره غداری وکړه ـ

---

1 اداب عالمګیری ، ص ۱۰۱۲

2 تاریخ مرصع ، ص ۲۲۳

اورنګزېب د آګره په تخت قبضې نه وروستو دارالشکوه پسې دهلی او لاهور پلؤ را روان شو ـ دارالشکوه ملتان پلؤ فرار شو ـ او اورنګزېب بېرته دهلی پلؤ ستون شو ـ خو د خلیل الله خان تحت د اورنګ زېب لښکر په ۲۱ ستمبر ۱٦۵۸ء دارالشکوه پسې ملتان ته راورسېدو ـ اورنګزېب د دارالشکوه د مخ نیوی دپاره باقر خان د بهکر فوجدار مقرر کړو ـ او شیخ میر اوصف شکن خان یې د دارالشکوه په تعاقب کښې بهکر ته راولېږل ـ وائ چې دارالشکوه بهکر ته راغلو ـ دلته د هغهٔ د فوځ یوه لویه برخه دریائے سندهـ نه راپورې وته ـ خو پخپله دارالشکوه د نامعلوم وجوهات له امله د بهکر نهٔ واپس سکهر ته او بیا سېهون شریف ته ورسېدو ـ چې وروستو د ټټه یو زمیندار ملک جیون خان ګرفتار کړو ـ او اورنګزېب ته ئې حواله کړو[1] ـ

" پس له هغه جنګه دارالشکوه وتښتېدو ـ جیون پنی از راه کوتاه اندیشی وینو ـ اورنګزېب لره یې راوستو ـ په دا نیول ئې د درست پښتانهٔ نام د بدو کړو[2] " ـ

**خوشحال خان وائ :-**

---

[1] هسټری آف اورنګزېب جلد اووم ( انګرېزی) از جادو ناتهـ سرکار ، ایم سی سرکار اینډ سنز کلکته ، ۱۹۱۲

[2] تاریخ مرصع ، ص ۲۲٦

ونيوهٔ جيونړ پنی په کور کښې پخپل چم
رايې وست دهلی ته ددهٔ سر يې کړو قلم

„ سندھ کے مضافات میں سے دھادھر کا زمیندار ملک جیون جو پہلے سے دارالشکوہ کا احسان مند تھا۔ بہت تپاک سے پیش آیا۔اور اپنے مکان پر لے گیا[۱] ،،

داسې معلومیږي چې د دارالشکوه کوم لښکر د بهکر نه راپورې وتو - او دلته يې پناه واخېسته - په دغه کښې خوشحال بېګ کاشغری هم شامل وو - چې ددې ځائے دخلقو ځائے ځائيګی او رسم و رواج نه مکمل واقف وو - او د بلخ و بدخشان او قندهار په مهمات کښې شريک پاتې شوے وو -

" و چون در اين هنگام به عرض اقدس رسيد - که دارالشکوه در ملتان هم ثبات قدم نور زيده - به سمت بهکر روان شد - و بسياری از عمده هائے نوکرانش راه مفارقت پيمودند - و اسباب پريشانی و ادبارش در تزايد است......... و در اين منزل از لشکر قراول خبر رسيد که دارالشکوه بيست و پنجم همين ماه در بهکر از دريا عبور کرده بسکهر نزول نمود .......... و از نوکران عمده اش داؤد خان و شيخ نظام و مير عزيز و مير رستم و سيد تاتار بارهه و سيد جواد بخاری و ديگر سرداران قريب چهار هزار سوار در نواحی بهکر از و جدا شده - راه مفارقت پيمودند چنانچه داؤد خان براه جيسلميريه سمت حصار فيروز که وطن او بود رفت[۲] "

---

۱ ماثرالامرا ، جلد دوم ص ۲۸۸

۲ مراة العالم تاريخ اورنګزيب از بختاور خان ، صفحات ۸۳ ، ۱۱۳

تاریخ مرصع د تخت نشینۍ د جنګ دوران خوشحال خان غېر جانبدار ظاهروی ـ خو بل پلؤ د خوشحال خان د کورنۍ دوه کسان د دارالشکوه ملګری او مرستیال ښائ :-

" مصری خان خټک ( بن اکوړ خان ) له زویه سره چې عنایت خان نومېدهٔ ـ د داراشاه سره قدیم نوکران وو ـ یو سه هزاری بل دوه هزاری له خپلو مورچو راووتل ـ د اورنګزېب د لښکر په میان به راغلهٔ ـ عالم به ئې راضی کول ـ خپل لښکر ته به ئې بوتلل[1] "

د افضل خان دا بیان چې مصری خان او عنایت خان بالترتیب درې زری او دوه زری منصبداران وو ـ ځائے نهٔ نیسی ـ ځکه ددې دواړه نومونه د منصبدارانو په فهرست کښې نشته ـ

د تاریخ مرصع مطابق چې دارالشکوه لاهور ته راورسېدو ـ نو خوشحال خان ته ئې خبر راولېږلو ـ چې کهٔ د هغهٔ صلاح وی نو هغه به په دغه لور ورشی ـ خو خوشحال خان صلاح نهٔ شو ـ د افضل خان دا بیان ډېر عجیبه او مبالغه امېز دے ـ ځکه چې دارالشکوه د سموګړهـ په جنګ کښې شکست نه وروستو په تېښته او فرار وو ـ او اورنګزېب ئې په تعاقب وو ـ د آګرې ، دهلی یا لاهور نه پېغام رالېږل او بیا د پېغام د جواب انتظار دارالشکوه دپاره څنګه

---

[1] تاریخ مرصع ، ص ۲۲۵

ممکن وو ـ او بیا دا پېغام ئې د اټک فوجدار حاکم پېښور یا صوبیدار کابل ته ولې نهٔ رالېږلو ـ او کهٔ داراشاه هډو په دې طرف راغلے هم وے ـ نو د چا څهٔ جرات وو چې هغه ئې را ایسار کړے وے ـ

د تواریخی واقعاتو شکل مسخ کول ، خپل پلؤ راړول او خان بې گناه او برتر ثابتول د افضل خان فن او هنر دے ـ چې د تخت نشینۍ د وراثت د جنګ دوران خوشحال خان په ډېر کمال او استاذۍ غېر جانبدار منصبدار ښائ ـ حالانکې خوشحال خان په هره موقعه د خپل محسن شاه جهان په مدح او صفت نهٔ مړېږی ـ او د هغه اورنګزېب مذمت او غندنه کوی ـ څوک چې د تواریخ په اوراق او صفحات د یو پاکباز غازی محی الدین مجاهد او اسلام پرور بادشاه په نوم شهرت لری ـ او بیا په داسې وخت چې شاه جهان ژوندے وو ـ او د خپل منظور نظر زوئے دارالشکوه د بادشاهت په حق کښې وو ـ ولی عهد ئې مقرر کړے وو ـ او بیا په تېره تېره د هغهٔ په امداد کومک او مرستې د آگره په قلعه کښې بندیوان شوے وو ـ او د هغهٔ نامدار سپه سالاران او منصبداران د بادشاه په خاطر ګډ وډ ، سر په صحرا او په تېښته مجبور وو ـ

شاه جهان غوندې بادشاه په بند بندی کړې
په اورنګ باندې خطاب د محی الدین ږدې

قــدردان زمــا د کــار شاه جهان وو
د اورنګ بادشاه ښکاره دے خود احوال

زۀ د شاه جهان بادشاه دننه د زړۀ سر ووم
چار مې اورنګ زېب په نادانۍ کړله برهمه

د هــغــه دور بــادشاه وو
قــدردان شــاه جــهــان

او د اورنګ زېب په مذمت وائی :-

تفاوت د خپــل پــردی وربــانــدې نشته
کۀ ئې ګورې اورنګ زېب بادشاه ګمراه دے

د اورنګ بــادشاه پــه دور آرام نشته
چا وئېل چې جهان ځائے د آرام ګاه دے

اورنــګ شــاه وتــه نظر کــړه
چې یو څۀ خونی خونخوار دے

د صمصام الدوله شاه نواز خان د ماثرالامراء د بیان مطابق د سمو ګړهـ د جنګ نه وروستو د خوشحال بېګ کاشغری باقی حالات معلوم نۀ دی ـ معلومېږی چې دارالشکوه څخه سم خوشحال خان ،

خوشحال بېګ یا خوشحال بېګ کاشغری هم د جنګ د میدان نه فرار شو ـ خپل وطن ته راورسېدو ـ چرته چې هغه د مغل له اړخه د خټکو خان مقرر وو ـ هغهٔ لکه د نورو ډېرو منصبدارانو خپله وفاداری بدل نکړه ـ او د خپل ماتحت علاقې بندوبست ئې لکه د مخکښې په شان جاری وساتهٔ ـ اګر کهٔ هغه اوس د اورنګزېب حکومت دوران په منصب مقرر نهٔ وو ـ ولې د صوبیدار کابل مهابت خان څخه ئې تعلقات او مراسم ښهٔ او سم وو ـ نو هغهٔ په دهٔ هېڅ غم غرض نهٔ ساتهٔ ـ بل پلؤ مهابت خان هم په مرکز کښې د اړی ګړی او د شهزادګانو وراثتی جنګ دوران شش و پنج کښې وو ـ چې د مرکز نه په لرې علاقه کښې پروت دغه منصبدار صوبیدار خپل د وفاداری اظهار د کوم شهزاده حق کښې اعلان کړی ـ

۱۶۵۹ء \ ۱۰۶۹هـ کښې د دارالشکوه قتل ۱۶۶۱ء \ ۱۰۷۲ هـ کښې د مراد بخش قتل ـ د شهزاده محمد سلطان بن اورنګ زېب د شاه شجاع په حمایت ګرفتاری د نوو منصبدارانو تقرری او د ډېرو زړو منصبدارانو تنزل او نور ډېر سیاسی او انتظامی اصطلاحات اورنګزېب مصروف وساتهٔ ـ

خوشحال بېګ ددې افراتفری او د بادشاهی انتظامی معاملات کښې مصروفیت نه فائده واخسته ـ د یوسفزو په علاقه یې

تاخت و باخت جاری وساتهٔ - چې مرکز ته تاثر ورکړی چې ددې سیمې انتظام د خوشحال خان نه علاوه مشکل او نا ممکن دے -

اورنګزېب چې ۱۶۵۹ء ۱ ۱۰۶۹هـ کښې ځان بادشاه اعلان کړو - نو هغهٔ یو اهم حکم جاری کړو - د کوم ترمخه چې د خوراک څښاک په څیزونو د راهداری د باج ممانعت وو - چې د عام عوام د فائدې دپاره وو - ولې خوشحال خان د مرکزی حکومت ددغه واضح احکامات باوجود د خوراک څښاک او غلې په نقل و حمل باج اخېستو - چې د عام خلقو د تکلیف او ګرانی باعث وو -

ذکر انعام عام حضرت شهنشاهی و بخشیدن باج غله و دیگر اجناس حاصل راهداری کل ممالک محروسه :-

" و در این ایام به اقتضائے اکرام عام ، محصول راهداری از رسد غلات و دیگر اشیاء و اجناس که قبل از این همیشه گرفتن آن در محال خالصات معمول بود و داخل جمع گشته بخزانه عامره میرسید در مواضع تیول و اقطاعات و جاگیرات امراء و منصبداران و حدود زمینداری ها در وجه تنخواه جاگیرداران محسوب بود و خزاین موفور و گنج هائے معمور از وجوه آن سرانجام توانستی نمود به محض تفضلَ بادشاهانه برسبیل دوام معاف فرمودند ـ و این معنٰی سرمایه عیش و رفاهیت خلائق گشت ـ چنانچه به این جهت از سرکار خالصه شریفه هر سال مبلغ بیست و پنج لک روپیه بخشیده شد ـ و آنچه از کل ممالک محروسه معفو گردید ـ محاسب و هم مستوفی اندیشه از عهدهٔ ضبط تعداد آن

بیرون نتواند آمد ـ و در این باب مناشیر مطاعه ، موشح بتاکید شدید و قدغن بلیغ ، بنام متصدیان هر صوبه و سرکار و فوجداران و کروریان اطراف و اقطار بطفرائے نفاذ پیوست و گرز برداران یسا ولان و احدیان برائے رسانیدن این احکام کرامت نظام و تقدیم مراسم منع و تاکید حکام به همه صوبجات معین گشتند [۱] "

ترجمه :- او هم دغه دوران عوام څخه د مهربانۍ په غرض په غله او نورو څیزونو په رسد راهداری او محصول ختم شو ـ چې حکومت مخکښې اخېستو ـ او خزانه ئې ډکوله ـ د جاګیر زمکې کلی د امراء ؤ منصبدارانو جاګیرونه چې د یو جاګیردار تنخواه وه ـ او د حکومت خزانه او دولت وو ـ د خلقو د خېر ښېګړې او خوشحالۍ دپاره بادشاه معاف کړل ـ او د سرکار د خزانې نه پنځوس لکه روپۍ بخشش شوې ـ د هر صوبې متصدیانو سرکار فوجدارانو او احدیانو ته ددې محصول د ممانعت سخت احکامات جاری شول" ـ

۱۶۶۲ء/۱۰۷۲ هـ کښې اورنګ زېب د کابل د صوبیدارۍ نه مهابت خان معزول کړو ـ او د هغهٔ په ځائے یې خپل یو وفادار اوخاص معتمد منصبدار " نوکران دلسوز " سید امیر خان خوافی مقرر کړو ـ ۱۶۶۳ء / ۱۰۷۳ هـ کښې چې اورنګ زېب د کشمیر نه واپس لاهور ته راورسېدو ـ نو د کابل صوبیدار امیر خان خوافی د بادشاه خدمت

---

[۱] مراة العالم از بختاور خان . ص ۱۷۰

کښې حاضر شو ـ او بادشاه ئې د صوبې د حالات و واقعات نه خبر کړو ـ چې په دغه کښې يو عرضداشت د خوشحال بېګ د سياسی سرګرمو او د باج د ممانعت خلاف ورزی وه ـ چې د خپل ذاتی مفاد په عوض ئې بادشاه ته مشکلات پېدا کول ـ نتيجه دا شوه چې اورنګ زېب هغهٔ ته د خوشحال بېګ د ګرفتاری اجازت ورکړو ـ او ۱۶۶۴ء \ ۱۰۷۴هـ کښې امير خان د خپل نائب حاکم پېښور مرزا عبدالرحيم په وساطت پېښور کښې ګرفتار کړو ـ او د ملک مستجاب خان او شاهی دسته په نګرانی کښې ئې دهلی ته ورسوؤ ـ او دغه ځائے نه د راجپوتانه قلعه رنتهمبور ته منتقل شو ـ او بنديوان شو ـ

په فلک باندې د هيچا حکم نشته
چې ئې ظلم ستمونه انقلاب کښم

د آګرې په کوټ کښې بند شاه جهان دے
د دارا به هغه کوم فانی جناب کښم

خراب شوی د فلک له لاسه ډېر دی
اوس به حال د کوم يوۀ خراب کښم

حاسدان مې په حساب لکه کلاب دی
حيف نۀ دے چې به جور د کلاب کښم

ما خوشحال پــه خــوب دا حال نهٔ وو لیدلے
چې به دا د غــم بــښــتونــه په پنجاب کښم

یا

بندیوان یې اورنگ زېب لــــره روان کړم
ننداره مې پـــه هر ښار په هر سرائے ده
په هر ځائے مې په څوکی راځی فوځونه
دبــــدبــــه مې د مزری یا د همائے ده

یا

شېرازی کهٔ ښهٔ خــوراک وو واؤره تېر شو
ملوکی کهٔ ښهٔ پــــوشاک وو واؤره تېر شو
کهٔ منصب وو کـــهٔ خانی کهٔ سرداری وه
کهٔ په لاس ملک و املاک وو واؤره تېر شو
فـــرش فـــروش نقش و نــگار د محلونو
کـــهٔ بستر مې عطرناک وو واؤره تېر شو
خپل پـــــردی نېکان بدان له هره لوریه
په دربار مې بـــه بلغاک وو واؤره تېر شو

# اوس سوال دا پېدا کېږی

چې خوشحال خان د شاه جهان د دربار منصبدار خوشحال بېگ کاشغری نهٔ دے ـ نو بیا خوشحال خان څوک دے ـ چې د اکبر اعظم نه پس د پښتون قوم کټر دشمن شاه جهان وفادار دے ـ او د هغهٔ په مدحه او تعریف او د اورنگ زېب شان پرهېزگار بادشاه په غندنه او بدو ردو نهٔ ستړے کېږی ـ دغه خوشحال خان څوک دے ـ چې شاه جهان او د هغهٔ شهزاده زامنو څخه ئې براه راستَ ملاقات او لیدل کتل وو ـ چې د یو معمولی ورکوټی منصب خاوند کار نهٔ وو ـ او بیا ۱٦٤۵ء \ ۱۰۵۵هـ د یو قصیدې دا دوه شعرونه څهٔ معنٰی لری :-

د بادشاه د خاص و عام به څهٔ تعریف کړم
و خوابگاه وته یې عقل په حېرت وو
چې به جوړ د شاه جهان بادشاه دربار شو
په دربار کښې به ئې دوه اویا ملت وو

" بادشاه خان علین مکان د ډکې نه د بنجاره ؤ په خدمت رخصت کړهٔ ــــــــ په وخت د رخصت ئې د یوسف زو له حقیقته ویوښتېدهٔ ــــــــ بادشاه ووې چې د تا د یوسفزو سره

ه کومه غلیمی ده ------- بادشاه په تخت روان کښې ناست
ررو ورو تهٔ ـ خان علین مکان په جلو کښې تهٔ --------- خان
علین مکان او میر بخشی سره ناست وو -------- بادشاه د
توپچیانو پوښتنه وکړه ـ خان ووې توپچیان کم لرم ------- خان
علین مکان بادشاه له شمس اباد نه را وجاروېست -------
محمد امین خان خلوت ته تنها خان علین مکان وبالهٔ -------
۱۰۸۳هـ کښې لښکر د محمد امین خان په خېبر کښې ډوب شهٔ ـ
زهٔ او مستجاب دواړه ورسره وو -------- مهابت خان د دهلی
نه را روان شو ـ پیاپے مالره یې کښل راستول ------ زه یې
خلوت لره وبللم ------ بهادر شاه په غریب خانه ورغے ـ خان
علین مکان یې ملازمت وکړو ـ بغل گیری یې ورسره وکړه ------
په وخت د رخصت یو اس یو سروپا ، یو مرصع کمر خنجر دوه زره
روپی بهادر شاه ورکړې[۱] "

هر گاه چې بادشاه بهادر خان او اصالت خان په مهم د
تارا گړهـ تعین کړل ـ خان علین مکان یې هم وبالهٔ ـ له قبیلې او له
قومه اولسه سره ورغے -------- ماته بهادر خان ووئېل چې
خوشحال خانه ! کهٔ کومک د ما د عالمو وکړې -------- خان

---

۱ اقتباسات از تاریخ مرصع ـ ص ۲۷۸تا ۳۴۸

علین مکان هم په ملازمت د بادشاهزاده ( دارالشکوه ) مشرف شو - ---- اصالت خان او بهادر خان یو ځائے ناست وو - اغاز یې د ګیلې او د شکوې وکړو -------- اصالت خان په دیدن د خسرو سلطان روان شو - زۀ هم ورسره ووم ----------- اصالت خان زۀ وبللم --------- اصالت خان زۀ په ملازمت د شهزاده وروستم ---------- بنده هم د اصالت خان سره سور شۀ ------- خان علین مکان اصالت خان سره ناست وو - ---------- چې تر اټک بهادر خان راپورې شۀ ------------ خان علین مکان سره په سرائے کښې یې ډېره وکړه - مېلمه یې شۀ[1] -

" په وخت د رخصت قلیج خان . خان علین مکان دربار ته وبالۀ --------- قلیج خان ته بادشاه د خان علین مکان د باب کښلی وو - چې د خوشحال په خصمانه وسه[2] "

" خان دا واقعه یو څو ورځې پس په هر لوری شهزاده ته و امرایانو ته وکښه - سعدالله خان او خلیل خان لره یې هم وکښه[3] "

" خان یې هم چې میر یعقوب سره ئې ډېر اخلاص وو[4] "

---

1 اقتباسات از تاریخ مرصع . ص ۲۰٦ تا ۲۱۸

2 تاریخ مرصع . ص ۲۸٦

3 تاریخ مرصع . ص ۲۸۸

4 تاریخ مرصع . ص ۲۸۹

دا هغه خوشحال خان دے چې د مغل حکومت د دربار لوئے لوئے امرایانو ،سردارانو ، حاکمانو او منصبدارانو څخه يې تعلقات او مراسم وو ـ او بلا روک ټوک او بنهٔ په زړهٔ ورتيا ورڅخه ملاوېدو ـ چې د يو معمولی منصبدار کار نهٔ وو ـ ولې بيا هم د هغهٔ نوم د منصبدارانو په فهرست کښې شامل نهٔ دے ـ آيا داسې ممکن ده ـ د تاريخ مرصع او کليات خوشحال خان خټک په صفحات د قليج خان ، سعدالله خان ، خليل خان ، مهابت خان ،امين خان بهادر خان ، اصالت خان ، شمشېر خان حيات ترين ، علاول خان ،مير يعقوب ـ

او د نور ډېر اعلیٰ او اوچت مغل منصبدارانو څخه دوستی ، ارشه درشه او حکومتی امور کښې د شرکت او شموليت ذکر بنائ ـ چې هغه د مغل سرکار يو غټ اعلیٰ عهدېدار وو ـ او دغه منصبدار خوشحال خان د خوشحال بېګ کاشغری نه بل څوک کېدے نهٔ شی

د خوشحال خان نوم څخه خان اعزازی خطاب دے ـ چې د پښتنو په معاشره کښې د يو مشر دپاره عام مستعمل دے ـ بېګ د خوشحال خان نسلی او کاشغری قبيلوی او قومی تفخر دے ـ

خوشحال خان د " خان " کلمه خپل نوم څخه کهٔ يو اړخ د قافيه رديف د استعمال اسانتيا دپاره راوړی ـ نو بل پلؤ هغه چې د کوم قام مشر او خان وو ـ ددغه پښتون قوم د نومونو څخه د "خان"

د کلمه استعمال عام معمول دے ـ ځکه خو د هغهٔ اولاد هغه د "خان" په نوم مخاطب کوی ـ

خټک قبیله کښې د خان تصور نشته ـ البته دوئ کښې اوس هم " ملک " اعزازی قومی خطاب دے ـ د خوشحال خان زامن نمسی هغه د " خان " په خطاب مخاطب کوی ـ

دا غـــزل پـــه پښتو ژبه چې بیان عبدالقادر کړو
دروغژن یم کهٔ بې خانه وائ بل یو پښتون هسې

کامګار خان وائ :-

دا غزل چې کامګار ووې په پښتو کښې بې له خانـه
له دا هسې کښلی نهٔ دی هیڅ شاعر پخپل دیوان یو

کاظم خان شیدا وائ :-

چې قلم په لاس د خان شو
مـــرتب ئې لوئے دیوان شو

افضل خان د خوشحال خان په حواله لیکی :-

" زهٔ په صلاح د اولس "خان" شوم[۱] "

---

تاریخ مرصع . ص ۲۰۶

# تبصره

---

د پښتنو قتل و غارت ، د یوسف زئ تباهي او بربادی او د هغوئ په زمکو تصرف ، د غوریا خېلو په علاقه بلوسېدل د مغل حکومت پالیسی وه - چې دواړه لویو قبیلو نه د بیر بل او د سید حامد بخاری د قتل بدل واخلی - او خپل رعب او دبدبه د پېښور په سیمه قائم وساتی - د مغل نه اکاهو د تجارتی قافلو د محفوظ امد و رفت او حمل و نقل ذمه واری د هندو کابل حکومتونو په سر وه - خو هر کله چې اکبر اعظم بادشاه شو - نو هغهٔ په اول ځل ۸۹-۱۵۸۷ء کښې د دریائے سندھ او د کابل تر مېنځ په لویه شاهراه سرائے او څوکی تعمیر کړې چې د وسط ایشیا او هندوستان تر مېنځ د تجارت بندوبست محفوظ شی - وائ چې ددغه سرایو او څوکو د نګهبانی دپاره چې کوم تکړه منتظمین مقرر شول - نو په دغه کښې یو نګران انور خان المعروف اکوړ خان هم وو - چې د هندوستان نه راغلے وو- او دلته ئې اکاهو نه د لوټ مار او رهزنی بازار ګرم کړے وو - د اکوړ خان نه پس یحیٰی خان او شهباز خان په دغه عهده مقرر وو - خو ۱۶۴۱ء ا ۱۰۵۰ھ کښې چې شهباز خان وفات شو - نو د هغهٔ په ځائے د هغهٔ ځوانمرد زوئے خوشحال خان مقرر شو - د

خوشحال خان تقرری څخه سم شاه جهان بادشاه ته د تارا ګړهـ د راجه جګت سنګهـ بغاوت پېښ شو - او خوشحال خان هم د مغل عسکری قوت څخه د سید اصالت خان په وساطت شامل شو - او د خپل جراتمندانه صلاحیت په بناء یې د راجه خلاف په مهم کښې د بهادری داد حاصل کړو - او بادشاه په قسما قسم نوازشات انعام و اکرام او اضافی منصب ونمانځلو - د بلخ و بدخشان مهمات یې د مزید ترقی باعث شول - د بادشاه منظور نظر شو - او د مغل منصبدارانو په ډله کښې یې اهم مقام حاصل کړو -

" خوشحال خان له خپله لښکره سره ورغے[1] "

" چې زهٔ ئې ولیدم ( بهادر خان ) راته وموسید - چې خوشحال خانه تاسو هم راغلئ[2] "

" خان علین مکان هم په ملازمت د بادشاهزاده (دارالشکوه) مشرف شو - - - - - - - بنده له ښهٔ جمعیته هم سوارهٔ هم پیاده ورسره وو - - - - - - - - بنده هر اول وو - له قومه د هزاره مقابل شو - - - - - - - - - - خپل لښکر مې هورته پرېښودو - - - - - - - - - زر

---

1 تاریخ مرصع . ص ۲۰۶

2 تاریخ مرصع . ص ۲۰۷

کسه سوارهٔ او پیاده په ما هم مقرر شول ــــــــــ او نهٔ زره روپی له خاصه سرکار په وجه د خرڅ و ماته عنایت شوې[1] "

" زما هر چې سوارهٔ پیاده وو ـ قریب د زرو کسو وو[2] "

" چې خان علین مکان د رحمت خان سره کابل ته ورغے ـ بادشاه ته یې مجرا او ملازمت وکړو ــــــــــ بادشاه سروپا ورعنایت کړو[3] "

د افضل خان دا او داسې نور بیانات د مغل حکومت د یو اعلیٰ عهدېدار او منصبدار متعلق ممکن دی ـ او دې کښې هېڅ شک و شبهہ نشته چې خوشحال خان د شاه جهانی دور لوئے منصبدار وو ـ هغهٔ نهٔ یوازې دا چې لویه شاهراه محفوظ کړه ـ بلکې د مغل عسکری قوت او خپل اهلکارو په ذریعه ئې د دریائے کابل په شمالی غاړه مېشتهٔ یوسف زی ملک بدر کړل ـ د هغوئ په ډېره علاقه ئې خپل تسلط قائم کړو ـ هغهٔ د مغل حکومت په لمسون او ایماء د پښتنو او په تېره تېره د یوسف زو وینې لکه د اوبو وبهېولې ـ او د مغل د داد او شاباسی د حصول په غرض ئې د هغوئ د کوپرو مینارونه جوړ کړل ـ

---

1 تاریخ مرصع . ص ۲۰۸

2 تاریخ مرصع . ص ۲۱۲

3 تاریخ مرصع . ص ۲۸۰





دا هغه زمانه وه چې د یوسف زی قبائل قیادت د بهاکو خان غوندې تکړه او بهادر انسان په لاس کښې وو - او ښهٔ مردانه وار یې د خوشحال خان او د مغلو د جابرانه دهشت ګرد حکومت مزاحمت وکړو - د منصبی دور دوران خوشحال خان د یوسف زو کافی علاقه قبضه کړه - او دغلته ئې خپل حواریان چې په دغه کښې د هندوستان نه راغلی تور شکلی هندیان هم شامل وو - اباد کړل - او دغسې د شېخ ملی د وېش برعکس د یوسف زی او غوریا خېل په علاقه د خټک او هندی نژاد خلقو په امتزاج درېم قوت وجود بیا موندو - او مغل حکومت دپاره د دریائے کابل په شمالی او جنوبی دواړه اړخ شاهراه محفوظ شوه -

د خوشحال خان د منصب متعلق تاریخ مرصع دوه ځایه ذکر راوړی - یوه برخه هغه ده چې د هغهٔ د لاس لیکلی بیاض کښې درج دی - دوېمه برخه هغه ده - چې د تارا ګړهـ او بلخ و بدخشان د مهماتو نه علاوه د خوشحال خان د یوسف زئ ، امازئ کمال زئ ، اکوزئ او مندڼ څخه د جنګونو ذکر هم پکښې موجود دے - چې د تارا ګړهـ او بلخ و بدخشان په مهمات کښې د اعلیٰ خدمات په صله کښې د اوچت منصب د حصول نه پس شروع کېږی - او د مغل عسکری قوت په پشت پناهی او کومک د دریائے کابل په شمالی غاړه اباد یوسف زی مندڼ باندې خپل ابائ تاتوبے

سوْر تنور کړی ـ په هجرت ئې مجبور کړی ـ او دغلته خپل مرستیال اباد کړی ـ

د تاریخ مرصع په دې دوېمه برخه کښې د هزار خانی د شېخ عثمان حاکم پېښور ذکر زمونږ د حېرانی باعث دے ـ ځوک چې خوشحال خان نهٔ پېژنی ـ حالانکې شېخ عثمان د جهانګیر بادشاه د زمانې راسې د پېښور حاکم وی ـ

یـــو کس ئې پــــه نـظـر کښېوت

چا وې چې دا شېخ عثمان دے[1]

دا هغه شېخ عثمان دے چې د غوریا خېل د داؤدزئ قبیلې د زمکو دپاره یې په اول ځل د دریائے کابل نه یوه ناله وکنسته ـ چې وروستو د " شېخ ولې " په نوم ئې شهرت بیا موندو ـ ددغه حاکم متعلق خوشحال خان رائے لری :-

" شېخ عثمان هسې مکار عیار دے " ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـــ شېخ عثمان هغه برعکس ظاهر کړی وو ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ شېخ عثمان غمازی کړې وه[2] "

تاریخ مرصع لیکی چې مهابت خان د شاه جهان د ناروغی نه لږ وړاندې ۱۶۵۸ء \ ۱۰۶۸هـ کښې دوباره د کابل صوبیدار مقرر

---

[1] تاریخ مرصع . ص ۲۸۱

[2] تاریخ مرصع . ص ۲۸۶ و ۲۸۸

شو ـ نو د هغهٔ په حکم میر یعقوب دیوان د تیراه د افریدو او اورک زو په مهم مقرر شو ـ چې خوشحال خان هم ورسره وو ـ دا واقعه د ۱۶۶۰ء \ ۱۰۷۰هـ ده ـ او دغه زمانه د تخت نشینی د وراثت جنګ مکمل ختم نهٔ وو ـ د مهابت خان د صوبیداری مستقبل غیر محفوظ وو ـ بادشاهی لښکر د تذبذب ښکار وو ـ او په هیڅ حساب نهٔ پوهېدل ـ داسې حالات کښې په تیراه فوج کشی د کوم مصلحت تحت وه ـ

د افضل خان ۱۶۴۹ء \ ۱۰۵۹هـ نه تر ۱۶۶۰ء \ ۱۰۷۰هـ پورې د خوشحال خان د منصبی ژوند متعلق خاموشی څهٔ معنی لری ـ دغه د هغهٔ د ځوانی او مهم جویی اصلی وخت وو ـ خو تاریخ مرصع د بهادر خان داؤدزی د قندهار د اولنی مهم دوران د خوشحال خان له اړخه د هغهٔ د مېزبانی نه وروستو څهٔ خاص قابل ذکر واقعه نهٔ بیانوی ـ البته دخوشحال خان د بیاض په حواله دغه کال نه یو ځل بیا منقطع سلسله د بهاکو خان خلاف د اشرف خان و بهرام خان او سعادت خان د کامیابو د ذکر نه شروع کېږی ـ او د ۱۶۶۲ء \ ۱۰۷۲هـ و ۱۶۶۳ء \ ۱۰۷۳هـ دوران هم د بهاکو خان او شمشیر خان خلاف د فتوحات ذکر کوی ـ د بنګش خلاف مهم

جوئ ښائ ـ چې د دوست محمد خان کامل مطابق دغه جنګونه د ۵۴ – ۱۶۵۲ء/۶۴ – ۱۰۶۳هـ تر مېنځ زمانه کښې واقع شوی دی[1] ـ

افضل خان وړاندې لیکی :- چې عالمګیر په تخت کښېناست ـ مهابت خان یې صوبېدار د کابل کړو ـ اوس به ذکر د خان علین مکان د قېد او د اورنګزېب په تخت ناستے بیان شی[2] "

د اورنګ زېب په آګره کښې په ۱۶۵۹ء \ ۱۰۶۹هـ کښې د بادشاهت د اعلان دوران مهابت خان بدستور د کابل صوبېدار وو ـ ۱۶۶۲ء \ ۱۰۷۲هـ کښې معزول شو ـ او د هغهٔ په ځائے سید امیر خان خوافی مقرر شو ـ مهابت خان په درېم ځل ۱۶۶۸ء \ ۱۰۷۸هـ کښې د کابل صوبېدار مقرر شوے وو ـ

سید امیر خان خوافی د اورنګ زېب بادشاه هغه وفادار جرنېل وو ـ ځوک چې د دارالشکوه شکست خورده فوج پسې په تعاقب تر بهکر راغلے وو ـ

---

1 خوشحال خان خټک ، ص ۶۴

2 تاریخ مرصع ، ص ۲۹۱

# خان

---

د " خان " لغوی معنٰی ده - د قبیلې سردار ،. مشر ، عزتمند ، مالدار ، طاقتور ، سخی[1] "

دا د عزت خطاب وو - چې د ډېر کم خاصو کسانو په نصیب وو - په اصطلاحی معنو کښې هغه سړے خان دے چې د چا دستر خوان وی - مهمان نواز او د سړیتوب خاوند وی - زور طاقت لری - خو دغه زور طاقت د کمزوری د امداد او د مظلوم شریف او غریب د خېر او فائدې دپاره وی -

ترجمه :- د خان لفظ " کاغان " نه ماخوذ دے - چې عربو پخپله لهجه کښې خاقان کړو - دا د ترک النسل " غزر " ، " توغز " او "غز" حکمرانانو خطاب وو[2] -

ترجمه :- د ترکی ژبې لفظ " کاغان " د ترک نژاد شاهانو لقب وو - چې عرب په خپله ژبه کښې د " خاقان " په نوم تحریر او مشهور

---

1 دریاب . ټیکسټ بک بورډ پشاور ص ۵۹۹ . چاپ کال ۱۹۹۴ء

2 Al- Biruni The Chronology of ancient nations,, Page 109

کړو ـ خان یا قان د کاغان یا خاقان مخفف دے ـ چې مونږ ئي په وړومبی ځل د خراسان د بادشاه " ایلک خان " په سیکو او ددغه وخت په کتابونو کښې وینو[۱] "

په څلورمه صدی عیسوی کښې چې په منګولیا د اوراس خاندان حکومت قائم کړو ـ نو ددې خاندان مشر ته به یې کاغان یا خان وئیل ـ دغه زمانه " هُن " د دوئ محکوم قوم وو ـ خو کله چې دوئ " هُن " دغه ملک نه وشړل ـ نو هُن دغه نوم ځان سره نورو ملکونو ته یوړو ـ او چې وروستو تُرک د منګولیا نه راووتل نو هغوئ هم ځان سره دلته دا لفظ ډیر زیات استعمال کړو[۲] ـ

" د تبت بادشاه د خاقان یا کاغان په نوم شهرت لرلو[۳] "

د منګولیا د قراقرم ریاست یو معمولی سردار تموجین (منګول اعظم چنګیز خان) چې خپل هم قوم قبائیل سره ۱۲۵۰ء \ ۶۰۱هـ کښې په جنګ و جدل کښې کامیاب شو ـ د سُنګ خاندان شهنشاهیت ئي ختم کړو ـ او ۱۲۲۱ء کښې د ترکستان د محمد خوارزم شاه په علاقه هم قابض شو ـ نو د " خان " لفظ لوئے عمومیت حاصل کړو ـ خو حقیقت دادے چې د چنګیزیانو برعکس

---

1 دائرة المعارف اسلامیه ، جلد اووم ، ص ۸۳۸

2 پټهان ـ اولف کیرو ، ص ۱۲۷

3 دائرة المعارف اسلامیه . جلد څلورم . ص ۹۳

د " خان " تصور د غور غرونو کښې بند پښتنو کښې اګاهونه موجود وو ـ او هر قبیلوی مشر " خان " یادېدو ـ تاریخ ښائ چې ۱۰۰۱ء تا ۱۰۲۶ء د پاک و هند په سیمه د اولس(۱۷) حملو دوران محمود غزنوی د پښتنو دولس زره لښکر دولس ملکان عارف، داؤد، محمود، یحیٰ غازی، شاهو، خانو، مامو، احمد، سلېمان، کمال او بهرام ـ

د " خان " په خطاب ونمانځل ـ د تواریخی شواهداتو مطابق د خان خطاب د اراکوسیا، الرخج یا ارخلج پښتنو خپل کړے وو ـ او د پښتنو د دولس ملکانو دې نیمګړی نومونو سره به ضرور د "خان" کلمه شامل وه ـ شهاب الدین محمد غوری ۱۱۷۳ء تا ۱۲۰۶ء په وړومبی څل د پاک و هند سېمو کښې متعارف کړه ـ

,, بوسورتھ! مورخ کے مطابق کابل پر ہندو شاہیہ راجہ حکمران ہے ـ اور غزنی میں اس کا بھتیجا لویک حکمران ہے ـ لیکن یہ حکمرانی صرف شہر کابل اور شہر غزنی تک محدود ہے ـ آس پاس کے قصبوں میں افغان قبیلوں کے الگ الگ ملک اور خان اپنے اپنے تپوں اور خیلوں کے ساتھ ازاد حیثیت میں زندگی بسر کررہے ہیں ۲ ـ ,,

د علاؤ الدین خِلجی ۱۲۹۶ء تا ۱۳۱۶ء د دوه ورونو نومونه ظفر خان او اُلغ خان وو ـ دا ظفر خان وو چې ۱۳۰۸ء کښې یې

---

1 The struggle with Ghori and the last Ghaznavide sultans Journal of Persian study . vol : 6 , 1966 .

2 تاریخ نامه از محمد حسن خان خلیل . ص ۴۱

منګولیانو ته شکست ورکړو ـ د علاؤالدین خلجی د سلطنت دوران د " خان " حېثیت د یو لوئے سپه سالار یا جرنیل وو ـ

The Army was organized on a decimal basis . A Sar Khail had ten horsemen under him . A Sipah Salar had ten Sar khails under him . An Amir had ten Sipa Salars under him . A Malik had ten Amirs under him . A Khan had ten Maliks under him[1] .

ترجمه :- عسکری نظام په عشری بنیاد وو۔ د سر خېل تحت لس سوارۀ د سپه سالار ماتحت لس سرخېلان د امیر تحت لس سپه سالاران د ملک تحت لس امیران او د " خان " ماتحت لس ملکان وو

د علاؤ الدین نه اګاهو د محمد غوری فوجی نظام هم په اعشاریه بنیاد قائم وو ـ

,, پھر شھابی منصوبہ جنگ کے مطابق دس دس ہزار افغانوں پر ایک کمانڈر مقرر ہوا ۲ ،،

,, اودھ سے جرنیل بختیار دس ہزار افغان لشکر کے ساتھ مگدھ کے لئے روانہ ہوا ۳ ،،

د مؤرخینو یوه لویه ډله د " خان " لفظ د چنګیز خان د کابل و غزنی د تصرف نه وروستو دلته قابل استعمال بنائ ـ او وائ چې دا منګولیائ او ترکی کلمه ده ـ خو حقیقت داسې نۀ دے ـ د "خان " لفظ د تاتاریانو د حملو او قبضو نه اګاهو مروج وو ـ د منهاج سراج د طبقات ناصری مطابق :-

---

1 The sultanate of Delhi by V . D Mahajan Page 334

۲ تاریخ نامه ، محمد حسن خلیل ، ص ۱۱۶

۳ تاریخ نامه ، محمد حسن خلیل ، ص ۱۶۹

۱ـ د ما ورالنهر د سمر قند د بادشاه نوم ملک محمد خان وو ـ چې سلطان سنجر بن ملک شاه ورته شکست ورکړے وو ـ ص ۴٦۲

۲ـ د ملک ایلک ورور قدر خان د ماورالنهر حکمران وو ـ ملک ایلک خان حاکم بخارا او کاشغر وو ـ او د محمود غزنوی سخر وو ـ

۳ـ ارسلان خان د خراسان حاجب او د محمود غزنوی معتمد وو ـ ص ۴۴۲ ـ

۴ـ د خراسان ملک الجبال الُغ خان ابی محمد د گرزوان (هرات) خان وو ـ ص ۵۳٦

۵ ـ ملک خان حاکم هرات وو ـ ص ٦۷۷

٦ ـ ملک امیر حاجب خان د شهاب الدین محمد غوری مشیر وو ـ ص ۷۱۸

۷ ـ غاشر بقا خان د ایغور رئیس وو ـ

۸ ـ قولیج خان د خطا فرمان روائے سلطنت وو ـ ص ۵۵۷

۹ ـ بغرا خان والیي کاشغر وو ـ

۱۰ ـ د شمس الدین التمش د پلار نوم ایل خان وو ـ ص ۷۸۳

۱۱ـ ملک تیر خان سنجر ص ۸۵۹ ، طغرل البر خان ، ملک خان خلجی ص ۷۴۵ ، ملک عزیز الدین کبیر خان ص ۷۹۸ ، سردار کزنک خان ص ٦۴۴ ، قتلغ خان ص ۸۱۰ عام نومونه دی ـ

د چنگیز خان نه اګاهو د طبقات ناصری په صفحات ځینې کسان د خان اعظم په خطاب موجود دی ـ لکه خان اعظم ګور خان ( د غور خان ) ص ۵۵۸ یا خان اعظم باریک اېبک ص ۸۵۸ ـ

د سلطان ناصر الدین محمود ۱۲۴۶ء بن شمس الدین التمش د دربار د ځینې سردارانو نومونه لکه عزالدین طغرل خان طغان خان حاکم لکهنوتی ( بنګال ) الملک الکبیر قراقش خان حاکم لاهور کشلو خان حاکم سندهـ و هند ، شېر خان حاکم اودهـ ، تمر خان حاکم کهرام وغېره طبقات ناصری ص ۸۳۸ ـ

د غیاث الدین بلبن ۱۲۶۶ء تا ۱۲۹۰ء ځوئے او ګورنر پنجاب شهزاده محمد چې ۱۲۸۵ء کښې منګولیانو سره جنګ کښې شهید شو ـ نو دخان شهید په نوم یاد شو[1] ـ

بادشاه روم را قیصر ، و بادشاه ایران را شاه ، و ترکستان را " خان میگویند "[2]

د پښتنو متعلق تاریخونه د غېر پښتنو لاس لیک دی ـ چې زیات تر متعصبانه دی ـ زمونږ خوش قسمتی ده ـ چې د محمود غوری د سلطنت دوران پښتانۀ په سیاسی ،جنګی ، انتظامی او بادشاهی محاذ ځرګند شول ـ او جنګجویانه صلاحیت ئې دنیا ته

---

1 A short histry of Islam by S.Fayyaz Mahmud P - 267

2 دیوان سنائ از مظاهر مصفا ، ص ۲۰۴

ښکاره شو ـ د منهاج سراج طبقات ناصری د هغه وخت یو لوئے اثر او د غوری حکومت مکمل تفصیل دے ـ

د اریاالنسل قومونو معاشرتی ژوند قبیلوی وو ـ د ځان او ځاروؤ دپاره معاش او زرخېزه زمکو تلاش او حصول د جنګ و جدل او د یو مشر یا خان د غېر موجودګۍ نه بغېر ناممکن وو ـ مونږ کۀ دا ووایو چې د اریا النسل ټولو قومونو سره د " خان " لفظ مربوط وو نو بې ځایه به نۀ وی ـ البته چا متروک کړو ـ او چا برقرار وساتلو ـ ترکی او ایران د کم اهمیت حامل کړو ـ او پښتنو دومره زیات خپل کړو ـ چې د هر پښتون بلکې وروستو د غېر پښتون د نوم هم لازمی برخه شو ـ د عربی ژبې اثر په ذریعه خصوصاً د علاؤ الدین خلجی دوران بادشاهت " ملک " لفظ هم ډېر متعارف شو ـ خو د " خان " په مقابله د " ملک " ثانوی حېثیت وو ـ د مسلمانانو د اقتدار نه وروستو په شاهی دربار کښې د ایران نژاد امیرانو موجودګۍ سره د فارسی د " شاه " کلمه هم متعارف شوه ـ او د لویو امیرانو سردارانو او منصبدارانو خطابات او اعزاز وو ـ عن چې د پښتون بادشاه لکه شېر شاه ، احمد شاه ، تېمور شاه د نومونو جزو لا ینفک شو ـ امیر تیمور کۀ هر څو اریاالنسل وو ـ هغۀ خپل ځان دپاره " مرزا" خطاب خوښ کړو ـ بابر ځان د " بادشاه " په نوم مشهور کړو ـ خو د هغۀ دواړه زامنو محمد همایون او کامران د "مرزا" په خطاب مفتخر وو ـ

د مغل په ابتدائ دور کښې کۀ په شاهی سطح د " خان " اعزازی خطاب څۀ هم کم شو ـ ولې د هر پښتون امیر د افتخار نخښه وه ـ د محمد همایون د وفات نه وروستو چې اکبر اعظم بادشاه شو ـ نو هغۀ حکم وکړو چې چا سره څۀ منصب نۀ وی هغه به د " خان " اعزازی لفظ نۀاستعمالوی ـ ولې ددې حکم باوجود اکبر اعظم دې اعزاز ته ډېره وده او ترقی ورکړه ـ د اکبر اعظم نه پس د جهانګیر په بادشاهی کښې پښتانۀ په اهم عهدو مامور شول ـ او د خان لفظ لوئې وقعت بیا موندلو ـ پیر محمد خان المعروف خان جهان لودهی د هغۀ لوئې پښتون منصبدار وَو ـ د پښتنو نه علاوه شیعه او د نور اقوام عهدېداران هم د خان په خطاب مقررېدل ـ او دغسې د " خان " خطاب ډېر عام شو ـ

د خان خطاب به هغه امیرانو ته ملاوېدو ـ چې د سخت محنت عادی وو ـ او قابل قدر خدمات ئې وو ـ د خان خطاب به د نوم نـــه وړاندې یا وروستو لګېدو لکه خان حسن خان ، خان محمد خان ـ

جنګی خطاب به عموماً په دې انداز وو ـ شهباز خان ، مهابت خان ، تهور خان ، دلاور خان ، دلېر خان ، بهادر خان ، لشکر خان ، همت خان ، سیف خان ، شجاعت خان ، غازی خان ، رعد انداز خان وغېره ـ

د وصف یا خوبی خطاب داسې وو - مروت خان ، دیانت خان ، مخلص خان ،اعتماد خان ، دیندار خان وغېره -

د خان خطاب اهمیت به هغه وخت نور هم سېوا شو - چې د موصوف امیر وصفی خطاب نه به وړاندې د " خان " خطاب اضافی شو - دا خطاب به ړومبې سلاطین دهلی خپل امراء ؤ ته ورکول کوم چې مغل بادشاهانو جاری وساتلو - لکه خان اعظم همایونی ، خان جهان ، خان خانان -

د اکبر اعظم په زمانه ړومبنے خان خانان خطاب بېرم خان واخېستو - بیا د هغهٔ زوئے مرزا عبدالرحیم حاصل کړو - منعم خان اصف خان ،میر جمله ، ذوالفقار خان ، مهابت خان وغېره د خان خانان په خطاب مشرف وو - د خان خانان نه علاوه د امیر الامراء خطاب هم عام وو - علی مردان خان ، حسېن علی خان ، خان دوران ، شائسته خان وغېره امیر الامراء وو -

د مغل په حکومت کښې خان اعظم ، خان زمان ،خان جهان ، خان عالم ، خان دوران ، خان کلان ، خان معظم وغېره هم اهم خطابات وو -

د دنیا په هر گوټ او هر ځائے دا دستور دے چې څوک حاکم بادشاه فرمانروا یا د طاقت خاوند شی - نو د خپل شان و شوکت ، لوړتیا او جاه و جلال د اظهار دپاره خطابات خوښوی -

یا نور پرې پېرزو کوی ـ دا دستور زمونږ په زمانه هم رواج لری ـ لکه قائداعظم ، قائد ملت ، فخر افغان ، باچا خان ، مادر ملت ، قائد عوام ، شېر سرحد ،شېر پنجاب ، نر پښتون یا رهبر تحریک وغېره ـ ددې قسم خطابات مقصد دا وی چې ددې په ذریعه د هغهٔ د عظمت رعب او وقار په عام عوام قائم شی ـ ظل الله ، عالم پناه ، جهان پناه ، خلیفة الله ، صاحب عالم ، امیر المؤمنین ، امام ، جلال الدین ، نورالدین ، شهاب الدین یا محی الدین وغېره مذهبی خطابات وو ـ چې تعلق ئې بادشاهانو سره وو ـ امیرانو ته ددې قسم خطابات حق حاصل نهٔ وو ـ

د مغل دوران حکومت امیر خان ،فدائ خان ، جان نثار خان ،جملة الملک ، قطب الملک ، مدار الملک ، وزیر الملک ، مبارز الملک ، عزت الدوله ، اعتماد الدوله ، یمین الدوله ، اسد جنګ ، ذوالفقار جنګ ، شجاعت جنګ ، ناصر جنګ ، غالب جنګ ظفر جنګ ، فتح جنګ او نور داسې ډېر خطابات مروج وو ـ چې وخت په وخت به امیرانو سردارانو او منصبدارانو ته نوازش کېدل ـ

د " خان " په مناسبت نن د ځینې ځایونو نومونه خان ګړهـ ، خانپور ، کانپور ، خاندیش ، خانېوال وغېره مشهور ځایونه دی ـ

د انګرېزانو په زمانه حکومت د خان بهادر خطاب زمونږ په صوبه کښې رواج شو - چې د مغل په حکومت ډېر کم کسانو ته دا اعزاز حاصل وو - انګرېز د خپل حکومت په وخت هغه کسان په لوئے جائیداد او جاګیر ونمانځل چې د هغوئ امداد ، کومک او خدمات ئې خپل فرض ګڼل - هغوئ د خان بهادر نه علاوه ځینې خپـل مرستیال د خان ، ارباب ، نواب یا سردار په نوم مشرف کړل - " ملک " ئې د جائیداد مالیاتی نظام سره منسلک کړو - خو د حکومتی بندوبـست بر عکس د پښتون په معاشره کښې یو بل قسم "خان " هم شهرت لری - چې ددغه خانانو باقیات تر اوسه په ځینې زړو کلو کښې موجود دی - چې د انګرېز په حکومت کښې ورته دغه اعزاز حاصل نهٔ وو - بلکې دا به ووایو چې د مغلو په سلطنت کښې هم دوئ د خان په خطاب مقرر نهٔ وو - ولې د نامعلوم وخت نه خان خاندان دے - دا دوېم قسم عوامی خانان هغه دی چې د پښتون په معاشرتی ژوند کښې د مهم جوئی دوران د بهادری نر توب ، سړیتوب ، ښهٔ کاکردګی جنګجویانه صلاحیت او اعلیٰ ذمه واری د مظاهرې په صله خپل عام عوام د اوچت او لوړ نوم شان او جلال په منصب مقرر کړی دی - دوئ کښې هغه خانان هم شامل وو - چې د محمود غزنوی د دور یا دې نه هم وړاندې د ښهٔ کارکردګی د اوصاف په بناء د خان په خطاب مقرر وو - او جته په

جته پښتانهٔ قبائل د دوئ په مشری کښې پېښور او نورو علاقو ته را ورسېدل ـ

د انګرېزانو د عناياتو او خان بهادری يا د حکومتی خان برعکس د پښتون معاشرې د عوامی خان ذمه واری وه ـ چې د حجرې جمات اخراجات ، د کونډو رنډو تحفظ او کفالت ،غريب مسکين دپاره د مفت کور فراهمی ، د دوئ په سر غېرت ،او ظالم جابر نه محفوظ ساتل د خان داسې ذمه واری وه چې د خان ازم دوران د خلقو د کورونو دروازې نهٔ وې ـ ديوالونه وارهٔ وو ـ غلا ډاکې کمې وې ـ د اغوا برائے تاوان نام و نشان نهٔ وو ـ د مېلمه مهمان نوازی د خان په سر وه ـ چې د ډېر اخراجات او خرچ په سبب به اکثر د ساهوکارانو مقروض وو ـ د خانيت په برکت ملک کښې امن و امان وو ـ دهشت ګردی چا نهٔ پېژنده ـ ذلالت نهٔ وو ـ د انصاف بول بالا وه ـ د هر چا په خپل ځائے يو وقار او احترام وو ـ د مشرانو قدر عزت وو ـ کشرانو سره شفقت وو ـ دروغ منافقت نهٔ وو ـ چل دوکه نهٔ وه ـ د جائيداد خاوند " خان " د هر لوئے وړوکی خادم وو ـ د جائيداد تصرف محض برائے نام وو ـ اصلی مالکان د هغهٔ ګاونډيان وو ـ د خان مثال د پلار او ماتحت رعيت ئې اولاد وو دغه خان خوانين اولاد اوس هم په لويو زړو ځينې کلو کښې د

کسمپرسی ژوند تېروی ـ د موروثی جائیداد نه اوس محروم دی ـ خو د عزت او احترام خاوندان دی ـ

یوسف زی او غوریا خېل قبائل چې اندازتاً د ۱۵۲۵ء او ۱۵۳۳ء یعنی د شپاړسمې صدی اوائل کښې د مردان[1] او پېښور په زرخېزه وادی قابض شول ـ نو د دوئ مشر یا جنگجو سردار " خان " وو ـ دوئ د خان په مشری کښې په دې سیمو غالب او قابض شول او د جائیداد مالک او محافظ هم " خان " وو ـ اگر کۀ د پښتنو نور قبائل د " ملک " په سربراهی کښې وروستو مختلف علاقو ته راورسېدل ـ چې په دوئ کښې خټک هم شامل وو ـ دې نه علاوه :-

" د پښتون د معاشرې سره تړلی ځینې داسې اجزاء دی چې د پښتون معاشره په هغوئ تر ډېره حده تینگه ده ـ مثلاً اهل کسبه پېشه ور خلق د هر کلی د ژوند په تنه بوده کښې ځینې پېشه ور لازماً پکار دی ـ دغه خلق بېشکه چې د پښتون د معاشرې ضروری جز دی ـ خو ددغه دائرې دننه نۀ دی ـ دوئ ددغه دائرې د کربښې سره جوخت ژوند کوی ـ او د کربښې دننه ژوند کښې د خپل خاص ضرورت له کبله د معاشرې د ژوند نه استفاده کوی ـ

---

[1] هندی لفظ دے چې معنٰی یې ده منتخب یا چوڼ شوے ـ

ظاهر ده چې دا جزو خو حقیقتاً ددغه معاشرې قدرتي جزو نهٔ دے ولې لازمی ضرور دے[1] "

د مغل دوران حکومت کوشش کوو ـ چې د هند په سیمو کښې د ډېرو لویو خدماتو په صله کښې پښتون د " خان " په خطاب ونمانځی ـ ولې پښتونخوا کښې دوئ دپاره د "ملک" خطاب عام وو ـ لکه ملک محب ، ملک محمد خان ، ملک مستجاب ، ملک تور ، ملک اکوړ وغېره ـ

دغسې مغل عموماً بهرنی عهدېداران په دې سیمه کښې د " خان " په اعزاز مشرف کول ـ لکه سعید خان ، زین خان ، ظفر خان ، قاسم خان ، محمد امان پسر حسېن بېګ بخطاب ناصر خان صوبیدار کابل ،میر اسحاق بخطاب مکرم خان ، محمد یعقوب بخطاب شمشېر خان وغېره د ملک او د " خان " خطاب او نوم سره ددې علاقې خلق او عوام بلد وو ـ او د مشرئ دا الفاظ دوئ دپاره نوی یا غېر معروف نهٔ وو ـ او بیا په تېره تېره د " خوشحال " د کورنئ ملکی یا خانئ نه واقف وو ـ او د حکومتی مرستې په سبب د "خټک " ملکان مجبور وو ـ چې د ثانوی حېثیت " ملکان " خوشحال " خان " تسلیم کړی ـ

---

[1] د پښتو فلسفه . مولانا عبدالقادر مرحوم . ص ۵

د تاریخ مرصع او کلیات خوشحال خان مطابق انورخان المعروف ملک اکوړ خان د اکبر اعظم د زمانې راسې د خټک قبائل مشر یا خان وو ـ زمونږ په نزد به داسې کم بلکې د نیشت برابر پښتانهٔ وی ـ چې اکبر اعظم به د " خان " په خطاب نمانځلی وی ـ خو داسې بې شماره مثالونه موجود دی چې د پښتنو په دې علاقه د نور اقوام او مسلک شخصیات د خان په اعزاز مقرر مغل اهلکار وو د " بېګ " توصیفی اعزاز دلته مروج نهٔ وو ـ خان وو ـ

زهٔ په صلاح د اولس " خان " شوم[1]

خوشحال خان دخپل اشعارو مقطعوکښې خان دخوشحال، خوشحال خان خټک او خوشحال خټک په تخلص متعارف کوی ـ البته زامن ئې د خټک ، شاه افغان او نور توصیفی کلمات نه علاوه د " خان " په خطاب هم یادوی ـ عبدالقادر خان خټک وائی :-

دا غزل پـــه پښتو ژبـــه چې بیـان عبـدالقادر کړو
دروغژن یم کهٔ بې " خانه " وائ بل یو پښتون هسې

ګوهر خان وائ :-

خان خانان و قـــدوهٔ افغـــان
آن حکیمے سر خرد مـــندان

---

[1] تاریخ مرصع ، ص ۲۰٦

کاظم خان شیدا وائ :-

چې قلم په لاس د خان شو

مرتب ئې لـــوئې دیوان شو

خوشحال خان د خان صفات داسې بیانوی :-

خانی کار د هر چا نهٔ دے د هغهٔ دے

چې صرفه ئې نهٔ پـــه زر وی نهٔ په سر

سرداری لره بویه دا درې توکه

یو همت دویم توره بل اخـلاق

چې ونهٔ وهی پـــــه دواړو لاسو توره

چا ملکونه په میراث نهٔ دی موندلی

په یوه کښې هومره کار برکت نشته

لکه کار د نام و ننګ دے د خانانو

دوه رباعیانې یې هم وګورئ :-

خانان هغـه دی چې په خپل نام دی

نهٔ پـــه دنیا دی نهٔ په خپل کام د ی

چې پـــه کوم توکی د نام ښېګړه وی

په هغه فکر کښې په صبح و شام دی

رباعی :-

خــــان د وګړی چې شمشېر زن نۀ وی
ددۀ ښــــۀ ورکــــړل ددۀ نغــن نـۀ وی
لکــه نــــامـــرد مـــيـږۀ چـــې وادۀ وکا
خوار زار روزګار کا حال يې د زن نۀ وی

په دې قطعه کښې خوشحال خان د خانۍ متعلق داسې وائۍ :-

چې صـَــرفــه کـــانـدی په سر
يـــا صـــرفـــه کـــانـــدی په زر
نــۀ بـــه خان نۀ به سلطان شی
نـــۀ بـــه خـپـل کاندی کشور
چې پـــه ځـــان مېړنے نۀ وی
مــــړنـــتـــوب نـــۀ کـــا لښکر

# خوشحال بېګ يا خوشحال خان

---

(۱) د شاهجهان د دور حکومت سرکاری تاريخ " بادشاه نامه " (فارسی ) د دوه کسانو تاليف دے - د بادشاه نامه اولنۍ مؤلف عبدالحميد لاهوری دے - چې د شاه جهان د عهد حکومت حالات په دوه جلده کښې قلمبند کولو نه پس ۱۶۵۵ء ۱ ۱۰۶۵هـ کښې وفات شو - او بيا د باقی مانده وخت حالات محمد وارث په جلد سوم کښې راغونډ کړل - بادشاه نامه کښې مونږ د خوشحال بېګ کاشغری ذکر وينو - ( وګورئ بادشاه نامه از عبدالحميد لاهوری ملکيت پښتو اکېډيمی پېښور -

(۲) بادشاه نامه از محمد وارث ملکيت پنجاب پبلک لائبرېری لاهور

(۳) شاه جهان نامه ( عمل صالح ) مؤلف محمد صالح کنبوه (فارسی) اردو ترجمه ډاکټر ناظر حسن زيدی مرکزی اردو بورډ لاهور چاپ کښې هم د خوشحال بېګ يا خوشحال بېګ کاشغری ذکر موجود دے - چې د شاه جهان د حکومت مکمل غېر سرکاری تاريخ دے -

(۴) آداب عالمگیری ( فارسی ) د منشی شېخ ابوالفتح قابل خان لیکلے تاریخ دے ـ او د خوشحال بېگ کاشغری متعلق معلومات لری

(۵) مآثرالامرا جلد اول ( فارسی ) از صمصام الدوله شاه نواز خان اردو ترجمه از پروفېسر محمد ایوب قادری مرکزی اردو بورډ لاهور چاپ کښې هم د خوشحال بېگ کاشغری متعلق معلومات درج دی ـ

د نور تواریخی کتابونو لوست ، معلومات او انکشافات به په دې موضوع د مزید وضاحت باعث وی ـ خو حاضر وخت دغه کتابونه زمونږ د علم او وس دست نه بهر دی ـ د اورنګزېب د تخت نشینی نه وروستو کلیات خوشحال خان او تاریخ مرصع زمونږ د معلومات لوئے منابع او ماخذونه دی ـ تاسو ګورئ چې تاریخ مرصع کښې تر ۱۷۲۴ء \ ۱۱۳٦هـ پورې واقعات درج دی ـ دا هغه زمانه وه ـ چې د اورنګزېب د وفات ۱۷۰۷ء \ ۱۱۱۸هـ نه وروستو مغل حکومت د انتشار او تنزل ښکار وو ـ د مرکز په صوبائی حکومتونو اجاره داری او ګرفت برائے نام وو ـ شاه عالم بهادر شاه اخېری مغل شهزاده وو چې ۱۷۰۷ء \ ۱۱۱۸هـ کښې د اورنګزېب تر وفات پورې د پېښور په سیمه د پښتنو خلاف په لویه سطح کار روایی کښې موجود وو ـ دۀ نه پس هېڅ مغل بادشاه یا شهزاده بیا د پېښور و کابل علاقې ته رانغلل ـ او دا صوبه د مرکزی حکومت له اړخه د څۀ خاص امداد بغېر د صوبیدار په رحم و کرم وه ـ چې زیات

وخت په دې سیمه محمد امان او نصیری خان دواړه پلار زوئے د مغل صوبیداران وو ـ محمد امان ولد حسېن بېګ خان چې د پېښور فوج دار وو ـ ۱۷۱۱ء | ۱۱۲۲ھ کښې د ناصر خان په خطاب د کابل صوبیدار مقرر شو ـ هغه ۱۷۱۷ء | ۱۱۲۹ھ کښې وفات شو ـ او د یکه توت دروازې دننه خاوروته وسپارلے شو ـ دغه ځائے اوس د "چوک ناصر خان " په نوم مشهور دے ـ

د محمد امان د وفات نه پس د هغۀ زوئے نصیری خان د ناصر خان په خطاب د کابل صوبیدار شو ـ چې د احمد شاه ابدالی د حملې تر وخت دلته موجود وو ـ

د مغل حکومت کمزوری او زوال وو ـ چې د حکومت هر حاکم ، منصبدار او سردار د ځان په استحکام شو ـ تاریخ مرصع هم ددغه پراشوب دور تاریخ دے ـ افضل خان د ترونو تربورانو بالمقابل کوشش کوی ـ چې د خټکو د خانۍ ځان جائز وارث او دعوېدار ثابت کړی ـ هغه خپل نیکۀ خوشحال خان یا خوشحال بېګ خان علین مکان او خپل پلار اشرف خان هجری خان جنت نشان ښائ ـ او د پلار په مقابل کښې خپل ترۀ بهرام خان بد فرجام مکار ، مفسد او منافق وغیره په سپکو نومونو یادوی ـ خپل ورور نامدار خان دهوبیان ( صوابی ) ته په فرار مجبور کوی ـ اشرف خان هجری چې د حضرت شیخ ضیاء الدین بن شیخ رحمکار

المعروف حضرت کاکا صاحب قاتل وو - د شیخ ضیاء الدین شهادت نه خپل پلار بری الزمه ثابتوی - او د هغهٔ مرګ د مار په چیچلو ښائ -

د اخون درویزه د مرګ متعلق مضحکه خېز بیان کوی -

" نقل کا چې دهٔ ( اخون درویزه ) هسې طبیعت وو چې کهٔ بل له طعامه منع نهٔ کړو - دهٔ به تر هسې حده طعام وخوړو - چې بد هضمی به ئې وشوه - مهابت خان چې صوبیدار د کابل وو - دهٔ په طعام بللے وو - هغه ځائے څوک دهٔ محرم نهٔ وو - چې دهٔ لاس ئې له طعامه نیولے وے - ډېر یې وخوړو - وقت د ګرمی وو - وفات شو[1] "

د اخون درویزه د وفات متعلق د تاریخ مرصع بیان د تواریخی حقائق برعکس دے -

(۱) د اخون درویزه د ژوند دوره ۱۵۳۳ء ا ۹۴۰ھ نه تر ۱۶۳۹ء ا ۱۰۴۸ھ پورې لیکوال ښائ -

(۲) مهابت خان خان خانان سپه سالار د شاه جهان په زمانه ۱۶۳۴ء ا ۱۰۴۴ھ کښې د اخون درویزه نه څلور کاله مخکښې وفات وو -

---

[1] تاریخ مرصع ، ص ۳۴۴

(۳) ۱۶۳۹ء ۱ ۱۰۴۸هـ کښې د کابل صوبیدار سعیٗد خان بهادر ظفر جنګ وو -

(۴) دغه زمانه مهابت خان لهراسپ خان د میرتوزک او د اودهـ په فوجدارۍ مامور وو -

(۵) د اخون درویزه اوږد عمر ښائ - چې دومره زوړوالی کښې ډېر خوراک او مهابت خان څخه ملاقات ناقابل فهم بیان دے -

خوشحال خان هم د اخون درویزه د مسلک برخلاف وو :-

درویزه د درویزې وګره خوړلې
په دا مکر یې حلوا سره لړلې

چې یې توره وینځه هم نهٔ وه د وړاندې
قچې قچې یوسفزۍ یې شوې تر لاندې

افضل خان د یوسف زی یو مشر حمزه دپاره هم هر قسم سپک الفاظ استعمالوی: - " په جهان کښې به هسې خسیس ،خبیث ، پلیت ، شوم ، ممسک ډېر وی - اما په دهٔ باندې ختمه ده[1] "

میان سرفراز ګل بن باز ګل بن شیخ ضیاء الدین بن شیخ رحمکار هم نهٔ معاف کوی - او د خټکو د خانۍ دعویدارۍ دپاره هر جائز و نا جائز حربه پکار راولی :-

---

۱ تاریخ مرصع ، ص ۳۲۱

" ملک خیر اباد و اکوړه جاگیر بادشاهی است. و از قدیم الایام ما مردم راباشاهان در تنخواه منصب داده اند. چنانچه خدمت شاهراه و بندوبست اولس کرده میشود[۱] "

دا جامه د حکومت اگر چې دغه رنګ ده ـ لیکن مونږ ته ابائ او اجدادی یعنی له پلاره له نیکهٔ پشت په پشت اووهٔ پیړی په میراث رسېدلې ده ـ چاړهٔ په غاړه خلاصے مو ځینې نشته[۲] ـ

اورنګ زېب ۱۶۵۹ء \ ۱۰۶۹هـ کښې دارالشکوه قتل کړو ـ او بیا یې په ۱۴ دسمبر ۱۶۶۱ء \ ۱۰۷۱هـ مراد بخش قتل کړو ـ هغهٔ ۱۶۶۲ء \ ۱۰۷۱هـ کښې مهابت خان د کابل صوبیدارۍ نه معزول کړو او سید میر خان خوافی یې مقرر کړو ـ ۱۶۶۳ء \ ۱۰۷۳هـ کښې د نیازی پښتنو په سرکوبۍ فدائ خان مقرر شو ـ د دارالشکوه د قتل نه وروستو خوشحال خان څلور کاله متواتر د یوسف زئ او بنګش قبائل په علاقو حملې جاری ساتی ـ او د هغوئ بې عزتی ، لوټ تالان ، تباهی او وژل خپل معمول ګرزه وی ـ خو اخر کار ۱۶۶۴ء \ ۱۰۷۴هـ کښې عذاب الٰهی جوش کښې راشی ـ او د اورنګزېب صوبیدار کابل ئې ګرفتار کړی ـ د ګرفتارۍ اسباب څهٔ دی ـ تاریخ مرصع ئې د اورنګزېب د ممانعت باج ، محصول راهداری حکم

---

[1] تاریخ مرصع ، ص ۴۷۲

[2] تاریخ مرصع ، ص ۴۴۹

مجریه ۱۶۵۹ء \ ۱۰۶۹هـ خلاف ورزی ښائ - ولې ددې برعکس خوشحال خان وائ :-

پــــه نــاحــق د اورنګزېب په بند بندی يم
خـــــدائے خــبر دے په تهمت او په بهتان
زۀ په ځان کښې ګناه نۀ وينـم په خدائے ګو
ولې نـــور خــلـق خـــبرې کـا شان شان
د ګـنـــاه مــې سـر رشتــــه نـۀ ده معلومه
مــــګـــر خـپـــل هـــنر د ځـان وينم تاوان

د خوشحال خان ددې نظم ددې اشعارو نه بل طرف ښکاری - چې دۀ ته د خپلې ګرفتارۍ وجوهات اګاهونه معلوم وو -

درست خلق اودۀ وو واړو خوب کوو خر خر
هېڅوک خبر نۀ وو اشرف خان مې کړو خبر
هر چې نصيحت وو لکه بــويــــه د پـــدر
ما پـــــه کتابت ورتـــــه ادا کـــړو مختصر

د تخت نشينئ په جنګ کښې فتوحات او د اورنګزېب د بادشاهت د اعلان وروستو ټول ملک کښې قلاره قلاری وه - خو د کابل صوبه کښې د پېښور په سيمه خوشحال خان په يوسف زو د دهشت ،جارحيت او حملو بازار ګرم کړے وو - لازمی وه چې اورنګ زېب دپاره په دې صوبه کښې د امن و امان برقراری يو

چیلنج وو ـ او اورنگ زیب دپاره د خوشحال خان وفاداری مشکوک شوې او دغه مشکل وخت کښې د شر فساد د پېداوار ذمه وار وو ـ

درست عالم ئې په بازار په کوڅه وائی
لـــه و چـــاته ښکاره نهٔ دے راز زما

خوشحال خان هم هغه خوشحال بیګ کاشغری وو چې د سمو کړهـ په مېدان د شکست نه وروستو خپل وطن ته فرار شو ـ مهابت خان صوبیدار کابل څخه د دوستانه مراسم او تعلقات په بنیاد د ختکو بدستور خان وو ـ شاه جهان څخه ئې احسان فراموشی ونکړه ـ او وفاداری ئې بدل نهٔ کړه ـ

د خوشحال خټک په برخه خو یو ننګ دے
تـــر نـظـــر پـــورې ئې هېڅ ده دنیا واړه

۱۶۶۳ء \ ۱۰۷۳هـ کښې د کشمیر نه په واپسۍ د لاهور په مقام د کابل صوبیدار سید امیر خان خوافی اورنګ زیب د خوشحال خان د سرګرمو نه خبر کړو ـ او هغهٔ د ګرفتارۍ احکامات یې جاری کړل ـ

خوشحال خان د خپلې ګرفتارۍ روئیداد او احوال د دوه سوه شل اشعارو ترکیب بند ذوالقافتین نظم کښې ښهٔ په تفصیل بیانوی ـ چې په کلیات خوشحال مرتب کننده دوست محمد خان

کامل کښې دوه سوه پنځلس اشعار نظم دے ـ خوشحال خان الزام لګوی :-

وغوښتې پنځـــوس زره روپۍ صوبیـــدار
ما وې در به نکړم یو پو چک نۀ یو دینار

د خوشحال خانؑ د ګرفتارۍ دپاره لوئے بندوبست ښائ ـ چې خوشحال خان د مغل حکومت منصبدار خوشحال بیګ کاشغری دے ـ د احدیانو یعنی شاهی دستې په موجودګۍ کښې صوبیدار دپاره د رشوت طلب ذهن نۀ منی ـ او دا الزام محض په صوبیدار تور ښکاری ـ چا چې د مرکزی حکومت احکامات په ځائے راوړل ـ او څوک چې د اورنګزیب ډیر زیات وفادار مخلص او " از نوکران دلسوزان " وو ـ
هغه وائ :-

درسته شپه څوکۍ د محب خېلو پخپل ځان
بل وو مصری خان داؤدزے یــو ټول احدیان
صبح یې کـــوچ وکـــړو پښتـانــۀ مغل لرزان
لور پـــه لور فــوځــونــه وو زما ټوله تر میان

د خوشحال خان ددې بیان نه اندازه ده ـ چې هغه د مغل حکومت معمولی زمیندار، جاګیر دار یا منصبدار نۀ وو ـ د هغۀ د سفارش دپاره د صوبې امیران منصبداران د صوبیدار کابل دربار ته

ورځی - په دربار کښې ئې د مغل لوئے فوځ ګېره کښې اخلی - پنځهٔ سیریزې بېړی ورته پښو کښې اچولے شی - د بادشاه د اعتمادی شاهی دستې احدیانو په نګرانی کښې دهلی پلو روانېږی - د "احدی" متعلق دوست محمد خان کامل لیکی :-

" احدی د اوچت حېثیت او زیاتې تنخواه سپاهی ،د خاصې درجې او رعایت وړ سپاهی[۱] "

د پنجاب یونیورسټی د تاریخ ډیپارټمنټ یو پخوانے مشر شېخ عبدالرشید د احدی متعلق د " مغل حکومت او انتظام " د سر خط لاندې لیکی :-

Ahadis were gentlemen troopers . They were generally employed in the court and were mostly men of good birth who did not come up to the standard of a mansabdar . The Ahadis could muster upto five horses in Akber,s reign . Their duties were of a miscellaneous character. Most clerks of the imperial offices and foremen in Akbar,s workshops belonged to this corpse . In Shah Jehan,s time ahadis were some time sent out with the army . There was a separate establishment of the ahadis with a diwan and a bakhshi . At their head was placed a high official . They were mustered every four months . The ahadis procured their own horses at the beginning but later, if a substitute was needed , it was supplied by the state either free or at a fixed price-[2] .

---

1 تاریخ مرصع ، ص ۱۳۷٦

2 A Short History Of Pakistan ,, By Sh.A.Rashid . Edited by I.H.Qurashi , Page 171

ترجمه :- احدی د اوچت حېثیت سور اس فوځ وو ـ دوئ به عموماً شاهی دربار له بهرتی کېدل ـ او ښهٔ خاندان څخه به ئې تعلق وو ـ دا هغه کسان وو چې د منصبدار درجې ته ئې رسېدل گران وو ـ احدی به د اکبر په زمانه پنځهٔ اسونه ساتل ـ او ذمه واری یې مختلف قسمه وې ـ دا داسې فوجی دسته وه چې په دې کښې به د شاهی دفترونو قابل خلق وو ـ او د اکبر د جنگی ساز و سامان د کارخانو ذمه وار اهلکاران پکښې شامل وو ـ د شاه جهان په زمانه به کله نا کله دوئ عام فوځ څخه هم تلل ـ د دوئ ځانته بیلهٔ محکمه وه ـ بیل دیوان او بیل بخشی ( تنخواه ورکونکے ) یې وو ـ چې د یو اعلیٰ عهدېدار ماتحت وو ـ ددې فوځ معائنه به هر څلور میاشتې پس کېده ـ په اول کښې یې اسونه ځانته پخپله اخېستل ـ خو وروستو ورته بیا حکومت مفت یا په مقرر نرخ د متبادل اسونو بندوبست کوو ـ

" احدی از طرف بادشاه برائے اجرائے حکمے برامراء مسلط میشود[1]"

ترجمه :- احدی هغه خلق وو ـ چې په امیرانو یې د بادشاه احکامات نافذ کول ـ

---

[1] فهرست کلمات و مصطلحات نادر ترکی و مغولی و هندی ، مراة العالم ، جلد دوم ، از بختاور خان ، ص ٦٩٧

خوشحال خان په دې نظم کښې د اورنګزيب د دهلی په دربار کښې د مير جمله زوئې محمد امين خان مير بخشی څخه خپل تعلقات ښائ ـ کوتوال څخه د هغهٔ په حويلی کښې د هغهٔ تر څنګ کښېني ـ د جلال زوئې سيد شمس يې ضامن جوړيږی ـ مير خان ۰ ( امير خان بن خليل الله ) يې سفارش کوی ـ

زهٔ په دا لا خوښ ووم چې کهٔ ورشم تر دربار
د عمر دولتخواه ووم د عــــزت ووم طـمـع دار

وې يې چې را ورسی دربار وته خوشحال
نور به سرفراز شی غــم يې نشته يو مثقال

بل ځائې وائ :-

امراء ګان مې په دربار کښې ډير نيکخواه دی
پــه خـــاطـــر د سـيـد مـــير دی واړه لال[1]
افـــريـــن د مـير جـمـلــه په زويه باندې
چې نن دے دے مير بخشی پـــــه استـقلال
بل مير خان دخليل خان ځويـــــه تلاش کا
بل د نېکو نيت لــــيـــدهٔ شی د کــوتـوال

---

[1] ګونګ

خوشحال خان چې گرفتار شو نو د غوری قبائېل نواب ملک مستجاب خان ته حواله شو ـ هغۀ څخه په کوټله محسن خان کښې څۀ مودې دپاره په قلعه کښې بندیوان وو ـ او بیا :-

هند ته ئې روان کړم بدرقه مې مستجــاب

هم ملک هم خان ، هم د همه غوری ارباب

۱۶۷۳ء \ ۱۰۸۳هـ کښې مغل لښکر د ایمل خان او دریا خان د لاسه د خیبر په مقام زبردست شکست وخوړو ـ خوشحال خان وائ چې په دغه موقعه زۀ او مستجاب دواړه مغل فوځ څخه وو ـ مونږ په ډېر تکلیف خان پېښور ته را ورسوو ـ زۀ سخت بیمار ووم ـ محمد امین خان بللم ـ خو نۀ ورتلم ـ ځکه چې زۀ په نظام پور کښې په کټ بیمار پروت ووم ـ اشرف خان مې ور اولېږلو ـ خزانه ئې ورسره د اټک د سیند نه پورې کړه ـ

تاسو گورئ چې په دغه موقع اشرف خان د مستجاب خان خلاف فدائ خان ته څۀ شرارت وکړو ـ فدائ خان چې پېښور ته راورسېدو ـ نو مستجاب خان ئې قتل کړو ـ

د خوشحال خان د کلام او د تاریخ مرصع د خوشحال خان په حواله د بیان د سیاق و سباق نه ښکاری چې د خوشحال خان و اشرف خان او د اشرف خان فدائ خان مشترک سازش د مستجاب خان د قتل باعث شو ـ چې محرکات ئې پابند سلاسل خوشحال

خان باندې د ملک مستجاب خان پهره ، څوکی او د هغهٔ په نګرانی کښې دهلی دربار ته بوتلل وو ـ نهٔ چې د افضل خان دا دلیل :-

" مستجاب وغیره مهمند ئې په طریق د جرګې ور واستول چې لار پرېږدی ـ دوئ پښتون ته په ظاهر یو څهٔ او په باطن بل څهٔ ووي[1] ـ

د محمد امین خان په دغه لښکر کښې د ملک مستجاب خان نه علاوه د نامې جامې نور ډېر پښتانهٔ هم موجود وو ـ صرف په مستجاب او د هغهٔ په خلقو د مغل اعتبار د عقل و فراست نه بعید دلیل دے ـ او بیا عن چې په دغه لښکر کښې خوشحال خان غوندې مدمغ او د ختکو خان هم شامل وو ـ

خوشحال خان په ترکیب بند ذوالقافتین نظم کښې وائ :-

ما وو پېغام کړے په اولس په اشرف خان
نهٔ بویه د جنګ د خر خشې فـــکر سامان
مونږه د بادشاه یو قدیمی دولتخـــواهـان
یو مې نام بدېږی بـــل ستـېږی افغانان

او بیا ددې برعکس وائ :-

---

[1] تاریخ مرصع ، ص ۲۹۷

ما خو پیغام کړے وو هم دا مې وو گمان
اوس به راځرگند شی له یوهٔ لوریه نشان
هسې جنگ به وشی په دا اخیر زمان
گوره څو به شمار شی دواړه لوریه کشتگان
ومې کړو اشرف وته د تورې اشارت
هیڅ عمل ئې ونکړو زما په نصیحت

د خوشحال خان ددې نظم دې شعر نه ددهٔ د لوئے منصب او د شاه جهان په دربار کښې د اعلیٰ شخصیت مقام ظاهرېږی ـ هغه لیکی چې زما ملک منصب ُجاگیر او د مال دولت ټول مراعات ضبط شول او چې زما ماتحت کوم دولس (۱۲) منصبداران مقرر وو ـ هغوئ هم د نوکری نه برخاست شول ـ

ملک منصب جاگیر زما تغیر شو مال محال
دولس منصبدار مې تابینی شولهٔ پائمال

د خوشحال خان دا دوه نور شعرونه هم د هغهٔ په اعلیٰ منصب دلیل دے ـ د مغل د اعلیٰ منصبدار غیر منقوله جاگیر (محال ) به عموماً د هغهٔ د فرائض منصبی د ځائے نه بهر وو ـ چې نهٔ بائد دغه جاگیر جائیداد د هغهٔ د بغاوت سبب شی ـ او دغه جاگیر کښې کار کونکی اهلکاران د منصبدار د کومک باعث شی ـ

نـــام نـــامـوس مې لاړ شو چې اعتبار وو د مغل
نوم مې د بدخواه شو چې نېک خواه ووم تل تر تل
ملک يې وو راکـــړے پـــه پـنـجاب کښې متصل
حـــکـم د بـادشـاه وو صـــادر شوے په پرېښول

د خوشحال خان د صوبېدار او د بادشاه په دربار کښې اثر رسوخ ـ د هغهٔ په منظم شکل گرفتارى ـ د شاهى دستې احديانو په نگرانى کښې دهلى ته بوتلل ـ او د پېښور نه تر اټکه په لاره کښې د فوج پهره او څوکى او د هغهٔ د مال متاع ضبطېدل ښائ ـ چې خوشحال خان د مغل دربار خوشحال بېگ کاشغرى دے ـ څوک چې د معمولى منصب منصبدار نهٔ وو ـ د غورى قبائل نواب ملک مستجاب خان کهٔ بلا مزاحمت فدائ خان وژنى ـ نو د مغل جابر حکمرانانو دپاره د خوشحال خان گرفتارى څهٔ مشکل کار نهٔ وو ـ

د خوشحال نوم څخه د " خان " او " کاشغرى " الفاظ استعمال مسئله مشکل او پيچيده کړې ده ـ گنه حقيقت دادے :-

"On enrolment a chihra or descriptive roll of the appointee was drawn up showing his name' his father's name his tribe or caste and his place of origin followed by details of his personal appearance[1] ,,.

---

[1] A short history of Pakistan by sh . A . Rashid page 171

ترجمه :- د بهرتی په وخت د یو ملازم څهره یا وضاحتی فهرست چې په دغه کښې د هغهٔ نوم ، د پلار نوم ، قبیله یا ذات ، نسبی ځائے ځائیګے ، ذاتی علامات او د شکل شباهت تفصیل لیکلے شو ـ

د خوشحال خان د یو نظم مطلع ده :-

هغه خدائے چې بندی کړے دے خوشحال
هم هغه به ئې خلاصے کا په هر حال

خوشحال خان په دې نظم کښې د اورنګزیب د فوځ سرکرده پښتنو منصبدارانو نه ګیله مند دے ـ په دوئ کښې قطب الدین خویشکی او مشهور خان بهادر خویشکی هم شامل دی :ـ

مهٔ منت د خویشکی مېشکی باندې بار شه
نهٔ منت د باقل زئ د بقال
نېستی واړه په نصیب د بېګ محمد شوه
بې ننګی واړه په برخه دجلال
نام و ننګ ناموس کهٔ دا د افغانی دے
چې ښکاره ئې شو په دا دور احوال
اول مور د درست غوری په خرهٔ غوؤلې
بیا د واړو پښتو ژبې په دنبال

باقل زی د غوری قبائل د داؤدزئ ذیلی شاخ دے ـ چې جلال خان بخطاب دلېر خان ورځخه تعلق لرلو ـ او بل د جلال

خان په وجه ټول غوری قبائل کنځی - د پښتو ژبې ټول ویونکی هم نهٔ معاف کوی - د جلال خان بې ننګی ښائ - څوک چې د سلېمان شکوه نه د راجه جے سنګهـ په ترغیب اورنګزېب پلؤ اوړېدلے وو - ددې نظم سیاق و سباق هم صفا ښائ - چې خوشحال خان هم خوشحال بېګ کاشغری دے - چې شاه جهان څخه په وفادارۍ کښې ثابت قدم پاتې وو -

د خوشحال خان د قید و بند دوران کښې اراده وه :-

مرګه هومره مهلت راکړې په جهان کښې
چې جمدر د مـــــدعی په وینو سور کړم

پس لـــــه بنده دے دا عزم
د خوشحـــال د خاطـرجزم

یــــا نیــولے مخ مـکې ته
یــــا مـــغـلـــو سره رزم

خو ١٦٦٦ء ا ١٠٧٦هـ کښې چې خوشحال خان د یوسف زی سردار بهاکو خان او د محمد شاه المعروف اخون چالاک د شورش دوران د اورنګزېب دقېد و بند نه راخلاص شو -

" و لشکر گکهر و اشرف و خوشحال خان ختک و برخی دیگر از بند هائے بادشاهی که به او نزدیک برآمده ـ به گذر هارون که رو بروئے ولایت یوسف زی واقع است ـ بقصد تنبیهه آن جهالت منشان روان شد[1] "

د عالمگیر نامه هم دغه بیان هو بهو په مراة العالم تاریخ اورنګزیب جلد اول ص ۳٦۹ کښې بختاور خان قلمبند کړے دے ـ

" کامل خان از روی جلادت و کار طلبی به رسیدن شمشیر خان مقید نگشته ـ به همراهان خویش و لشکر ککهر و اشرف پسر خوشحال ختک و برخی دیگر از بندهایٔ بادشاهی که به او نزدیک بودند ـاز اتک برآمده ـ به گذر هارون که روبروئے ولایت یوسف زیٔ واقع است ـ بقصد تنبیهہ آن جهالت منشان روان شد "

خوشحال خان په دهلی کښې بندیوان شو ـ او اشرف خان ١٦٦٧ء \ ١٠٧٧هـ کښې ډېر په تېزئ د دریائے سندهـ غاړې هارون ګودر ته د مغلو په امداد کمر بسته را ورسېدو ـ د خوشحال خان په دهلی کښې ایسارتیا د کوم مصلحت تحت وه ـ معلوم نهٔ ده ـ البته خوشحال خان اوس مغل دپاره زوړ وو ـ او د پښتنو خلاف د مغلو د یو آلهٔ کار په حیث اشرف خان غوره موزون وو ـ خوشحال خان هم غوښتل چې اشرف خان په داسې ښهٔ موقعه د خپلې خوانمردئ او

---

[1] عالمگیر نامه از محمد کاظم شیرازی ص ۱۰۴۲

شمشیر زنئ دجوهر خودنې مظاهره وکړی ـ اګر کۀ هغه او د هغۀ نور زامن وروستو د هغۀ د توقعات برعکس وختل ـ او د بهادرئ هغه صلاحیت په دوئ کښې نۀ وینی ـ کوم چې د مغل دپاره په دۀ کښې موجود وو ـ

د یوسفزی بغاوت او د زرګونو پښتنو قتل عام کۀ یو خوا د پېښور سیمه د مغل سرکار د یلغار او توجو مرکز کړه ـ نو بل خوا دې واقعاتو د پښتنو تر مېنځ د مغل خلاف د بې اعتمادئ او مخاصمت فضا مزید سېوا کړه ـ او د مغل خلاف ایمل خان او دریا خان غوندې پښتانۀ جرنېلان راوپارېدل ـ مغل ئې په هر محاذ شکستونو څخه مخامخ کړل ـ خوشحال خان چې ولیدل چې په دې سیمه د مغل ګرفت اوس کمزور شو ـ او پښتنو د خپل تورې او طاقت شان قائم کړو ـ نو د وخت د مصلحت مطابق :-

ناګهانه په دا ملک فساد بنیاد شۀ
زما هم د تلافئ کار په یاد شۀ

د فساد کۀ یو بخرے وو ما اور کړو
اور مې پورې د اورنګ بادشاه په کور کړو

خوشحال خان وائ چې زما د زړۀ ارمان وو چې د مغل خلاف توره پورته کړم ـ خو د قبیله دارئ او بوډاتوب په سبب مجبور یم ـ چې

مغل څخه بې وفائۍ ونکړم - زۀ چې لاچی نه نظام پور ته راغلم - نو ما دا غزل ووې - ددغه غزل مطلع ده :-

د فساد فکر مې نشته خدائے حاضر دے
خپل ساعت بــه تېره وم عمر اخېر دے

یا

یګانه څوانان کۀ زر له ماسره وے
نور زما وو په دهلی بــاندې یرغال

د اېمل خان او دریا خان ۱۶۷۳ء \ ۱۰۸۳ھ کښې د خېبر جنګ ۱۶۷۴ء \ ۱۰۸۴ھ کښې د ګنداب جنګ او د شجاعت خان رعد انداز قتل او ۱۶۷۵ء \ ۱۰۸۵ھ کښې د خافش جنګ او د شمشېر خان او میر عزیزالله قتل او په هر محاذ د مغل پرله پسې شکستونو او د پښتنو د کامیابئ سبب وو - چې د پښتنو وقار بحال شو - دغه وجه وه چې د مغل سرکار دولتخواه او د پښتنو کټر دشمن هم د " نظریه ضرورت " تحت بهادر پښتون څخه د خپلې یک جهتئ او د یو والی اظهار کوی ددې جنګونو نتیجه وه - چې د اورنګ زېب د وفات نه وروستو مغل دپاره ددې علاقې بندوبست ګران او د کم اهمیت حامل شو - او دغسې نادرشاه او احمد شاه ته بلا مزاحمت په دې علاقه قبضه اسانه شوه - او دلته د پښتنو خپل مملکت او حکومت قائم شو -

خوشحال خان د قید و بند د آزادئ نه وروستو نۀ خو د جومات گټ ونیوو - نۀ د مغل حکومت خلاف چا چرته په جنگ ولیدو - د کابل په صوبه د هر نوی صوبیدار تقرری ته هر کلے وائ - مهابت خان وو - امین خان یا امیر خان وو - د هغوئ د احسانات اقرار کوی - د مغل بد نۀ غواړی او پښتنو ځخه د نظریه ضرورت او مجبوری تحت همدردی ساتی - د پېښور او کابل په سیمه د پښتنو د وینو سېلابونه بهېږی - خو هغه ۱٦٧٦ء \ ۱۰۸٦هـ کښې د سېل په غرض سوات ته ځان رسوی - د یوسفزی د مهمان نوازی نه لطف اندوزی اخلی - او شیخ میان نور ځخه په مذهبی بحث و مباحثه انخلی - خو د ایمل خان او دریا خان فتوحات هم خپل حساب کښې شماری او وائ :-

چې پښتون شوم په دا هسې سپینه رېره
نور مې خـــدائے مـــکړه وایـم پـه ځیره

د افغان پـــه نـــنـــگ مې وتړله توره
ننگیالے د زمانې خـــوشحال خټک یم

# د خوشحال خان انا ــ خودي يا پښتو

انا يا خودي په دوه قسمه ده ـ يو قسم هغه دے چې انسان د خانداني عظمت ، نسلي برترئ د اباؤ اجداد قابل فخر کارنامو او يا د هغهٔ د خپل قابليت د جوهر نه تشکيل کېږي ـ دغه انا ــ خودي ــ پښتو يا ايګو فعال او متحرک وي ـ او د چا په ذات کښې چې ددې قسم انا تعمير وشي ـ نو هغه پخپل داخلي او خارجي ماحول کښې د ځان د برابرئ او مطابقت جدوجهد کوي ـ او هره لمحه خپل انفراديت د زيان او نقصان نه بچ ساتي ـ او کهٔ کله ورته د نقصان او هرج احتمال پېدا شي ـ نو دے ئې ښهٔ په جانفشانئ او همت مقابله کوي ـ

دوېم قسم ددغه اصلي انا يا خودئ بالضد انانيت ـ خود غرضيت يا ايګو ازم دے چې مريضانه نرګسيت يا د بيمارئ علامت دے ـ دغه انانيت يا خود غرضي انسان په کمترئ کښې مبتلا کړي ـ انانيت يا خود بيني ژورې مايوسئ او د حرص و لالچ ارمان ته جنم ورکوي ـ او خارجي دنيا څخه د ځان سمولو او برابرتيا په

ځائے د فرار لار اختیاره وی - او د بیرونی دنیا نه خپل ځان او خودی خارج او بهر ساتی - دا د یو ناکام انسان نخښنه نخښانه او علامت دے -

د انسائیکلوپیډیا برطانیکا جلد اتم په نزد :-

" انا یا ایګو یا شعورِ ذات ځان او جهان ته د برابری په مناسبت ترقی او وده ورکول دی - ځکه چې د هر کس د خپل ځان او د نورو د ځان متعلق ادراک ، وجدان یا الهام یو شان برابر پکار دے - د انسانی جذبات د اکثر ماهرین خیال دے - چې دغه دوه طریقې یعنی د ځان او د بل پېژندنه یو برابر حېثیت لری - او دا یو داسې اصلاح ده چې ددهٔ د ځان د جبلت تحفظ یا فطری عمل پرې قابو کښې راځی -

د انا برعکس انانیت ، ایګو ازم یا خود غرضیت دے - د نیو یونیورسل انسائیکلوپیډیا جلد څلورم ص ۲۹۵۵ مطابق :-

" انانیت انسان محض د ځان خوشحالولو او ذاتی فائدې پلؤ بیایی او داسې کس د ځان نه سیوا د بل هیچا د مفادات خیال نهٔ ساتی هغه په داسې طریقو او حربو کار کوی - چې محض ددهٔ ذات ته ترې فائده وی - ددهٔ هر حرکت کهٔ هر څو جاراً او ظاهری طور بې غرضه ښکاری - خو حقیقتاً ددهٔ هره قربانی او ایثار تحت الشعور کښې ددهٔ د خپل ذاتی مفادات نه خالی نهٔ وی " -

د انا احساس د یو انسان هغه طاقتوره او غالبه جذبه ده چې ددۀ د شخصیت ټول احساسات یو مرکز ته راجمع کړی - او ددۀ د شخصیت په تعمیر کښې وحدت پېدا کړی - او همدغه انسان وی - چې مونږ ئې د یو خود داره انسان په نوم پېژنو - او په نورو الفاظو کښې هم دغه انسان عظیم اوقابل قدر پښتون وی - چې د پښتو په اعلیٰ اقدارو د عمل په سبب ځان د یو انفرادی مقام مالک او پښتون کړی -

اوس کۀ مونږ د انا ددې دوه قسمه یعنی انا او انانیت یا انائے مثبت او انائے بالذات د خصوصیات او تجزیات په رڼا کښې د خوشحال خان طرز عمل وګورو - نو مونږ ته به صفا ښکاره شی چې د هغۀ په انا کښې تضادات دی - او د انائے بالذات د انانیت ښکار دے - هغه انا د خپل بقائے ذات دپاره ډال ساتی - او د تحفظ ذات ساتنه کوی - خوشحال خان په خپل ابتدائی ژوند کښې ډېر دلکش مناظر لیدلی وو - هغه د مغل د یو جاګیر دار په حېث شاهانه لباس کښې ملبوس او نوکران چاکران ورته لاس په نامه همه وقت تیار ولاړ وو - خو اوس د ژوند په اخیری برخه کښې دغه ټول رونق او شان و شوکت ختم وو - او زوړ دوران محض تصوراتی سوچ وو - اوس هغه د خپل ذاتی عظمت او د ماضی ثقافتی خزانه د لاشعور نه بهر کول او د هغه مناظرو زړۀ رابښکونکی. تصویرونه د شعور

حسین او ښائسته وادۍ ته راوستل او په دې کښې د اشعارو په ژبه د تېرو وختونو رنګونه ډکول غواړی - هغه اوس هم خپل خان منصبدار او د هر چا نه اوچت ګڼی - او نور خلق ورته ډېر لاندې او سپک ښکاری - هغه یو طرف در په در ګرزی - ولې بل خوا په یو اوچت مقام ناست د فکر و سخن بادشاه جوړ دے - او خپل کلام کښې د احساس برترۍ معیار قایم ساتی - او د خپل عزت نفس د انانیت جذبه برقرار ساتی - دا صحی ده چې هغۀ د خپلې هرې کمزورۍ اظهار په پرانستې مټ کړے دے - او ریا کارۍ نه ئې کار اخستے نۀ دے هر هغه ځائے چې ددۀ شخصیت مجروح کېږی نو د خپل مخالف خلاف د خپل انفرادی شخصیت د تحفظ او بقا هسه او مسلسل جدوجهد کوی - د هغۀ په شاعرۍ کښې د تشنګۍ اظهار ځائے په ځائے ډېر په وسعت او شدت موجود دے - هغه کۀ اوس د مغل دربار نه بهر دے - ولې خپل ځان هم هغسې منصبدار او جاګیر دار ګڼی - او کۀ هغه د اوچت مقام نه لاندې راپرېوتے دے - او د مغل په دربار کښې ئې هېڅ وقعت او قدر و منزلت نشته - ولې هغه اوس ځان د ایمل خان او دریا خان غوندې اوچت پښتون جنګجو سردارانو ښخه ځان د مغل په مخالفت د پښتنو په صف کښې ځان ولاړ شماری - چې د هغوئ په وساطت خپل دشمن نه بدل واخلی - هغه د پښتنو د ذهنیت ، رسم و رواج او قامی جذبات

نه ښهٔ خبر وو ـ هغه کوشش کوی چې د مغل خلاف جذبات راؤپاره وی ـ ولې پښتانهٔ پوئ وو چې د مغل نه د عارضی وېزارۍ باوجود هغه د خپل ځان ، پلار نیکونو او د حکومت وخت د نمک خوارۍ ، پاسدارۍ او وفادارۍ اعتراف کوی ـ د هغهٔ سابقه جنګونه د مغل د یو ادنٰی ملازم په حېث هم د پښتنو خلاف وو ـ هغه کهٔ اوس انتقامی او جذباتی وو ـ ولې د مرورتیا او خفګان باوجود هغه د حکومت نه په سرکشۍ او بغاوت راضی نهٔ وو ـ محض کناره کشی ئې اختیار کړې وه ـ پښتانهٔ د هغهٔ په دغه عارضی انتقام او د خپل ذات د روزنې ، د هغهٔ مغلو نه مصنوعی خفګان او د شعر په ژبه هغوئ د سرکار خلاف راپورته کولو باندې پوئې وو ـ چې هغه خپل ذاتی مخالفت ته د قومی رنګ ورکولو کوشش کوی ـ

سره ورغلل دوه غـــرونـــه
یـــــو مـــغـل دوېم پښتون

پښتانهٔ لره لوئے عیب دے کهٔ ئې کوړې
چې نـــازېـــرې د مـغـــل پـــه لـقبونو

د مغلو سره د رزم پُرعزم دعوېدار ډېر عاجزانه طور وائ :-

مستـجـــاب غـــریب ئـــې وواژهٔ پـــه ظـــلـــم
د خوشحال منصب ئې واخست کوم ګناه دے

او ددغه مستجاب مومند خلاف اووۀ میاشتې اګاهو په دې وېښا مجبور وو :-

مستجات مـومند کـۀ چـرګه د مغل ده
زۀ خوشحال خټک خو باز یم ځائې مې غر

حېرانیتا ده چې یو اړخ ته د اورنګزېب بې شانه سپکاوے دے۔ او بل طرف د هغه شاه جهان تعریف او صفت دے څوک چې د زرګونو بې ګناه پښتنو قاتل دے۔ خو خوشحال خان د دومره هله ځله باوجود پخپل مقصد کښې کامیاب نۀ شو۔ او پښتانۀ ورته راټول نۀ شول۔ ددۀ ظاهراً ایثار او قربانی د خپل ذات د ودې او نشوونما څخه منسلک عمل وو۔ او خلوص او د انا اصلی روح نه خالی د انائے بالذات تسکین وو۔ د هغۀ د ننګ و غېرت ،پښتو پښتونولی اشعار د هغۀ انائے بالذات څخه مخصوص شول۔ او محض د خپل جذبات سړولو په غرض د مغل خلاف د پښتنو د جذبات راالړزولو یو ناکام کوشش ثابت شو۔

د فساد کۀ یـــو بخــرے وو ما اور کړو
اور مې پورې د اورنګ بادشاه په کور کړو

د خوشحال خان یوه لویه کمزوری دا وه چې مغل اهلکارو به ورته لږ په خوږ نظر وکتل۔ نو مخې څخه به د هغۀ ننګ و غېرت تراخۀ جذبات ،تند و تېز لهجه او تریو تندی کښې د نرمی اثار نمودار

شول ـ او هغوئ ته د ورنزدې کېدو او زاړهٔ تعلقات بیا برقرار ساتلو
کوشش به شروع شو ـ

کهٔ مې لاس وے په رضا مې به کښې نهٔ ښول
د مغل پـــه لـــوری دوه قـــدمـــه ما
مـــګـــر بـــخت راســـره بیا مدد اغاز کا
چې فـــارغ کـــا د انـــدوه له سُمه ما

د خېبر د جنګ ۱۶۷۲ء \ ۱۰۸۳ھ نه جوښت وروستو فدَائ
خان د اورنګ زېب بادشاه په حکم د پېښور په لور را روان شو ـ

تاریخ مرصع لیکی :-

" زهٔ ( خوشحال خان ) په نظام پور کښې ناست ووم ـ په دا مېنځ
کښې فدائی خان خزانه راوړه ـ زما اولس ووئېل چې خزانه به ووهو
ما ورته ووئېل زهٔ اول هم د مغل داغونه په زړهٔ لرم چې بې تقصیره
ئې قید کړم ـ ولې نمک حرامی کېږی ـ څلور پنځهٔ پشته ما د مغلو
ښهٔ نمک خوړلے دے ـ القصه فدائی خان لره اشرف خان د اټک تر
سینده پورې ورغے ـ خزانه ئې ورسره پورې کړه[۱] "

خوشحال خان یو عظیم فنکار او شهنشاه فکر و سخن دے
خو مونږ دغه فنکار تر اخېره وخته د ژوند کشمکش څخه په جنګ

---

[۱] تاریخ مرصع ، ص ۲۹۸ و ۲۹۹

وینو ـ چې د مرګ تر وخته د خپل اوچتوالی احساس برقرار ساتی ـ او د حال د بدحالۍ باوجود خان د ښۀ او دلکش ژوند په تلاش سرګرم عمل لری ـ او خپل شخصیت کښې د ماضی رنګین رنګونه ډکوی ـ

چې همېش به په تسلیم راته ولاړ وو
د هغوئ مې څو ناسازې دی زغملې

د هغو د خولې کړې خبرې اورم
چې خبره ورته نۀ کړه سمـــه ما

کۀ مې لاس ورباندې بر شی هېر مې نۀ دی
ډېر سرونه به چت پت کړم پـــه مېخ چوب

د خوشحال خان د تحریک بنیاد د هغۀ خپل ذات وو ـ اجتماعی نۀ وو ـ نو په دې وجه د هغۀ په انا کښې تضاد یا انانیت دے ـ په کمترۍ کښې احساس برتری ده ـ او خان خارجی عواملو څخه نۀ سموی ـ هغه کۀ یو اړخ ته د انا سندرې وائی د ننګ و غېرت او خود دارۍ اشعار وائی ـ نو بل خوا شاهانه عظمت او لویو لویو منصبدارانو څخه قربت خان دپاره افتخار بولی ـ د درباری ژوند چمک دمک ددۀ د خواهشاتو او تصوراتو محور او مرکز وو ـ خو اوس د خوشحال خان هغه حالت نۀ وو ـ هغه په خپل ژوند کښې د تېرو وختونو رومانوی کېفیات پېدا کوی ـ او خان د هغه زوړ نواب او جاګیردار نه اوچت حسابوی ـ

چې منصب مې د مغل خوړيـــو ملک ؤم
چې منصب د مغل نشته اوس مـلـــک يم
د وښو جونګړې هسې راتـــه ښـــۀ شوې
وايم نـــاست پـــه محـــلونو د آهک يم
و مغل وتـــه خـــبرې پـــه وربـــوز کړم
سر مې پرېوزه کۀ به سر ورته بيا کوز کړم

خو د خوشحال خان دغه سوچ و فکر محض خوب و خيال وو - چې په دغه شکل صرف د خپل متضاد انا تسکين کوی - او د هغۀ هر عمل د انانيت په رنګ کښې رنګين ښکاری - هغه کۀ اوس هر څو ځان ننګيال حسابوی - ولې د تېر وخت ارمان هغه د انانيت په صف کښې ودروی - هغه خپل ذاتی خفګان ،رنجش او عناد ته د مغل خلاف پښتنی تعصب او دشمنۍ ته هوا ورکوی - او د پښتون انا او د ايمل خان او دريا خان غېرت د خپل انانيت او ذاتی مفادات نه قربانول غواړی :-

کۀ مشک وو کۀ ګوهر وو همګی لاړل خوشحاله
و ځان وته وګوره چې اوس څـــۀ عمر تېرېږی

پهٔ نا حق مې ازادۍ ته تلاش کـــړو
په زندان د اورنګ زېب ښۀ ؤم ترلے

د خوشحال په انا کښې چې څومره تضاد دے دغه به لوستونکو ته ددې څو مثالونو نه واضحه شی: -

هغه کار چې په نرمۍ تــر سره کېږي
څۀ حاجت چې رساوۀ شي تر جنګونه

کۀ په صلح کښې روزګار شي
څــــۀ حاجت د تېغ و تير

هوښيار هغه دے چې سخت جنګونه
تر خپره راولي پـــه فـــرهــنګونـه

او د دغه خيال په ضد بيا وائي :-

کۀ تل توري غشي خوري ماتې د جنګ وړي
مــرد بــه سوړ نــۀ شي له خپله انتقامه

چې څۀ دے خــو انتقام دے
د مـــــردانـــو کـــاروبـــار

څـــو وانــخـلی لـــه غليمه انتقام
مرد نۀ خوب کا نۀ خوراک نۀ آرام

پخپل ننګ و نـام چې راشم لېونے شم
خبر دار کله په سود و زيان د لک يم

خوشحال خان يو ځائے ليکي :-

بــل هغــه سړے احمق بللے بــويه

چې به دے غواړی لوئی په نسبونو

او د دستار نامه په صفحه ۵۲ وائی :-

کم ذات کۀ هر څو ښکلے وی

لکه په چار چوبۍ کښې د ګلو بوټی

خوشحال خان وائی :-

هر چا سره د ښو سلوک بائدۀ دی

په بدۍ کښې څۀ فائده ده کم سودونه

بیا وائی :-

ننګیالی چې په ننګ راشی

نۀ په زویه نۀ په پلار وی

ښۀ ځوانان به خپل هُډ پرېنږدی له لاسه

کۀ ئې سر شی د خونی زمری تر زامه

دغسې د یو قافیه ردیف دا متضاد اشعار هم مطالعه کړئ :-

د فساد فکر مې نشته خدائے حاضر دے

خپل ساعت به تېروم عمر اخېر دے

اطاعت د اولوالامر ځکه نۀ کړم

خلیفه د زمانې په زړۀ کافر دے

یو ځائے وائی :-

ما وو پیغام کړے په اولس په اشرف خان

نــــهٔ بویه د جنګ د خرخشې فکر سامان

او بیا هم په دغه موقعه وائی :-

ومې کړو اشرف وته د تورې اشارت

هېڅ عمل ئې ونکړو زما پــه نصیحت

د قېد و بند د عقوبت نه پس مونږ یو ځل بیا هغه د مغل په غېږ کښې ناست وینو - او د مغل په مخالفت د هغهٔ غتې دعوې د یوسف زو د همکارۍ او همنوایۍ عزم هغه وخت تس نس شی - چې د بهاکو خان په مخالفت اشرف خان د مغل په حمایت هارون ګودر ته راولېږی - د ۱۶۷۰ء \ ۱۰۸۰هـ د لنګر کوټ (اوسنی ګړهی کپوره ) د قلعه د تعمیر مخالفت څهٔ ځائے ونهٔ ونیسی - چې د محمد امین ملګرے او هم رکاب شی - د خیبر په مقام د مغل په شکست وریخت د هغهٔ خوشحالی د هېڅ اهمیت جوګه نهٔ شی - چې مهابت خان څخه د خپل قدیم تعلقات اظهار وکړی - او د هغهٔ د ننګ و نام او غېرت دا دعوی :-

چې نیولے مې دا هوډ د ننګ و نام دے

کــهٔ د خپلــه هــوډه واوړم کنیزک یم

اوږ ئې پورې پــه منصب په نوکرۍ شه

چې تر فهم و تـــر نظر د مغل کک یم

د ننګ و غېرت دا پېکر د اصولو دعوېدار هغه وخت د انا او خودۍ د اوچت بام نه ډېر لاندې راپرېوزی چې د شهزاده معظم شاه

عالم ، امیر خان ، جسونت سنگھ او رام سنگھ په نوازشات سرفراز شی ـ او هغوئ څخه د صلحې او همکارۍ اعلان وکړی ـ

کهٔ له خپله حقیقته درته وایم
زهٔ خانی یم د مغل نمک حلال

د خوشحال خان کلام د متضاد اثرات حامل دے ـ هغه کله خو د پښتنو صفات بیانوی او کله ئې غندی ـ د یوسف زو د احسانات باوجود هغوئ ته بد رد وائ ـ او عن چې د خپلو زامنو کله خو صفت کوی او کله ئې کنځی ـ ددې دوه رنګۍ او په انا کښې د تضاد په سبب خوشحال خان د ډېرې اوچتې پائې د شاعرۍ باوجود ډېرې زیاتې ذاتی خامۍ لری ـ چې د هغهٔ د عالمګیر شخصیت په ساخت کښې مانع دی ـ او هغه ئې د انانیت او خود غرضیت ښکار کړے دے ـ هغهٔ پښتانهٔ قبائل څان ته د خپل ذات د تحفظ دپاره راغونډول غوښتل ـ خو پښتانهٔ د هغهٔ په چال پوئې وو ـ هغوئ په دې هم پوئې وو چې د هغهٔ زامن اشرف خان بهرام خان او نمسے افضل خان د مغل منصبداران او الهٔ کار دی ـ او دے خپل انائے ذات دپاره د مغل ګرېوان څېرل غواړی د پلار زامنو مریضانه انائے ذات د ختکو خپلو کښې د دشمنۍ او د هغوئ د وحدت د پرېکون سبب شو ـ هر خېل او ګوند د بل خېل او ګوند دشمن شو ـ او فائده ئې مغل ته ورسېده ـ د حمزه او الله داد یوسف زی احسانات باوجود هغوئ د سګ بچه ، بدبخت او په نور سپکو نامو یاد شول ـ دغه وجه ده چې د خوشحال خان کردار د هغهٔ د

زباني جمع خرڅ او تصوراتي شاعرۍ په مقابل او تول سپک ښکاري او قول و فعل کښې ئې د زمکې اسمان فرق دے ـ او د وخت د مصلحتونو غلام دے ـ البته د کلام له رويه هغه د پښتو يو دروند سنګين او عظيم شاعر دے ـ مونږ د خوشحال خان د فرضي انا يا انانيت دا موضوع هم د هغهٔ په دې وېنا اختتام ته رسوؤ ـ

خلقې زما په فعل ګور ته لاړې
له د نورو و وژو ته په تلوار يم

---

# منصبداری نظام

منصب د عربي ژبې لفظ دے ـ معنٰی ئې عهده ، ملازمت یا نوکری ده ـ انګرېز لیونکے اِرُون لیکی :-

" د منصب خاوند د بادشاه د یو ملازم نه بل هېڅ مطلب نۀ وو[1] "

د مغل حکومت نه اګاهو په هندوستان کښې جاګیردارانه نظام وو ـ اکبرُ اعظم اولنے بادشاه وو چې په هندوستان کښې ئې د ایرانی طرز منصبداری طریقۀ کار رائج کړو ـ دا د ملازمت په ضمن کښې یوه داسې پیمانه وه ـ چې د مغل شاهی دربار کښې د عهدې تنخواه ، ملازمت او مراعات سلسله کښې متعین او مقرر وه ـ دا د بادشاه کار وو ـ چې یو منصب لرونکی منصبدار ته به ئې دا اجازت ورکوو ـ چې هغه به خپل ماتحت یو مقرر تعداد عسکری قوت یعنی فوځ ، الات جنګ لکه هاتیان ، اوښان ، اسونه ، ټټوان او غوی ګاډی اسلحه وغیره ساتل ـ ځینې وخت به یو منصبدار ته دا

---

[1] هسټری اف انډیا ( انګرېزی ) ګوربخش سنګهـ ص ١٩٠

اجازت حاصل وو - چې هغه یو خاص تعداد خپل خلق په حېثیت د عسکری قوت وساتی - د منصبدارانو زیات تعداد یعنی تقریباً اویا فی صد ایرانی ، پښتانهٔ ، راجپوت ، عرب او ازبک وو - د بادشاه کوشش وو چې منصبدار به ئې د بهر څوک مقرره وو - چې دغسې خپلو خلقو څخه د بادشاهت خلاف ساز باز یا بغاوت ونهٔ کړی - د مغل بادشاهانو پالیسی وه - چې مخالف به ئې په مخالف وهلو - پښتانهٔ ئې کهٔ په راجپوت او شیعه سردارانو لتاړه ول - نو د ګولکنډه اوبیجاپور شیعه ریاستونه یې په پښتنو تباه کول - هندو یې په مسلمان او مسلمان یې په هندو راجپوت وهل - دغه پالیسی د اورنګ زیب تر وخت او د هغهٔ په دور کښې هم ښهٔ په زور و شور او شد و مد جاری وه -

منصبداری رواج د بادشاه او عوام تر مېنځ نېغ په نېغه د روابط او تعلق یو اعلیٰ طریقه وه - دغه کار د جاګیرداری نظام تحت ممکن نهٔ وو - دې نظام کښې یو منصبدار دپاره د بادشاه خلاف بغاوت مشکل کار وو - جاګیرداری نظام کښې به یو جاګیردار پخپله علاقه مستقل مقرر وو - خو منصبدار به نن په یو علاقه او لږ وخت پس په بله علاقه مقرر وو - او ډېر په ګرانه به درې کاله نه زیات په یو علاقه پاتې کېدو - جاګیرداری کښې عسکری قوت د جاګیردار وو - ولې منصبداری نظام کښې عسکری قوت په حقیقت

کښې د بادشاه وو ـ یو منصبدار به چې په کومه علاقه مقرر شو ـ نو د هغهٔ ماتحت ملازمانو ته به یا خو براه راست د بادشاه له اړخه خزانې نه تنخواه ورکېده ـ او یا به چې منصبدار په کومه علاقه مقرر وو ـ نو د هغه ځائے علاقه به د هغهٔ په جاګیر کښې نهٔ وه ـ بلکې ددهٔ د فرائض منصبی د علاقې نه بهر چرته بل ځائے به ددغه منصبدار په جاګیر کښې وو ـ او د هغه جاګیر نه به ئې ټول اخراجات پوره کول ـ ددې نظام یو خصوصیت دا وو چې یو منصبدار به وفات شو ـ نو د هغهٔ د وفات څخه سم به متصدیان راغلل د هغهٔ ټول منقوله او غېر منقوله جائیداد (محال) به د سرکار په حق کښې ضبط شو ـ دې دپاره یو منصبدار به چې څومره دولت تر لاسه کړو ـ نو په دغه دولت به یې په خلاص مټ د عېش و عشرت بازار ګرم ساتهٔ ـ او دغسې د مغل حکومت منصبدارانو او امرایانو د عېش او عشرت ژوند تېرولو ـ ځکه چې منصبداری رواج د مورثیت نه بېخی مبراء وو ـ د هر منصبدار تقرری د بادشاه د مرضی او خوښون مطابق وه ـ او د هر منصبدار تنخواه او مراعات د بادشاه په مرضی وو ـ دغسې چې مونږ وګورو ـ نو د مغلی حکومت نظام په درې اهم برخو وېش وو ـ منصبدار ، امراء او امراء اکبر ـ د خوشحال خان ډېر شعرونو نه برېښی چې منصبدارانه ژوند ئې د عېش و عشرت او تنزل نه وروستو د تنګدستی وو ـ

د منصبداری نظام دوران د فوجی او غېر فوجی فرق او تميز نهٔ وو ـ د بادشاه مرضی وه ـ چې يو منصبدار فوځدار مقرر کړی ـ يا فوځدار په بله موقعه د نور قومی معاملات مشر کړی ـ راجه ټوډرمل د مالياتو مشر وو ـ ولې په ځينې موقعو هغه د فوځ لوئے کمانډر هم وو ـ ابو الفضل د دربار اکبری مؤرخ او سکالر وو ـ خو د دکن په مهم د فوج جرنېل وو ـ راجه بيربل د دربار ټوقمار ؤو ـ خو د پښتنو خلاف په مهم مقرر شوے وو ـ هر امير او منصبدار د بادشاهی دربار نوکر وو ـ او چې د بادشاه د طرف نه به کوم فرائض ورپغاړه شول ـ د څهٔ ډيل نه بغېر به ئې په دغه احکامات عملدرآمد کوؤ ـ

د اکبر بادشاه په زمانه کښې د ټولونه کم منصبدار شل تنی وو ـ او زيات نه زيات څلور سوه تنه وو ـ د پنځهٔ سوه نه پورته تر دوه نيم زره " امراء " او درې زره نه پورته امراء اکبر وو ـ چې په دغه دور بهګوان داس او بيا د هغهٔ زويې مان سنګهـ اووهٔ زره تنی سرداران يا امراء اکبر وو ـ البته د هر بادشاه زامنو دپاره د عسکری قوت او ملازمانو څهٔ خاص تعداد مخصوص نهٔ وو ـ بلکې هغوئ شل زری ، پنځوس زری اميران وو ـ امراءيان د حکومت ستنې وې ـ او د بادشاه په دربار کښې د هغوئ موجودګی هره لمحه ضروری وه ـ ځکه چې د دوئ په وساطت به د بادشاه احکامات منصبدارانو يا

فوځدارانو ته رسېدل ـ او د دوئ ذمه واری وه چې د مختلف صوبو د حالات نه ځان باخبر ولری ـ

د منصب نه علاوه د ټولونه لاندې سرکاری ملازم ته به یې روزندار وئېل ـ د اکبر اعظم دِ وفات ۱۶۰۵ء نه لږه موده اګاهو یعنی ۰۴ — ۱۶۰۳ء دوران د ذات و سوار طریقه رائج شوه ـ او بیا وروستو منصبدار یا امرایانو څخه د ذات و سوار رواج عام شو ـ دغسې د جهانګیر شاهجهان او اورنګزېب په زمانهٔ حکومت کهٔ یو اړخ ته د امراء په ذات و سوار کښې زیادت راغلو ـ نو بل اړخ د کم نه کم منصبدار د ملازمانو تعداد کښې هم فرق پېدا شو ـ او د شل تنی منصبدار ځائے یکصدی ونیو ـ د جهانګیر په زمانه خان جهان لودی د شاه جهان په دور بهادر خان داؤدزی او د اورنګ زېب په وخت دلېر همت خان داؤدزی پښتانهٔ امراء او د مغل حکومت محکم ستون او جرنېلان وو ـ

د اکبر په زمانه د څلور سوه دولس منصبدارانو ( دوصدی تا پنځهٔ زری ) په فهرست کښې د باز بهادر او دولت خان لودی نه علاوه نور اووهٔ پښتانهٔ معمولی منصبداران وو ـ د شاه جهان په زمانه د اتهٔ سوه دوه شپېتهٔ منصبدارانو ( پنځهٔ صدی تا اووهٔ زری ) په ډله کښې هم ډېر کم پښتانهٔ د منصبدارۍ په عهده مقرر وو ـ خو مونږ په دې فهرست کښې د خوشحال خان یا شهباز خان نوم نهٔ

وينو - ولې دې کښې هم شک نۀ ګنو چې خوشحال خان د مغل حکومت يواعلیٰ عهدېدار او منصبدار دے - لکه چې په خپله وائ :

کۀ تۀ به د خوشحال سره ياری خو په دنيا کړې
رادرومه ياره وی دې د خوشحال واړه منصب ستا

د مغل منصب مې پرېښو هسې خوښ يم
لــکــه خــلاص د لويه بنده بنديوان شی

کــۀ منصب وو کۀ خانی کۀ سرداری وه
کۀ په لاس ملک و املاک وو واؤره تېر شۀ

خوشحال خان د مغل حکومت منصبدار وو - د امراء په قطار کښې نۀ وو - ځکه خو سکندر خان ۱۶۵۴ء ۱ ۱۰٦۵هـ تا ۱۷۰۴ء ۱ ۱۱۱٦هـ د خپل پلار د منصب متعلق وائ :-

يــوسف زی ددۀ لـــه تـيـغه
خـــوار حـــېران وو استحقار
پـــه قليل منصب ئې کار کړو
بـــې کـــومـــک د صـــوبيدار

د خوشحال خان د ژوند دوه اهم اړخونه دی - منصبدارانه او شاعرانه - د منصبداری دوران د اقتدار په نشه مست او د ځوانی

په وړمو سرکش خوشحال د یوسف زی ، خلیل مومند او بنگشو د سر دشمن وو ـ او د دوئ په علاقو د مغل د منصب په زور بلوسېدل او حملې قبضه د هغهٔ عام معمول وو ـ هغه د یوسف زی د کوپرو په مینارونو جوړولو بوخت وو ـ او د هغوئ د علاقو په تصرف او گرفت وو ـ

پښتانهٔ مې پــه زرگــونو دی وژلی
پــه سرونو به یې خرهٔ غوایه وُو لشلی

له تـــر اوسه د سرونو یې انبار دے
په اټک په پېښور کښې یې مینار دے

"یوسفزے باغی وو ـ په جدل مې وواهٔ ـ یوسف زے مې رعیت بادشاهی کړو ـ منارې مې د دوئ د کلو سازې کړې" ـ خوشحال خان د مغل په ډاډ مرسته او د منصبدارانه اختیار او لښکر په اساس د خپل ذاتی منفعت په توسیع سر وو ـ او هر ظلم جبر یې د خپل اغراض د تکمیل دپاره جائز گڼلو ـ

د مغل نمک مې وخــوړ شپږ پېړی
ما د زرو پکښې روغې کړې پېړی
رعیت مې یــوسـفزیــه درسـت خـټک وو
په عزت او په حرمت کښې مې څهٔ شک وو

چې تُنبې مې د خټک د وړاندې تللې
د مغل را سره مــلې وې ســورې پلې

د خوشحال خان د زور زیاتی استعمار او جبر حرکت څخه کۀ هر څو د صوبیدار کابل او حاکم پېښور مصلحت او حمایت شامل نۀ وو - ولې هغۀ د مغل په نوازشات ، مهربانی ، اعزازات او دغه معمولی منصب په بناء اوچت نه اوچت مقام ته ځان رسول غوښتل - خو د شاه جهان تنزل او د اورنګ زېب اقتدار او بادشاهت د هغۀ په امېدونو یخې اوبۀ تویې کړې - او ګرفتار شو هغۀ ته د قېد و بند دوران د خپل شاعرانه ذهنیت په اساس راپېدا شو - د جوش نه په هوش شو - او د تېر وخت په غلط اقدامات پښېمان شو- د قېد و بند د ازادی نه وروستو هغه اوس د منصبدار په ځائے شاعر وو - هغه اوس د خپلو ظلمونو کفاره ادا کول غواړی - او د شاعرانه جوش په زور د پښتنو او خصوصاً د یوسف زو دلجوئ او طبع تسلی کول غواړی - چې د ژوند په دغه منصبی سرکاری برخه کښې ئې د پښتنو خلاف هر عمل حاکمانه ، جابرانه ، متعصبانه او زهرقاتلانه وو - خو هغه اوس مظلوم وو - او د مظلوم پښتنو د داد او مرستې پامته دار وو - چې ظالم مغل نه د ظلم بدل واخلی - خو

هغه اوس ځانته يوازې توره په لاس وو ـ او د وخت خود غرض ملګری او نوکران ترې جدا وو ـ

نن د واړو پښتنو پـه ننـــګ ولاړ يم

دا چې هسې په هر در هر درنګ ولاړ يم

خوشحال خان د نورو ډېرو ذريعو او منابعو په حواله لکه د عبدالقادر خان ( بن خوشحال خان ) نجيب سربندی ، غلام محمد ملتانی ، ګوپال داس ، سردار شېر محمد خان ، فراقنامه خوشحال پټه خزانه ،مناقب جميل بېګ از ميان شمس الدين ، حيات افغانی تاريخ مرصع ( هوتی نسخه ) کفايه شعبی وغيره " خوشحال بېګ " دے ـ

اوس کۀ دغه خوشحال خان واقعی " خوشحال بېګ " وی ـ نو بيا به د بادشاه نامه او شاه جهان نامه په صفحات او فهرست کښې د منصبدار پـه حېثيت د خوشحال خان يا خوشحال بېګ نوم لټول وی ـ ددغه دواړو کتابونو په فهرست کښې يو حکيم خوشحال ولد حکيم همام د هزاری ذات په منصب دے ـ چې ١٦٢٨ء ا ١٠٣٧هـ کښې يې ذکر دے ـ او دغه زمونږ د خوشحال خان د منصبداری نه ډېر اګاهو دے ـ دوېم خوشحال د دهلی قاضی وو ـ ډېر متقی او پرهېزګار سړے وو ـ چې ١٦٥١ء ا ١٠٦٠هـ کښې پانصدی منصبدار وو ـ درېم خوشحال بېګ خوانده مرزا رستم او بل

خوشحال بېګ قاقشال وو ـ چې دواړه بالترتيب شپږ صدی
منصبداران وو ـ خو ددې څلور واړو خوشحال بېګ د هندوستان د
مغربی سيمو مهمات څخه تعلق نهٔ وو ـ البته ددغو دواړو سرکاری
او غېر سرکاری تاريخونو په فهرست کښې زمونږ د توجو مرکز يو
بل خوشحال بېګ راځی ـ چې هغه د مغل د ملازمت ضمن کښې د
خپل اصل نسل يا ذات په اندراج کښې څان کاشغری ښائ ـ د
"بېګ" نسل کهٔ يو اړخ مغلستان کښې اباد وو ـ چې د هند د مغل
ورڅخه تعلق وو ـ او کاشغر څخه جوخت پوله په پوله علاقه وه ـ
نو د کاشغر او مغلستان نه علاوه "بېګ " قوم په ازبکستان ، ترکی او
ځينې نورو ډېرو علاقو کښې هم سکونت لری ـ د تارا ګړهـ د فتح
نه وروستو کهٔ مونږ يو پلؤ خوشحال خان د شاهِ جهان له اړخه په
انعام و اکرام مشرف وينو ـ نو بل پلؤ دغه خوشحال بېګ کاشغری
هم په اعزازاتٌ مرحمت کېږی ـ د بلخ و بدخشان په مهمات کښې
هم دغ. واړه شخصيات شامل دی ـ او په يو موقعه لاهور کښې يې
بادشاه د منصب په اضافت او مراعات سربلند کوی ـ دواړه تر اخېر
وخت د شاه جهان وفادار منصبداران دی ـ دواړه د تارا ګړهـ ،بلخ
و بدخشان او قندهار په مهمات کښې شامل ښکاری ـ او لکه چې
دستور وو ـ د شهزاده او امراء تحت به چې کوم لښکر د يو علاقې
په مهم روانېدو ـ نو د مرکزی حکومت د عسکری قوت په امداد به

ددغه سیمو د منصبدارانو عسکری قوت هم شامل وو ـ د خوشحال خان او خوشحال بېګ کاشغری دواړو سیاسی منصبی او ملازمتی ژوند ۱٦٤۰ء \ ۱۰۵۰ھ نه وروستو شروع کېږی ـ او دغه وخت نه اګاهو يې هېڅ سیاسی او مهماتی حېثیت نشته ـ د شاه جهان ګرفتاری څخه دواړه په زوال شی ـ او د منصبدار په حېث د ورکې په تیرو کښې شی ـ

مونږ کهٔ د شېخ بهادر بابا المعروف ابک بابا او شېخ رحمکار المعروف کاکا صاحب د کرامات څخه عقیدت لرو ـ او د پیر و مرشد د اعلیٰ مرتبې په منصب يې سرفراز ګڼو ـ او کرامات نه يې انکار نهٔ کوؤ ـ نو مونږ مجبور یو چې د حضرت بهادر بابا د څلور خاص خلفاء سلطان صدرالدین ، اخون میان داد ، اخون شرف بلخی او میان ولی د مناقبات په حواله د سید عبدالله شاه بخاری د مجموع البرکات چې :-

" و در آن زمان اکور خان نام که جد کلان خانوا دهٔ ختک بودند ـ و از طرف هند آمده ، و در ملک مذکور سکونتے کردند ـ و هر جانب راهزنی کردند ـ و عالم از وے تنگ آمده[1] "

---

[1] (الف) تاریخ بدرجهان قلمی نسخه پښتو اکېډیمی نمبر ۸۳۸ ص ۱۱۱

(ب ) فجر من الله کاکا خېل المشهور سپین دادا قلمی نسخه ، ص ۳۱

او د میان محمد بادشاه د تاریخ بدرجهان او مناقب شیخ رحمکار مطابق چې انور خان المعروف اکوړ خان د هندوستان نه راغلے وو ـ اتفاق ولرو ـ او د حقیقت نه انکار ونکړو ـ

د خوشحال نوم څخه د " بېګ " کلمه شخصی نۀ ده ـ خاندانی ده ـ خوشحال خان ، خوشحال بېګ یا خوشحال بېګ کاشغری هم د یوشخصیت مختلف نومونه دی ـ چې د وخت ر ضرورت مطابق په مختلف شکل درج دی ـ لازمی ده ـ چې د پښتنو په سیمه د خټک قبائل " خان " وو ـ او د شاعری خطابت یې هم پښتنو طرف دے ـ او پښتو کښې ده ـ د اصل نسل او ذات په لحاظ به " بېګ " وو ـ او د قومیت په لحاظ به "کاشغری " وو ـ د زمان و مکان او د وخت و ځائے مطابقت څخه څرګندېږی ـ چې د پښتو ادب خوشحال خان هم دغه خوشحال بېګ کاشغری دے ـ صرف د تاریخ مرصع بادشاه نامه ، شاه جهان نامه ، آداب عالمګیری ا ماثرالامراء وغېره کتابونو په انداز بیان او طرز تحریر کښې فرق ا بېلتون دے ـ

# تضادات

چې مغلو سره کښېناستې مغل شې
د افغان سره کۀ کښېنې نور افغان شې

خوشحال خان د پښتو ژبې عظیم شاعر دے - ددۀ په شاعرۍ کښې کۀ یو اړخ د ښکار او باز و شاهین خبرې دی - نو بل خوا زمونږ دغۀ شاعر یو ښۀ سیاح او سېلانے دے - چې مونږ ئې کله په مېدانی سیمو او کله د اوچتو غرونو په مورګو ناست وینو - هغه کۀ یو طرف ته د انسان نو بل طرف د مارغانو ماهر امراض او طبیب و حکیم دے - هغه کله خو د اخلاقیات ، اجتماعیات درس انسانیت ، تواریخی واقعات ، مذهب او تصوف او کله د جنسیات اود مستۍ رندانه خبرې کوی - هغه کله خو د ننګ و غېرت او کله خپل دشمن څخه د رفاقت نمک حلالۍ او دوستۍ سندرې وائ - ځینې وخت د پښتنو تعریف او بل وخت ئې بد رد وائ - په ځینې موقعو د خټکو ، یوسف زو ، بنګښو او نور قبائل صفات بیانوی -

او بیا په بله موقعه یې ذم ، هجو او غندنه کوی ـ زمونږ ددې عظیم شاعر په " خود " کښې چې څومره زیات تضاد دے ـ د پښتو ژبې د بل شاعر په " ځان " کښې دومره زیاته دوه رنگی نشته ـ

د خوشحال خان د شعر و سخن په اساس د تاریخ مرصع مؤلف افضل خان هم دغه طرز په نثر اختیار کړے دے ـ د هغهٔ تاریخ مرصع (۱) د خواجه نعمت الله هروی د مخزن افغانی د فارسی نه څهٔ برخه پښتو ترجمه ده ـ (۲) د مغل تواریخی واقعات ۱۷۲۴ء \ ۱۱۳۶هـ پورې ـ (۳) د پښتنو د اولیائے کرام حالات او (۴) د مناقب شیخ رحمکار از عبدالحلیم گل د فارسی نه پښتو کښې د څو مناقبو ترجمه ده ـ

تاریخ مرصع د ډېر غیر اهمو تاریخی واقعات نه ډکه ده ـ چې د پښتو د یو طالب علم دپاره دغه غیر ضروری واقعات اهمیت نهٔ لری ـ

د تاریخ مرصع د واقعات کافی برخه د درې اهم کسانو (۱) خان علین مکان ( خوشحال خان ) (۲) خان جنت نشان (اشرف خان هجری ) او (۳) مؤلف به ذات خود څخه تعلق لری ـ د خان علین مکان څخه دخپلو زامنو ، اشرف خان څخه د خپلو ورونو او مؤلف افضل خان څخه د ترونو تربورانو د دشمنی ذکر دے ـ

د خېبر د واقعې نه وروستو د خوشحال خان په څه خاص اهم جنګ کښې شرکت نشته ـ ددې کتاب زيات واقعات افسانوی رنګ کښې دی ـ خو د افسانې تنه بوده هم شاړه او تس نس اودلې شوې ده ـ چې ځينې وخت لوستونکی په دې شش و پنج کښې مبتلا کړی ـ چې هغه د کافی لوست باوجود تشنګی محسوسوی ـ

د خوشحال خان د مرګ وجوهات يا ددهٔ لاش دې متعين ځائے ته راوړل يوه معمه ده ـ لکه چې عبدالخالق خليق " د رحمٰن بابا د کليزې مشاعرې " د عنوان تحت ليکی :-

" ددې سلسلې اوله مشاعره مو دخوشحال بابا په قبر وکړه ـ دا داسې وخت وو ـ چې د خوشحال بابا نمسو ته دا هم نهٔ وه معلومه چې زمونږ د نيکهٔ قبر کوم ځائے دے[1] "

ښاغلے محمد جاويد خليل هم ليکی :-

په دغه وخت ( ۱۹۳۴ء ) کښې د جرګې نوم مرکزی پښتو ادبی تولنه نوښار وو ـ هم په دغه کال جرګې يوه اهمه اودرنه غونډه وکړه ـ په دې غونډه کښې د خوشحال بابا د قبر نشاندهی وکړے شوه[2] ـ

---

1 پښتو اپرېل مئ ۱۹۷۱ء پښتو اکېډيمی پېښـور ، ص ۱٦٦

2 په صوبه سرحد کښې د مختلفو پښتو ادبی ټولنو او جرګو تنظيمونه او د دغوئ کار ، پښتو اکېډيمی پېښور ، ص ۳۵

ددې مطلب دا شو - چې دوه نیم سوه کاله پس دا پته لږی چې د خوشحال بابا قبر په فلانی ځائے کښې دے -

د خوشحال بابا متعلق د علامه اقبال هغه اشعار چې بال جبریل کښې د " خوشحال خان کی وصیت "

قبائل هون ملت کی وحدت مین گم

کـــه هـــو نـــام افغانیون کا بلند

د موضوع تحت موجود دی - هر کله چې د خوشحال خان دغه وصیت په تاریخ مرصع کښې نشته - نو نهٔ پوهېږو چې علامه اقبال د هغهٔ د وصیت دغه ترجمه کوم ځائے نه وکړه - او بیا په تېره تېره د هغهٔ د مرګ په وخت هغهٔ څخه یو زوئے هم په موقعه موجود نهٔ وو -

عبدالقادر خان ختک وائی :-

خدائے ئې تل لکه خپل نوم لره خوشحال

خـــوشحـــالی ئې په نصیب کړه لا یزال

خـــرد منـــد ، نېکو سیرت ، نېکو مقال

خود پوهېږی هیـــڅ پښتون یې نهٔ وو سیال

په وطن کښې مسافر غـــوندې وفات شوې

خپل خـــانه درځینې واړه پسې شا شوه

د اشرف خان هجری دخوشحال خان د مرګ د مرثيې څو شعرونه داسې دی :-

يـعـنـی نـن هـغـه امام د ننګيالو
پـه ډنبره غريب ولاړ ډکه يې خوا ده
نهٔ يې زويه پرې حـاضر نـهٔ برادر وو
ساه يې قبـضـه لـه غمونو په صحرا ده
نـهٔ ئې مخ پـه سترګو وليدو د خپلو
نهٔ يې کړې چا په رنځ کښې دلاسه ده
يـا يې رب پـه حال خبر يا زهٔ پوهېږم
چې لـه خـپـلو يې ليدلې څهٔ جفا ده

او بيا د حېرانتيا خبره خو دا ده چې د هغهٔ زامن او نمسی زياتره عالمان او فاضلان وو ـ دې دومره علمی کورنۍ کښې يو کس هم خپل کتابونو کښې د هغهٔ د قبر نشاندهی کړې نهٔ ده ـ علامه اقبال د خوشحال خان کی وصيت ( بال جبريل) په شان د نور ډېر مشاهير او اکابرينو ذکر هم کړے دے ـ د هغهٔ د شاعرۍ دغه مخصوص فن وو ـ دا د هغهٔ د ذهن ذاتی پېداوار او اختراع ده ـ د هغهٔ دغه نظمونو کښې پرندے کی فرياد ( بانګ درا ) سلطان ټيپو کی وصيت (ضرب کليم ) مهراب ګل افغان کے افکار ( ضرب کليم ) تاتاری کا خواب ( بال جبريل ) طارق کی دعا ( بال جبريل) هارون

کی اخری نصیحت ( بال جبریل) د خصوصی لوست قابل نظمونه دی ـ

مونږ د تاریخ مرصع په وساطت دې نه هم نهٔ خبرېږو چې مغل اشرف خان ۱٦۸۱ء \ ۱۰۹۲هـ کښې ولې گرفتار کړو ـ آیا ددې وجه په فدائ خان باندې د ارباب مستجاب خان بې گناه قتل وو ـ یا د حضرت ضیاء الدین قتل د هغهٔ د گرفتارئ سبب شو ـ د انسه خدیجه فېروز الدین ۱۹۴۲ء کښې د پنجاب یونیورسټئ نه د ډاکټورېټ د ډگرئ اخستو نه وروستو مونږ د خوشحال خان په موضوع کافی معلومات وینو ـ ولې دغه ټول تحقیقات د خوشحال خان د اشعار یا تاریخ مرصع په اسناد دی ـ او هم یو قسم واقعات د الفاظو په جامه کښې یو یا بل قسم بیانېږی ـ تاریخ مرصع د تسلسل په لړئ پېږلی واقعات نهٔ دی ـ او یو لوستونکی دپاره دغه تس نس او گډ وډ واقعات په یو تار پېرودل گران کار دے ـ

تاریخ مرصع چې کوم حالات قلمبند کړی دی ـ نو هغه محض افضل خان د تواریخی حقائق شکل د خپل مقاصد د تکمیل دپاره مسخ کړی دی ـ د بهرام خان خلاف د منافرت بیانات افسوس ناک او قابل مذمت دی ـ او دغسې د افضل خان غوندې کشر د خپل مشرانو په شان کښې د گستاخانه الفاظ استعمال ښهٔ نهٔ ښکاری ـ د خوشحال خان اوافضل خان شاعری او نثری تحریرات

دواړه د فن تاريخ نويسی د اداب برخلاف دی - راځئ چې دلته د خوشحال خان د تضادات يو څو موضوعات وګورو -

**پښتانهٔ** :- د خوشحال خان په شاعری کښې ډېر ځايه د پښتنو تعريف دے - او هغوئ څخه د قېد و بند نه پس د خپلې همکاری او دوستی اعلان دے :-

چې مغل وته مې وتړله توره
درست پښتون مې و عالم وته ښکاره کړو
برخه يې د تيغ راکړه په اصل کښې پښتون يم
پلار په نېکهٔ نهٔ يم بې دولته بې حشمته
چې د روه په ملک کښې ښهٔ پښتون يادېږی
نن مومند ، بنګښ ورکزی يا افريدی دی
پښتانهٔ چې نور څهٔ فکر کا ناپوهـ دی
بې له تورې خلاصے نشته ډېر ارمان
درست پښتون له کندهاره تر اټکه
سره يو د ننګ په کار پټ او اشکار

نن د واړو پښتنو په ننګ ولاړ یم
دا چې هسې په هر در هر درنګ ولاړ یم
هره چار د پښتانهٔ تر مغل ښهٔ ده
اتفاق ورځخه نشته ډېر ارمان
د بهلول او د شېر شاه خبرې اورم
چې په هند کښې پښتانهٔ وو بادشاهان
یا هغه پښتانهٔ نور وو دا څهٔ نور شول
یا د خدائے دے اوس دا هسې شان فرمان
په دا سن چې تر شپېتهٔ مې زیاتی دوه دی
پښتانهٔ مغل په څو سره اخته دی
دا څلور پنځهٔ کلونه د فتور دی
چې مغل د پښتانهٔ په تېغ چور چور دی

خوشحال خان چې د پښتنو د مرستې حمایت او همنوایۍ نه ځان محروم ووینی ـ او پښتانهٔ د هغهٔ په لا حاصل کوشش راغوندې نهٔ شی ـ نو هغه د پښتنو خلاف زبان درازی او پوچ ګویی خپل مشن وګرځوی ـ پښتانهٔ د هغهٔ په دې دومره ښکلو الفاظو او کلام ولې راغونډ نهٔ شول ـ او د هغهٔ زوردار خطابت ولې مقبولیت حاصل نهٔ کړو ـ دا موضوع ځان له یو لوئے تحقیق غواړی ـ آیا دے په اصل

نسل مغل یا کاشغری وو ـ یا یې د وخت د مصلحت په بناء دوئ څخه څۀ چل ول مراد وو ـ اخېر داسې څۀ وجوهات وو چې پښتنو د اېمل او دریا خان په اواز خو لبیک ووې ـ ولې د خوشحال خان د زړۀ مراد او ارمان یې پوره نکړو ـ

پښتانۀ په عقل پوهه چې ناکس دی
کوته سپی د قصابانو د جوس دی
پښتانۀ واړه بد خوئ دی
کور په کور کاندې غورزی
پښتانۀ لکه مګس وربانديې ګرزی
ورته ایښې و مغل د حلوا تال دے
مغل بې قدره پښتون بې ننګه
توبه له تورې توبه له جنګه
اتفاق په پښتنو کښې پیدا نۀ شو
ګنه ما به د مغل ګرېوان پاره کړو
ځېنې څه لوئې دعوې لرم په زړۀ کښې
ولې څۀ کړم چې پښتون واړه بې ننګ دے
لویه چار د پښتانۀ د لاسه نۀ شی
مګر چار ئې اسمانی ده کمه کوزه

قديمی د پښتنو جهل خرتوب وو
اوس په طمع په حرص درومی له ميانه
کۀ په نور خلقو کښې ښۀ سړی موندل شی
ولې ښۀ سړی به لږ وی افغانان
چې په خپله افغانی ژبه نادان دے
په ترکی خبرې څۀ وائې افغان ته
لکه خوند د هريړې په هريړه کښې
هسې کار دے د افغان د جهالت
پښتانۀ د بدنيتی د خصومت دی
په حيا په شجاعت ئې وکړو شاش
پښتانۀ لره لوئے عيب دے کۀ ئې گورې
چې نازېږی د مغل په لقبونو
سر يې هورې قندهار بل يې دمغار دے
تر دا مېنځ همه مېشتۀ واړه عبث دی
تر مغلو پښتانۀ په توره ښۀ دی
کۀ په پوهه پښتانۀ وے څۀ هوښيار
نن به درست د هندوستان دولت د دوئ وو
پښتانۀ کۀ کم همت نۀ وے جهال

خدائے دې ورک د پښتنو کا دا درې توکه
یو بدجهل . بل بد نیت دریم نفاق
زۀ په ننگ د پښتانۀ یم
دوئ نیولی مغلان
زۀ خوشحال خټک هغه یم قدر نشته
دا مې واړه له افغانو نه افغان شی

او یو رباعی کښې داسې گیله من دے :-

. شرم دے ننگ دے کۀ ډار د سر دے
سمه مې پرېښوه ځائے مې تل غر دے
پښتانۀ واړه د مغل ښوروا خوری
ماته ئې پاتې دا شور و شر دے

**خټک** :- دا خوشحال خان وو - چې نۀ یوازې د خپل اسلاف بلکې د خټک قوم د شناخت سبب وگرزېدو - د هغۀ په نزد ددۀ د خاندان د مرتبې اولنی څهره د اکوړ خان په سر ده -

بل نیکۀ زما ملک اکوړ چې په خټک کښې
دۀ راوړه دا برخه د لویی مقدمه

اندازه ده چې ۱۵۸۹ء کښې په اول ځل ملک اکو ته د اکوړی په مقام د پل بندی کار حواله شو - د یوسف زی په شاهراه اعظم د

کاروان د لوټ تالان الزام محض د یوسف زی د تباه کارئ او بربادئ دپاره یو جواز وو ـ د پل بندئ ذمه وارئ ، فرائض او د محصول حصول د اکوړ خان راتلونکے نسل د جاه و جلال او مراتب خاوندان کړل ـ

**خوشحال خان وائ :-**

یحیٰی خـــان د اکـــوړی وو
چـې پــه تـــوره شو سلطان

د تاریخ مرصع د بیان نه قطع نظر او د خوشحال خان ددې شعر په رڼا کښې د دوئ په خاندان کښې اول تن د اکوړ خان زوئے یحیٰی خان وو ـ چې د اکبر بادشاه (۱۵۵۶ء\۹۶۳ھـ تا ۱۶۰۵ء \ ۱۰۱۴ھـ ) په زمانه یې د مصری باندې په سیمه په یوسف زی حمله وکړه ـ او د هغوئ مشر ملک مامو ئې قتل کړو ـ د اکبر اعظم د سخت ګیر پالیسئ برعکس د جهانګیر بادشاه (۱۶۰۵ء \ ۱۰۱۴ھـ تا ۱۶۲۷ء \ ۱۰۳۷ھـ ) په زمانه حکومت د پښتنو په سیمه امن و امان قائم وو ـ ولې شاه جهان (۱۶۲۸ء \ ۱۰۳۷ھـ تا ۱۶۵۸ء \ ۱۰۶۸ھـ ) د اکبر د زمانې پالیسی دوباره اختیار کړه ـ شهباز خان د یـــوسف زی په ملک بلوسه او حماې شروع کړې ـ او د اورنګزیب (۱۶۵۸ء \ ۱۰۶۸ھـ تا ۱۷۰۷ء \ ۱۱۱۸ھـ ) په زمانه د خوشحال خان هم دغه معمول وو ـ د پښتنو په سیمه دست اندازی او د مغل د

بربریت او دهشت استحکام کښې د خوشحال خان د کورنی او د هغوئ ماتحت رعیت یعنی د خټک قوم دعسکری قوت خاص لاس دے -

شل زره ځوانان لـــرم همـــه لـــه یوه ذاته
واړه یګانه شا په خدمت کښې راته خمه

واړه دیـــرش زره ختـــک دی
درست زمـــا وو پـــه فرمان

د ختکو نه یو لک ختـــک داخل دی
نور خټک واړه تر اوسه له باطل دی

,, ملک خیرآباد واکوڑه جاگیر بادشاہی است ـ و ازقدیم الایام ما مردم را بادشاهان در تنخواه منصب داده اند ـ چنانچه خدمت شاهراه و بندوبست اولس کرده میشوده [1] ،،

ترجمه :- د خیر اباد او اکوړه علاقه بادشاهی جاګیر دے - او مونږ ته دپر پخوا راسې بادشاهانو په تنخواه دغه منصب راکړے دے - چې د شاهراه او خلقو خدمت او بندوبست وکړو -

د اشرف خان او بهرام خان اوبیا وروستو د افضل خان او بهرام خان د اقتدار رسه کشی خټک خپلو کښې دست و ګریبان کړل

---

۱ تاریخ مرصع ، ص ۴۷۲

خو چې ۱۷۱۲ء / ۱۱۲۴ھ کښې بهرام خان وفات شو ـ نو افضل خان او خټک قوم د سکون ساه واخیسته ـ

"خوشحال خان نے اکوڑہ میں پہنچ کر بہ پاس حفظان عزت آئندہ ملازمت سلطانی سے علحدہ ہونا مناسب جان کر اپنے بیٹے اشرف خان کو مختار کار ریاست بنا دیا۔ بہرام خان دوسرا بیٹا اس کا اشرف خان کے عروج منزلت سے رنجیدہ ہوکر بہ دعویٰ دستار مختاری خود باپ اور بھائی دونوں کا دشمن ہوا ـ اور بہ امداد صاحبزادہ ضیاء الدین ولد حضرت کاکا صاحب بھائی سے رزم آرا ہوا۔ جب اشرف خان نے قابو پا کر صاحبزادہ ضیاء الدین کو قید کر لیا۔ یہاں تک کہ بہ مایوسی تمام وہ جیل خانہ ہی میں بڑی سختی اور تکلیف اٹھا کر بہ قتل نفیس عذاب قید سے چھوٹا۔ اس کے بعد اگرچہ محمد افضل خان فرزندش کو خوشحال خان نے رئیس بنایا۔ مگر بہرام خان عم حقیقی محمد افضل خان نے اس بے چارہ کو بھی ایک رات آرام کی نیند سونے نہ دیا۔ حتیٰ کہ وہ خوشحال خان نامی رئیس اپنی اولاد کے بہت سے غمناک بکھیڑے دیکھ کر فوت ہوا ----- خوشحال خان کے بعد جب بہرام خان بھی مر گیا۔ تو محمد افضل خان نے بھی چندے آرام سے اوقات بسر کی ا ،،

## شېر محمد خان ګنډاپور لیکي :-

جب خوشحال خان گھر پہنچا تو اس نے اپنی جگہ اپنے بیٹے اشرف خان کو صاحب دستار اور مختار مقرر کر دیا۔ اشرف خان کا دوسرا بھائی بہرام خان اس دستار بندی اور مختاری پر باپ سے ناراض تھا۔ اور باپ اور بھائی کا اعلانیہ دشمن ہو گیا۔ کاکا صاحب کے بیٹے ضیاء الدین نے بہرام خان کی مدد کی ـ اشرف خان نے اس سبب سے ضیاء الدین کو قید کر دیا۔ اس بات سے اورنگزیب سخت ناراض ہوا۔ اور اس نے اشرف خان کو بھی قید میں ڈالی دیا ۲ ،،

د خوشحال خان په دیوان کښې ډېر کم د خټک قوم ستائینه شوې

---

۱ تاریخ ضلع پشاور ، ص ۳۷۹

۲ تاریخ پشتون ، ص ۵۳۰

ده ـ بلکې اکثر یې په بد رد او سپکو نومونو یاد کړی دی ـ د خټک په مقابله کښې یوسف زی او بنگش کۀ هر څو د خوشحال خان برخلاف او دشمنان وو ـ ولې بیا هم د گوتو په شمېر د هغوئ په تعریف کښې اشعار ضرور موجود دی ـ ولې د خټک په تعریف شاید کۀ شعر نیم بیا موندے شی ـ خوشحال خان کۀ د خټک قوم یو فرد وو ـ نو بیا د خپل قوم په بداوی د هغۀ انتها عجیبه شان ښکاری ـ او سړے په دې شک مجبور کړی چې گوندې خوشحال خان او د هغۀ د کورنۍ مشران واقعی نور نسل څخه متعلق وو ـ او د حکومت وخت له اړخه په خټک قوم محض مشران مقرر وو ـ چې دوئ خپل تحت قابو وساتی ـ او د نور پښتون خلاف یی استعمال کړی ـ

د خوشحال خان د خټک قوم د بد رد دا عمل ځینې خلق د هغۀ صفا زړۀ او سپین گویایۍ څخه مشابهـ کوی ـ خو حقیقت دادے چې هغه په کوم شکور خوری ـ د هغه شکور سپکه او بداوے بیانوی ـ چې د خوشحال خان شان ذی فهم او پوهه شاعر د شان مناسب ښۀ حرکت نۀ دے ـ

دلته د خوشحال خان د دیوان نه د خټک په غندنه دا څو اشعار ملاحظه کړئ :-

په مذهب کښې درست خټک سنی مذهب دے
اما پیر ورته له جهله لکه رب دے

ختک اوس د چا باور ورباندې نۀ شي
هم بد نیت دے هم په قول او هم مکار
د ختکو سپي بهتر تر یوسف زو
کۀ ختک دي هم په خوئ تر سپي بېکار
کۀ ختک دي کۀ بنګښ کۀ ورک زي دي
وار په وار يې په کور وشه ماتمونه
چې زما اختیار يې خور کړو
خدائے دې خوار هغه ختک کا
چې د ننګ توره دې واخېسته خوشحاله
درومه سوات ته څۀ ختک څۀ يې لښکرې
هیچا ما سره یاری نۀ کړه تر سره
ختک واړه پوز پرېکړی بوڅکی دي
د ختک اولس په ننګه نۀ پوهېږي
کار يې درست د نادیده ؤ په خصال دے
ډېرې پېښې لری حیلې مکرونه
پښتون ئې مۀ بوله بولاق هندکی دي
د ختکو په سورو باندې لعنت شه
په یوه جلویې تېښته ځان ځانی ده

خټک کله په شماره په حساب یاد وو
خټک ما د اولسونو په شماره کړو
چې یو هم د زړهٔ ساتونے پکښې نشته
توبه توبه د خټکو له اولسه
پښتانهٔ کهٔ جنګ مغل سره په تېغ کا
هر خټک نیولے مغل تر جلبونو
زویو مې خوئ د خټکو نور کړو
زما په نقش یې پورې سور اور کړو
په زرګونو راته لاف کړه اوس یو نشته
اشنائ له هر چا ښهٔ ده بې خټکه
ما وې واړه په احسان زما بندی دی
همګی یې زیست روزګار وو له کوتکه
مروت یاری ترې مه غواړه خوشحاله
هر سړے چې اوبهٔ وُښنی له اټکه
د خټک د ننګ جرګه نشته خوشحاله
راوتلی دی له کومو نسبونو

د خټکو برخلاف یو بل ځائے لیکی :-

د ختکو نه مې هومره زړهٔ ناخوښ دے
چې توبه د همګنی ختک له نامه
د نعمت په قدر هېڅ خبردار نهٔ دی
نوم ختک مې به خلاص نهٔ وی له انعامه
ختک واړه دد و دام دی کهٔ ئې ګورې
څوک به څهٔ غواړی خپلوی له دد و دامه
کهٔ زمونږ خانه نهٔ وے ختک ورک وو
د خواجه[1] په نوم اصیل دی څو غلامه
کهٔ په توره ختک خپل کړې ګوندې خپل شی
ګنه هېڅ به ئې خپل نکړې له اکرامه

تاسو کهٔ د خوشحال خان د پښتنو ښځو متعلق هغه غزل نما نظم وګورئ ـ د کوم مطلع چې په دې ډول ده :-

یو بیان به درته وایم کهٔ ئې اورې
زما دا خبرې نهٔ دی دروغژنې

نو په دغه نظم کښې هغهٔ د غلجو ، شیر زادو ، شنوارو ، فیروز خېل اکاخېلو ، بنګش ، توری جدران ، وزیر ، سارنګی ، عیسی خېل، شیتک ، ابدالی ، مهمند ، خلیل ، داؤدزی ، ګګیانی ،

---

[1] مشری

محمد زی ، خوږشکی ، لوهانی ، ماندوری ، دلازاک ، ترین ، مندړ ، بونیر ، اکوزی ، اتمان خېل ، خوګیانی او لغمانی قبائل ستر پوشي او حیاداري ښتني په داسي سپکو الفاظو لکه سپړنې ، پمنې ، خربیشی ، چینجنې ، غوشینی ، ګډ بنې ، کته سرې ، پوزې پلنې ، بخیلې ،سرکودنې ، چینګې خولې ، سرخیرنې ، خرې ، ګېډه ورې ، زیربخنې ، خیچنې ، ګندبویې، ګنده بغلې ، مچ بېزنی یادې کړی دی ـ او عن چې د ختکو ښځې ئې هم معاف کړی نۀ دي ـ بلکې د هغۀ په نزد په ذې سیمه اباد صرف د اکوړ خېلو زنانه د مېړمن جوګه او قابل دی :-

د ختکو جـــونـــه واړه غـوبنې دی
خو یـــوازې اکوړ خېلې دی مېرمـنې

**یوسف زی** :- د خوشحال خان په دیوان کښې چې څومره زیات لعن طعن او بد رد د هغۀ خپل زویې بهرام خان او یوسف زو ته وئیلے شوی دی ـ شاید چې داسې بل کس او قوم په دومره زیات سپک الفاظ یاد شوی وی ـ اګر چې هغۀ په هر چا خپل زړۀ سپک کړے دے ـ او د ا یمل خان دریا خان او خپل نمسی افضل خان نه بغېر ئې څوک هم په حیا کښې پرېښودی نۀ دی ـ خو بیا هم د یوسف زی قبائل نوم سر فهرست دے ـ د خوشحال خان د اسلاف

او یوسف زی دشمنی هغه وخت ابتداء بیا مونده ـ چې یحیٰی خان د مغل په شرارت دریائے کابل نه پورې په مصری بانډه حمله وکړه ـ او د یوسف زی یو مشر ملک مامو ئې قتل کړو ـ د یحیٰی خان نه پس چې د شاه جهان په دور کښې د خټکو مشری د شهباز خان په لاس وه نو هغهٔ د شاه جهان د پښتنو خلاف پالیسی مطابق د یوسف زی په ملک د مغل په امداد په یو منظم شکل چپاؤ او لوټ تالان شروع کړو او دغه سلسله د خوشحال خان په دور هم جاری وه ـ خو اخېر کار د لوئے الله په درګاه کښې د مظلومانو بد دعا قبوله شوه ـ او د مغل دغه آله کار د هغوئ په بند بندی شو ـ د خوشحال د قید و بند دوران چې یوسف زی د مغل حاکمانو دې سازش نه خبر شول ـ چې د خوشحال خان د کورنی خلق هغوئ یرغمال د اورنګ زیب دربار ته بوتلل غواړی ـ نو د ملک حمزه او الله داد خان د قیادت تحت یوسف زی دریائے کابل نه راپورې وتل ـ او د خپل دشمن خوشحال خان اهل و عیال یې محفوظ سیکری کاټلنګ ته ورسول ـ

زهٔ د یوسف زی په ځان زهر وم قاتل
بل مقصود مې نهٔ وو په خدمت کښې د مغل
شاباش په هغهٔ شه چې د ننګ وکا پالل
راغلهٔ یوسف زی لکه پېښ شو کار مشکل

یو وو بائیزے رانی زے ورسره مل
لوئے هلک مې واړه تر دریاب پورې وتل
لاړل تر سیکری ورسره کورونه سل
نور خټک مې واړه پخپل ځائے ودرېدل

یا

یوسف زی دی چې په ما یې منت بار کړو
لا په اکوزیو د بنګ چار ده مسلمه

د یوسف زو ددې احسان په جواب کښې یو لمحه وائ :-

د مغـــل دپـــاره مـــا تـــورې وهـلې
پښتنـــو بـــه راتـــه کـــړې ډېـــرې کنځلې
کـــهٔ مغـل سـره زمـــا د زړهٔ اخلاص وے
خدائے خبر دے کهٔ پښتون له مانه خلاص وے
چې پښتون شوم پـــه دا هسې سپینـــه ږیره
نـــور مـــې خـــدائے مکړه مغل وائم په ځیره

تاریخ مرصع لیکی :-

" دهٔ ( خوشحال خان ) ورته ووئېل چې پنځوس کاله زهٔ دولتخواه ووم - او یوسف زے باغی وو - په جدل مې وواهۀ - یوسف زے مې رعیت بادشاهی کړهٔ - منارې مې د دوئ د کلو ( سرونو ) سازې کړې - زهٔ به

گناه قېد شوم - قبیله[1] مې تفرقه شوه - په دا همه دښمنی یوسف زی مې د قبائل پکار شول - اوس زۀ په کومو سترگو د یوسفزیو دښمنی کومه[2] "

د قېد و بند د ازادی نه وروستو د خوشحال خان په صلاح مصلحت اشرف خان د خټکو مشر نامزد شو - اوس کۀ یو اړخ د هغۀ د مرضی مطابق اشرف خان یا بیا وروستو بهرام خان یا افضل خان د مغل منصبداران دی - نو بل اړخ چې خوشحال خان د اېمل خان او دریا خان د مغل خلاف فتوحات نه خبر شو - نو د هغوئ د ملگرتیا غزلې ئې شروع کړې - خو هر کله چې د هغۀ دغه فصیح و بلیغ بیان او مخاطبت د پښتنو په هېڅ وگړی اثر ونکړو - نو دغه ناکام و نامراد جنگجو سردار یو ځل بیا د مغل په نوازشات او سروپائے په قبولیت مجبور شو - دغسې د قېد و بند د آزادی او د یوسف زی بې حده احسانات باوجود یې د یوسف زی او پښتون قبائل خلاف د ستغو سپورو او نازیبا الفاظ استعمال اغاز کړو -

یوسف زی ننگیالی پښتانۀ نۀ دی

د بـې ننگو پښتنو له مېنځه ووځه

د مغل په طباح ډېر یوسف مندڼ دی

لـکه وری مچ ډېرېږی درنک تر درنک

---

[1] خوشحال خان اکثر ځایه "قبیله " په معنٰی د خپل خاندان ښائ -

[2] تاریخ مرصع ، ص ۲۹۵

یوسف زی په شماره تر حساب تېر دی
اما واړه ګاؤ خرونه دی کۀ ډېر دی
کۀ په خوله کلمه لولی مسلمان دی
په عمل کښې یوسف زی لکه ددان دی
واؤرئ یارانو چې خوشحال خټک څۀ وائ
د سپی اشنائ ښۀ ده نۀ یاری د یوسف زی
ملک د سوات د ملوکانو د نشاط دے
په دوران د یوسف زیه وران رباط دے
چې د سوات د سیمې خاورې خوشحال بوئ کړې
یو سړے به ځینې نۀ وی وفادار

یا

د سوات خاورې ګنده په کار د کشت دی
یا له ځایه یوسف زی بد سرشت دی
پښتانۀ واړه نادان د جهل کان دی
کۀ یې واؤرې یوسفزیه په بل شان دی

د خوشحال خان خټک په کلام کښې ډېر زیات د یوسف زی مذمت او لږ ځایه د هغوئ تعریف دے :-

کۀ د سمې کۀ د غرۀ دی یــوســفزی
همګی زمـــری دی مـــۀ یــې وه زوال
یــوسف زیــه کــۀ وهــلې نۀ ده توره
په هوئے هوئے شرکت لری بلا یې دوره

د خوشحال ددې شعر نه صفا معلومېږی چې اول د یو لکهـ خټک قبیلې مشر وو ـ خو د قېد و بند دوران د یوسفزی همنوائ هغه اوس ځان ددغه یو لکهـ خټک قبیلې پځائے د نهۀ لکهه یوسف زی قبیلې مشر حسابوی ـ

نو لکی شوم هــلـــه لــک ووم
یــوسـفزی شــومــه خټک ووم

**بنګش** :- د یوسف زی نه علاوه بنګش هم د خوشحال خان د نشتری ژبې د ګوزار نخښه او موخه دی ـ د بنګش او خټک دشمنی اګر چې د خټک د کوهاټ په سیمه قبضې څخه سم ابتداء مومی- خو دغه دشمنی د قبیلوی جنګونو یوه کړی وه ـ چې هره قبیله یو زمانه په زیات نه زیاته علاقه د ګرفت اوقبضې کوشش کښې وه ـ د شهباز خان بر سر اقتدار راتګ څخه دغه قبیلوی دشمنی هغه وخت په ذاتی منفعت او مفادات بدله شوه ـ چې شهباز خان په اول ځل تری بولاق د مغل نه په اجاره واخېستل ـ اوددې علاقې د نظم و

نسق او بندوبست دپاره يې خوشحال خان مقرر کړو ـ د خوشحال خان کوشش وو چې تری بولاق د مغل په امداد خپل جاگير وساتی ولې بلخوا بنگش هم ددغه سيمې دعوېدار وو ـ او کوشش ئې وو چې هغوئ تری بولاق خپل ماتحت ولری ـ او دې سلسله کښې د مغل مرسته حاصل کړی ـ تری بولاق کۀ کله د خوشحال خان ،اشرف خان يا بهرام جاگير وو ـ نو کله د بنگش په اجاره وو ځکه چې :-

" محال مذکور ( تری بولاق ) چې بنگش سره پېوستون لری[۱] "

عن چې دغه علاقه د رام سنگهـ ، ديولبارس خان ، شير محمد خان بنگش هم جاگير پاتې شوے وو ـ د تری بولاق علاقه د بنگش او خټک دواړو قبيلو د سردارانو تر مېنځ د کشمکش مرکز وو ـ او د مغل مقرر د دواړو قبيلو د مشرانو دا کوشش وو چې د مغل په وساطت دغه سيمه خپل مقبوضه جاگير وساتی ـ دغه وجه ده چې دغه سيمه د دواړو قبيلو تر مېنځ د جنگ و جدال اماجگاه وه ـ او د دواړو ډلو د خود غرض نامزد مغلی جنگجو سردارانو ذاتی رنجش د پښتون د بربادۍ او د مغل د برترۍ اساس گرزېدو ـ

۱۶۷۲ء \ ۱۰۸۳هـ او ۱۶۷۳ء \ ۱۰۸۴هـ کښې د اورنگ زېب مغل لښکر بالترتيب د خېبر او گنداب په مقامات د اېمل خان او

---

۱ تاريخ مرصع ، ص ۴۴۳

دریا خان د پښتون لښکر نه مسلسل شکستونه وخوړل ـ خوشحال خان چې د پښتنو دغه کامیابی ولیده ـ نو حسد او خواهش ئې راپیدا شو ـ چې مغل نه د موقعې د نزاکت په بناء د خپلې معزولی بدل واخلی ـ هغهٔ د ځینې خټک او افریدی ځوانانو په امداد او کومک د پښتنو ځینې کلی لکه پیر پیائ ، خېر اباد ، اسوړی ، ډنگرزی ، شیدو او نرې کلی وسوزول ـ او د خپل انتقام اور یې د بې گناه پښتنو د کلو په لوټ تالان او تباهی سوړ کړو ـ هغهٔ د نوښار په قلعه هم حمله وکړه ـ او دغلته څو متعین پښتون سپاهیان او د هغوئ اهل و عیال د هغهٔ د انتقامُ ښکار شول :-

بیا له پسه د نوښار د کوټ جنگ وو

چې مې وکېښ تـر مغلو خپل خمار

او بیا ددې په تردید کښې وائ :-

چې نوښار مې واهٔ کوهاټ مې پرېښو

له هله زمـا دا کـړهٔ وو د نـادان کړهٔ

د خېبر د واقعات نه وروستو د مغل پښتون تر مېنځ جنگ یو عام معمول وو ـ خو مونږ یو ځائے هم خوشحال خان مغل لښکر څخه براه راست په جنگ نهٔ وینو ـ دکوم دعوې چې هغه د شاعرۍ په خیالی دنیا کښې بار بار کوی ـ او زمونږ جذبات راپاره وی ـ البته مونږ ضرور دا وینو چې یو اړخ د خېبر او تیراه په درو کښې د وینو

سېلابونه بهېدل او بل اړخ خوشحال خان دسوات په سېل د یوسف زی په مېزبانی لطف اندوز کېدو ـ او د هغې باوجود مېان نور څخه په بحث و مباحثه مشغول وو ـ او د حمزه په سپکاوی بوخت وو ـ

نوره هم په مخکښې شته کۀ کم و زیاته
د بـــازونو مینـــې راوستم تـــر سواته

۱۶۷۶ء \ ۱۰۸٦هـ وو چې د خاپش په مقام پښتنو مغل لښکر ته یو بل غټې شکست ورکړو ـ چې په دغه جنګ کښې مغل سر لښکر شمشېر خان هم قتل شو ـ خوشحال خان چې د پښتنو دې لوئې کامیابۍ نه خبر شو ـ نو مغل لښکر څخه نېغ په نېغه د جنګ په ځائے یې د بنګش پښتنو خلاف فوج کشی وکړه ـ خو هم دغه کال یعنی ۱۶۷۶ء \ ۱۰۸٦هـ کښې د ګنبت په مقام یې بنګش نه شکست وخوړو ـ زخمی شو ـ او مېدان نه فرار شو ـ د خوشحال خان دغه جنګ د یو پښتون قبیلې بنګش خلاف وو ـ خو هغه دې جنګ ته داسې رنګ ورکوی :-

د ګنبت جنګ مې په ننګ د پښتانۀ وو
بل غـــرض مې پکښې نۀ وو نۀ مرام

او بیا دغه شکست خورده خوشحال د خپل زړۀ تسلی په دې ډول کوی

د بنګش په توره مات نۀ یم بـاور کړه
د ګنبت په جنګ مې ماتې اسمانی ده

چې بې زخمه له مېدانه ځی نا مـرد وی
زهٔ زخمی لاړم د خــان نــگهبـانی ده
نهٔ بنگش وو نهٔ ئې توره نــهٔ ئې زور وو
د مـــوشـــکـــو د سیـنیو شیطانی ده
ښهٔ ځـــوانان چې د گنبت په مېدان ومړل
د هـــر ځوان په زړهٔ کښې ننگه افغانی ده
د خوشحال اختیار تر واړه بنگش تېر دے
کـــهٔ خـــهٔ ننگه د ختک د کرلانی ده

د خافش په مقام د مغل لښکر د شکست نه چې اورنگ زېب د حسن ابدال په مقام خبر شو ـ نو په ۱۵ اکتوبر ۱۶۷۶ء ۱ ۱۰۸۶هـ یې خپل زویې شهزاده محمد معظم د شاه عالم په خطاب د پښتنو په سرکوبی مقرر کړو ـ شهزاده محمد معظم په ۲۱ فروری ۱۶۷۷ء ۱ ۱۰۸۷هـ امیر خان میر میران خپل نائب مقرر کړو ـ او امیر خان ددې اهم مشن او ذمه داری کامیابی څخه سرته رسولو دپاره د پېښور په علاقه آغر خان غوندې سخت گیر جرنېل د پښتنو په سرکوبی مقرر کړو ـ یو طرف ته د پښتنو د تباهی او بربادی د مغل دغه اقدامات او انتظامات وو ـ او بل طرف ته خوشحال خان وائ چې شهزاده محمد معظم شاه عالم ۱۶۷۸ء ۱ ۱۰۸۸هـ کښې

پښتنو څخه صلح وکړه ـ او د مغل پښتون تعلقات ښهٔ او سم شول :ـ

پـه دا کـال چـې شاه عـالم راغـے له هنده
صـلـح وشـوه د مـغـلـو د افغـان
دا سخ کال چې یې تاریخ رحمت تم(۱۰۸۸هـ) دے
پـه وکـړی مبـارک دے پـه هر شان

تاریخ مرصع د غه صلح په دې شکل بیانوی :-

ددې جنګ (ګنبت) نه پس نور (خوشحال خان) څوترې ته لاړ ـ فدائ خان تغیر شو ـ صوبیداری د کابل امیر خان د خلیل زویې بیا مونده ـ اورنګ زیب خپل زوئے بهادر شاه په صلح د پښتنو کابل صوبې ته را روان کړو ـ امیر خان ئې ورسره راوست ـ چې په اټک راغلل ـ اول یې خوشحال خان وبالهٔ ـ قول او پنجه حسب الحکم د بادشاه او نشان پروانې د جسونت سنګهـ پنجه ددهٔ په طلب ورغلې وه ـ دهٔ هم نظر په سابقه چې احسان د خلیل د اصالت خان او د امیر خان چې د قبد په وخت یې ډیر پکار شوے وو --------- امیر خان ورته وکښل ـ چې مونږ په صلح د پښتنو راغلی یو ـ کهٔ اول تهٔ ماته راشې نور پښتانهٔ به واړه ماته راشی ـ زما نقش د صوبیداری په کښېنی ـ دهٔ هم کام نا کام اختیار یې د ملازمت وکړو چې څوترې نه را روان شو ـ دا غزل ئې ووې :-

د بې ننګـــه پښتنــو لـــه غمه ما
لــوئ پـــرېښوه بیا په لاس کړه کمهٔ ما
دا هم ښهٔ کهٔ په دا کار کښې هومره کار وی
چې کـــهٔ واخېست انتـقـام لـــه ګرمه ما
چې د ننګ ګوهر مې مات شهٔ دواړه سترګې
پـــه ژړا نـــکـــړې یـــو دم بې نمه ما
پـــه هـغـو لـــویـو خـــبرو شرمسار یم
چې هـــر چـــا وتـــه وېستې له فمه ما

په پېښور کښې ئې د بهادر شاه ملازمت وکړو ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ په وخت د رخصت ئې یو اس یو سروپا یو مرصع کمر خنجر دوه زره روپۍ ورکړې ـ یو اس یو سروپا جسونت سنګه راجه ورکړو ـ یو سروپا دوه زره روپۍ امیر خان ورکړې ـ یو سروپا رام سنګه ورکړو ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ ـ خان جنت مکان اشرف خان چې د خټک په سرداری مقرر وو ـ دهٔ لره یې محال د تری بولاق ورکړل[1] "

د خوشحال خان د کلام او دتاریخ مرصع بیانات نه صفا ظاهر ده چې خوشحال خان یو ځل بیا د مغل نوکری اختیار کړه ـ او دا صلح د مغل پښتنو نهٔ وه بلکې د خوشحال خان او مغل تر

[1] تاریخ مرصع ، ص ٣٤٦ تا ٣٤٨

مېنځ واقع شوې وه ـ او د شهزاده معظم شاه عالم د سیادت او قیادت تحت امیر خان پخپل سیاسی چال او د خپل مرد اهن جرنېل اغر خان په وساطت پښتانهٔ په مختلف مواقعو لتاړ او تباه و برباد کړل ـ چې په دغه جنګونو کښې د لغمان جنګ د خصوصی ذکر وړ دے ـ

خوشحال خان ته چې د مغل حمایت او همنوائ حاصل شوه نو هغهٔ یو ځل بیا دا فېصله وکړه چې د بنګش پښتنو نه د ګنبت د شکست بدل واخلی ـ ۱۶۸۰ء ا ۱۰۹۱ھ کښې د ډوډه په مقام جنګ وشو ـ بنګشو شکست وخوړو ـ او خوشحال خان په ډېر فخریه انداز ووئېل :-

کهٔ مې پښه په ګنبت وښوئېده ځهٔ شو
پــه همت مې ثــابــتی وه د اقدام
ددې جنګ نارې به درومی پـه ملکونو
پرې خوښېږی به همه پښتون پـه نام

یا

د بنګښ نــهٔ هــومره زور وینم نهٔ توره
دا په کوم توکی له ما سره په جنګ دے

د بنګش پښتون خلاف د مغل په امداد د خوشحال خان دا کار روائی محض د هغهٔ ذاتی انتقام او منفعت وو ـ ولې هغه ورته د

پښتون په ننګ د کامیابۍ رنګ ورکوی ـ دې جنګ کښې هغۀ ته مکمل طور د مغل سردار اشرف خان امداد حاصل وو ـ او د هغۀ زویې افضل خان د مغل د یو نمائنده په حېث د مغل حربی او جنګی ساز و سامان څخه مېدان جنګ کښې موجود وو ـ دغه وجه ده چې ددې جنګ د فتح او کامیابۍ څهره د مغل د امدادی لښکر په سر ښکاری ـ او خوشحال خان بلا شک و شبهه د یو عارضی وخت او د خپل انتقامی مقاصد د تکمیل په غرض د پښتنو په صف او قطار کښې راننوتے ظاهری او لباسی طور پښتون شوے وو ـ باطنی طور د مغل وفادار نمک حلال نوکر وو ـ او چې خپل مقاصد ئې پوره شول ـ نو بیا مغل شو ـ او مونږ ته د هغۀ دې قسمه ټول اشعار وختی او د یو شاعر تصوراتی خوب و خیال څرګند او ثابت شو ـ

درست جهـــان مــې و مــغــل وتـــه خېبر کړو
ځــائے پـــه ځــائے یې پښتانۀ وته قلنګ دے
په خوب په بېدارۍ کښې همېشه په فکر ستـا دے
اورنګ وته خېبر دے و خوشحال وتـه کوهاټ دے
پښتـــانـــۀ بـــه راتـــه کـــانـــدی ښکنځلې
چـــې ئـــې لافـــې پـــــه نـاحق د ننګ وهلې

د خوشحال خان دیوان د ښکنځ په غندنه او ستغو سپورو ډک دے ـ او شاید کۀ یو نیم شعر د دوئ په تعریف درج وی ـ

د مومند سپی بهـــتر دی تـــر بنـــګښه
کـــۀ هـــزار ځـــله مومند بتر تر سپی دی
د خوشحال اختیار تر واړه بنګښ تېر دے
کـــۀ څـــۀ ننـــګـــه د خټک دکرلانی ده

هغه د بنګش خلاف په یو اوږده قصیده کښې وایئ:-

د بنګش برخه د پالې د چوکی ده
نور دې ننباسی توره په نیام
چې بې ننګه چارې کا په واړو ورشه
لکه راغے په بنګښو دا هنګام
د بنګښو شامت خپل سزا ئې دا ده
چې په غوښو یې مړبړی دد و دام
بنګش کله پښتانۀ دی ګوره څوک دی
نۀ ئې ذات نۀ ئې مذهب نۀ ئې امام
د بنګښ له بده بویه به خلاص نۀ وی
کۀ په ملک کښې سړے ووینی تمام
د بنګښ په زړۀ کښې ډېره شیطانی ده
کۀ په خوله و تاته شیخ شی د بسطام
د خټکو نېزه بازو سورو توې کړۀ
د بنګښو د سورو فوځ تمام

د ګنبت غصه مې ووته له دله
خدائے چې راکړه په دوړه د فتحې کام

## خوشحال خان د بنګښ خلاف په دستار نامه کښې ليکی:-

" دا مې هم اوريدل - چې جلال الدين د پير روښان يوه بنګښه وکړه - روښانيو ورته ووې - چې بد دې وکړل - بنګښ په خوئ کښې سپک دی - ننګ ناموس د افغانی نۀ لری - د مغلو شوروا خوارۀ دی - کۀ فرزند دې وشی - د بنګښ په بوئ به وی - د مغلو شوروا خور به شی - الله داد وزو اخېر د مغلو شوروا خور شو - د روښانيو وېنا رشتيا[1] "

د خوشحال خان د يوسف زی او بنګش نه علاوه نور پښتون قبائل څخه براه راست ټکراؤ او مخالفت نۀ وو - ولې ددې باوجود هغه د نورو قبيلو هم لږ تعريف او زياته غندنه کوی - لکه چې د اورک زی په مذمت ليکی :-

چوهړی د اپريدو نه اورکزی
افريدی کۀ همه واړه چوهړی دی
د کشتن دی د دُزدن دی د تاختن دی
بو ورکزی بل بنګښ دريم بولاق

---

[1] دستار نامه ، ص ۳۸

د ورکزی د بنګښ د بولاق نشته
یو انصاف دویم حکمت بل اتفاق
نشته بانګ د مؤذن په درست تیراه
مګر واوری بانګ د چرګ په سحر ګاه
کۀ اورک زی یې سراسر واره ګمراه دی
افریدی دی تر ګمراهو له ګمراه
د اسلام ارکان احکام حلال حرام شته
افریدی اورک زی نۀ دی پرې اګاه
نۀ ئې مونځ د جنازو نۀ ئې امام شته
نۀ زکوٰة نۀ سرسایه نۀ د زړۀ تراه
چې ګناه همېشه کا توبه یې نۀ وی
له هغه قومه خوشحال غواړی پناه
په اورکزی او په بنګښ باندې نفرین دے
له دې واړو اولسیو مې زړه شین دے

**افریدی** :- د افریدی ستائنه داسې کوی :-

کۀ میـــــاندې لنګې د افریدو دی
دوئ د تورې ، تورې د دوئ دی

د افریدو مذمت دا شان کوی :-

د تیراه اوبۀ دې وڅښې خوی دې نور شو
افریدی غوندې خبرې داولجو کړې
نس مې افریدے دے څۀ غم نۀ لری د دین
ښۀ فکر ئې لږ دے ډېر و بدو و ته شین
په شامت ئې د ماتری غر نړېږی
لا په دا د افریدیو بصر نشته
دا تاراج لکه شېخان کاندی په مکر
افریدی نۀ دی دا هسې تاراجی

افریدی په خوی پردی دی
په یاری یې نفرین
څۀ تیراه څۀ ئې وګړے
څۀ یې ملک څۀ یې آئین
نۀ یې نمونځ نۀ یې روژه شته
د شیطان لری تلقین
یو لعنت په افریدی شه
سل لعنت یې په دلېشین

**غوری خېل** :- د غوری قبائل ستائنه ملاحظه کړئ :-

عقل زور د غوریا خېل تر بنګښ زیات دے
غوریا خېل راسره هم ولاړ په ننګ دے
د نفرین لائق په نام سړبنی دی
له اوله کۀ دا نور ورپسې پس دی
پښتون په اصل سړبنے دے
یا غورغشتے دے یا بیټنے دے

د غوری قبائل مذمت وکورئ :-

غوریا خېل او بنګښ دواړه مغلی دی
همېشه ورته مغل وهلے لنګ دے
بل مې چې قوت د یوسفزیو ورکا وۀ
بل مې چې په اصل غوریا خېل پښتون ګاڼۀ
د مغلو سره ګډ په زیست روزګار کښې
غوریا خېل دی یا ترین د قندهار
نن د واړو پښتنو بهتر موMند دی
هغه هم و واړو خلقو ته څرګند دی

**نوراقوام** :- د ځینې نور اقوام ذم و هجو په دې شکل راوړي:-

کهٔ بلوڅ کهٔ هزاره واړه چرکین[1] دی
نهٔ ئې دین نهٔ ئې مذهب ستر ئې فاش
کهٔ هندی دی کهٔ سندی دی مخ ئې تور شه
نهٔ حیا نهٔ یې وفا نهٔ نان و اٰش
کشمیری کهٔ نر کهٔ ښځې واړه هېڅ دی
د مردئ ورڅخه نشته هېڅ قماش
د آدم له نسله نهٔ دی ګوره څهٔ دی
دواړه ورک شه یو اوزبک بل قزلباش
لغمانی بنګش سواتی تیراهی واړه
موټ مټر لوبیا چنه دی مهی ماش
خبر دار کله په ننګ افغانی دی
کشمیری او پکلی وال او لغمانی دی

---

1 خیرن

# اشرف خان هجري

اشرف خان د خوشحال مشر زويې وو ـ د پېدائش کال يې ١٦٣۴ء \ ١٠۴۴هـ دے ـ ١٦٦۴ء \ ١٠٧۴هـ کښې چې مغل حکومت خوشحال خان گرفتار کړو ـ او هندوستان پلۇ يې بوتلو ـ نو اشرف خان صوبيدار کابل ته ځان د خپل پلار د رهايی دپاره ورسوؤ ـ ولې هغۀ قېد کړو ـ خو د دلېر همت خان په سفارش راخلاص شو ـ بيا ئې ځان دهلی ته ورسوؤ ـ چې د خپل پلار د خلاصون څۀ بندوبست وکړی ـ خو هلته مغل سرکار دے هم گرفتار کړو ـ د شاه شجاع د شورش او د بهاکو خان يوسف زی د بغاوت دوران ١٦٦٧ء \ ١٠٧٧هـ کښې پلار او زويې دواړه ازاد شول ـ خوشحال خان دهلی کښې پاتې شو ـ او اشرف خان د مغل په امداد د بهاکو خان خلاف ځان هارون گودر (دريائے سندهـ) ته راورسوؤ ـ خوشحال خان چې هندوستان نه ١٦٦٩ء \ ١٠٧٩هـ کښې بېرته راغلو ـ نو اشرف خان د هغۀ په ځائے د مغل منصبدار وو- دې

دوران د پلار او زويې تر مېنځ په ځينې مسائل اختلاف هم راغلو ـ ولې د پلار او زوئے سازش تحت پلار ئې د پښتنو د ازادۍ د تحريک مرستيال او اشرف خان د مغل وفادار او منصبدار وو ـ د عام عوام په سترګو کښې د خاورو دوړو اچولو په نيت کله نا کله د اشرف خان په ذم و هجو اشعار هم وائ ـ ولې پښتانهٔ د دوئ په ظاهريت او باطينيت پوئې وو ـ

فدائ خان ۱۶۷۳ء \ ۱۰۸۳هـ کښې د اشرف خان په لمسون د غورى قبائل نواب مستجاب خان شهيد کړو ـ خو د اشرف خان په لمن ددغه داغ نه علاوه چې د شيخ ضياء الدين ۱۶۱۰ء \ ۱۰۱۸هـ تا ۱۶۷۶ء \ ۱۰۸۶هـ بن شيخ رحمکار حضرت کاکا صاحب د قتل کوم بل تور داغ ولګېدو ـ هغه د اشرف خان د بد نامۍ او تنزل سبب شو ـ هغه ۱۶۸۱ء \ ۱۰۹۲هـ کښې د مغل په بند بندى شو ـ او ۱۶۹۴ء \ ۱۱۰۶هـ کښې د خپل وطن نه ډېر لرې د بيجا پور دکن په قېد خانه کښې مړ شو ـ د تاريخ مرصع مؤلف خپل پلار د خان جنت مکان او خان جنت نشان په نوم ياده وى ـ خو دغه تواريخ د هغهٔ د ګرفتارى په اسباب اود ضياء الدين د شهادت په وجوهات بېخى خاموش دے ـ البته د شيخ ضياء الدين د شهادت په موضوع ميان محمد بادشاه کاکاخېل پخپل کتاب تاريخ بدرجهان

ص ۲۲۹ تا ۲۳۴ ښهٔ په تفصیل لیکی - چې مونږ ئې دلته په څهٔ اقتباسات اکتفا کوؤ -

د حضرت شیخ رحمکار صاحب په اولاد کښې ضیاء الدین صاحب د ټولو ورونړو نه مشر وو - او بعضې خلقو ورته ازاد ګل میان جی وئیل - او شیخ رحمکار صاحب په حالت د مرض موت کښې خرقه خلافت دوئ ته ورکړې وه - او په یو نظر مرحمت فیض اثر تر درجې د غوثیت پورې رسولے وو - او په موصله خپله یې پخپل ځائے د خپله لاسه سجاده نشین کړے وو ----------- او په تذکرة الامراء کښې مې لیدلی دی - چې ضیاء الدین صاحب په عهد د حکومت جهانګیر نورالدین بادشاه په دریم د رمضان المبارک د میاشتې په ١٦١٠ء \ ١٠١٨ھ کښې پیدا شوے وو -------- د سردار خوشحال خان د زامنو په مینځ کښې د بهرام خان او د اشرف خان تنازعه او جګړه پیدا شوه - او د بهرام حقیقی خور د سردار خوشحال خان لور د حضرت ضیاء الدین اهلیه وه - او خوشحال خان دوئ ته ووئیل چې زما د زامنو په مینځ کښې د جګړې فیصله به تاسو کوئ - او د بهرام د حقوق د ساتنې رعایت وساته - او چونکه هغه وخت د ټولو افغانانو مرکز، عقیدت او ارادت حضرت شیخ رحمکار نه پس د هغهٔ خلف الرشید او صحیح جانشین شیخ ضیاء الدین صاحب وو - نو په دې وجه د خوشحال

خان د وصیت مطابق د دواړو ورونو تر مینځ د جګړې فیصله په
ضیاء الدین باندې مقرر او امنا وکړه ـ چنانچه د تحقیقِ حال نه
پس حضرت شیخ ضیا ء الدین دا فیصله وکړه ـ چې بالائی علاقه
بهرام خان ته او لاندې علاقه د اشرف خان شی ـ او دواړه ئې
خپلو کښې یو ځائے کړل ـ او د دوئ صلح او مصالحت یې وکړو-
خو څۀ موده پس اشرف خان پخپله وعده قائم پاتې نۀ شو ـ او
بهرام خان ئې ملک بدر کړو ـ او چچ یا چهچهـ ته یې واستوۀ ـ اول
یې ورته زر روپۍ ماهانه وظیفه مقرر کړه ـ او بیا ئې بند کړه ـ او د
چچ خوانین هم بهرام خان سره په بښۀ شان رانغلل ـ او په دغه شان
هغه عاجز پریشان حاله ګرزیدو ـ او په ټوله علاقه باندې اشرف
خان ظالمانه طور قبضه وکړه ـ بهرام خان حضرت ضیاء الدین ته
راغلو ـ او د خپلې مظلومۍ ،غریبۍ او د اشرف خان د ظلم غدارۍ
او د وعدې نه تجاوز هغه ټول واقعات ئې بیان کړل ـ او د امداد
عرض ئې وکړو نو ضیاء الدین ورته د صبر تلقین وکړو ـ دغه نه پس
بهرام خان حضرت ضیاء الدین سره ډیره شو ـ اشرف خان چې دې
نه خبر شو نو ضیاء الدین ته ئې پیغام را واستوۀ چې زما ورور بهرام
خان ځان نه لرې کړه ـ او ماته ئې بندی حواله کړه ـ خو
ضیاءالدین دپاره دا د مروت ،انصاف او ځوانمردۍ برعکس خبره وه
د اشرف خان دهمکی امیز پیغام نه بې پرواهی د هغۀ د غیض و

غضب او اشتعال باعث شو ـ او ضیاء الدین ئې سخت تنګ کړو ـ
اخېر کار هغۀ د ضلع کوهاټ د چونتره په علاقه بارک قوم څخه د
وسېدو اراده وکړه خو اشرف خان د خوشحال خان ورور جمیل بېګ
مېنځ کښې واسطه کړو ـ د فقیر صاحب په ډېر اسرار ضیاء الدین
فېصله وکړه چې فی الحال مستقل طور وطن نۀ پرېږدم ـ بارک زی
قوم ته ورځم او د هغه ځائے حالات ګورم ـ نو بیا به چوترې ته د
بال بچ سره لاړ شم ـ د اشرف خان په نامناسبه رویه او د ضیاء
الدین بارک زی څخه قیام په فېصله هغۀ ورته خبر راواستوۀ چې
دغه ځائے نه بل خوا مۀ ځه او کۀ ځې نو بیا قوم خرم یا قوم
ساغری ته لاړ شه ـ څو ضیاء الدین د اشرف خان ددې حکم منودو
نه انکار وکړو ـ او د څوترې د تلو اراده ئې وکړه ـ او هر کله چې د
زیړې علاقې ته ورسېدو ـ نو د اشرف خان سوارۀ د وروستو نه ور
ورسېدل ـ او د اشرف خان د حکم مطابق ئې اکوړی ته واپس
راوستو ـ او دلته ئې د مجمع البرکات د مصنف مطابق د هغۀ په
شان کښې ډېره ګستاخی وکړه ـ حضرت ضیاء الدین څو ورځې
اکوړی کښې وو ـ او اشرف خان به ورته د بوسو لوګی کول ـ او قسما
قسم مصیبتونو او عذابونو کښې ئې ګرفتار کړو ـ او اخېر کار ضیاء
الدین صاحب ته په دې ورځو کښې جام د شهادت بې ګناهی او د
حق و انصاف د حمایت په قصور کښې ورکړے شو ـ او د دنیا یو

حریص خپل سیاسی اقتدار قائم ساتلو دپاره د خپلې لارې یو ازغے لرې کړو - وائ چې ضیاء الدین اکوړی ته لاړو - نو یوولس ورځې پس ئې مور بی بی ضیاء الدین ته خبر راولېږلو چې ستاسو په جدایۍ زۀ ډېره پرېشانه یم - او زۀ ستاسو ملاقات کول غواړم - او د ملاقات ځائے د شیخ رحمکار روضه مبارک سبا دپاره مقرر شوه - د حضرت ضیاء الدین مور چې سبا ته د زویې دیدن دپاره روضهٔ مبارک ته راغله - نو په دې کښې شور و غوغا شوه - او چې بی بی صاحبې ددې شور سبب وپوښتلو - نو خلقو ورته ووئیل چې دا د ضیاء الدین جنازه ده - چې اکوړی نه ئې راوړی - هغه چې د خپل زویې اخېری ملاقات ته ورغله - او د ضیاء الدین مبارک بدن نه ئې پرده پورته کړه - او د زویې مظلوم حالت ئې ولیدو - نو ددې صدمې طاقت ئې برداشت نه کړو - او په هغه ځائے وفات شوه -

د حضرت شیخ ضیاء الدین صاحب د شهادت نه پس اشرف خان ته هم د عزت او احترام ژوند نصیب نۀ شو - د بادشاه په عتاب کښې راغلو - او په ۱۶۸۱ء \ ۱۰۹۲هـ کښې ډېر ذلت سره ونیوے شو - او دهلی او بیا ئې دکن ته بوتلو - او د بیجاپور په قلعه کښې قېد شو - دې دوران کښې هغه پوئے شو چې ماته دا بده ورځ په سبب د ظلم ضیاءالدین سره ده - هغۀ د بیجاپور په جېلخانه کښې ددې حقیقت اظهار بیا بیا کړے دے -

د کفن حاجت ئې نشته شهیــــدان دی
چې په تېغ د هجر مړۀ دی زۀ ګواه یم

زۀ په بند د اورنګ نۀ یم چې به خلاص شم
زۀ بنــــد کــړے شېخ رحمکار زیړی بابا یم

وائ چې هغه په ۱۶۹۴ء \ ۱۱۰۶ھ کښې په هندوستان کښې مړ شو ددۀ لاش ئې هغه ځائے نه راوړو ـ او دفن ئې کړو ـ خو د لنډی سیند اوبۀ ور وختې ـ او لاش ددۀ یې زمکې نه بهر کړو ـ او اوبو یوړو ـ او نشان هم ددۀ په زمکه پاتې نۀ شو ـ او د هغه وخت نه تر اوسه د اشرف خان ددې عمل بد تر په ارتکاب باندې ملامت وئیلے شی ـ او بیا په هره زمانه ددۀ اولاد ددې تور داغ د وینځلو دپاره وائ ـ چې حضرت شېخ ضیاء الدین چا شهید کړے نۀ دے ـ بلکې هغه خپله په بیمارۍ سره یا د ځینې په قول د مار چیچلو نه وفات بیا موندلے دے ـ خو د ډېرو صفائیو تر نن ورځ دا داغ ونۀ وینځلے شو ـ او دا ثابته ده چې هغه د یو باقاعده سازش تحت شهید شۀ ـ دا هم یو روایت دے چې اشرف خان په دې موقعه د شهید بابا د مرګ درې لکه روپۍ د پېښور حکامو ته ورکړې وې ـ او دا هم وائ چې د ګرفتارۍ او شهادت د شهید بابا په وخت حضرت جمیل بېګ په ضیافت دشېخ سعدی لاړو ـ موجود نۀ وو ـ

د میان مبین صاحب د کتاب مطابق :-

" ددهٔ د شهادت په باب ددهٔ زویې قیاس الدین لفظ "غفو " ١٦٧٦ء ١٠٨٦هـ راوړے دے - چې د اورنګ بادشاهی وه - او د دوئ عمر دغه وخت اتهٔ شپېتهٔ کاله وو " -

تاریخ مرصع د خوشحال خان په حواله لیکی :-

" سبحان الله ، په جهان دا هسې بلا ( بهرام خان ) هم پېدا کېږی چې د فانی دنیا دپاره د مشر ورور په مرګ راضی شی - زمونږ په زړهٔ کښې وهم فکر اصلاً دا هسې نهٔ وو - بلکې ضیاءالدین چې په کور راکډ وو - زوم ، زویې مې وو - همېشه به ددهٔ غمخور وم - دے مې درست خپـل ګانهٔ - د هغهٔ به مې په څو اندېښنه وه - واړه خپل یې یو تر بـله وېـزار کـړل - د بهرام بد فرجام سره یې ودره ول[1] "

افضل خان یو بل ځائے لیکی :-

" ضیاء الدین ته مې سړے واستوهٔ - هسې مکرونه ځینې ظاهر شول چې د بنګالې ساحر دے - په شا لاړ منکر شهٔ[2] "

د خوشحال خان دا شعرونه هم د کاکاخېل میان ګانو نه د نفرت او وېزارۍ اعلان دے :-

---

[1] تاریخ مرصع ، ص ٣٠١

[2] تاریخ مرصع ، ص ٣٠٢

پسرلے چې راشي يا پشکال شي
د خټک ځيني شېخان خوشحال شي
شکراني اخلي د باران وعدې لي
په دروغژنو وعدو نهال شي

د خوشحال خان په کلام کښې اشرف خان نه د خوشنودۍ او ناراضګۍ دواړو اظهار موجود دے ـ خوشنودي ئې په دې انداز ده ـ

اشرف خان د جدايۍ په غم کښې ونښت
زۀ ددۀ غمونو له په زړۀ رنځور کړم

اشرف خان هم کار فرما دے
هم کارکن دے هم کاردان

زويې مې اشرف خان دے چې خور شوے کور پرې ټول دے
زۀ چې په بند لاړم خېلخانه مې شوه برهمه

اشرف خان دې په ځائے کښېناست
خدائے ئې تل لره کامياب

درست خلق اودۀ وو واړو خوب کاوۀ خر خر
هېڅوک خبر نۀ وو اشرف مې کړو خبر

اشرف خـــان دی راته کښلی
زۀ خـــو خوښ په خط ددۀ یم

او د ناراضګۍ اظهار ئې په دې ډول دے :-

اشرف خـــان مې لائق زویې دے
دریغه نــۀ وے پـــه خوی پړنګ[1]

اشرف خان به یو پرهر په ځان وانخلی
نـــۀ دا نـــور ددۀ د مـــوره چې زوؤلی

پـــه دا هـــومره قباحت اشرف عاق نۀ شو
چې بهرام دا هسې عاق شو څۀ حکمت دے

۱۶۸۰ء / ۱۰۹۱ھ کښې خوشحال خان د اشرف خان په هجو یوه اوږده قصیده لیکی ـ څو شعرونه یې په دې شکل دی :-

چې په واړو کښې ارشد دے
نن یادیږی اشرف خان

---

[1] منافق

د مور پلار نیکهٔ ته نهٔ دے
دا ناکس دے له بل شان

سر تر پایه وهم ویره
پخپل ځویه بدګمان

تر ځلوېښت کالونه تېر شو
باندې څرخ نهٔ شو پیکان

# بهرام خان

بهرام خان د خوشحال خان زویې او د اشرف خان هجری
ورور دے ۔ د ولادت کال یې ۱٦٤۳ء \ ۱۰۵۳ھ دے :-

تاریخش شد کهٔ بخت بابا آمد (۱۰۵۳ھ)
زین جملـه شود جیم هـزار و پنجاه

خوشحال خان چې ۱٦٦۷ء \ ۱۰۷۷ھ کښې د مغل د قېد و
بند نه خلاص شو ۔ نو هغهٔ اشرف خان خپل جانشین مقرر کړو ۔ او
د مغل منصبدار او آلهٔ کار شو ۔ خو د اشرف خان قیادت د هغهٔ بل
ورور بهرام خان تسلیم نهٔ کړو ۔ ددې وجه شاید د اشرف خان نورو
ورونړو څخه بدسلوکی ، سخت طبیعتی او تکبر وو ۔ د دواړو تر
مینځ د اقتدار رسه کشی شروع شوه ۔ او وخت تېرېدو څخه دغه
رقابت دومره زیات شو ۔ چې د مغل د حمایت او خوشنودی په
حصول هره حربه او چل دوکه یې جائز وګڼله ۔ د دواړو ورونړو
مخالفت تر هغه وخته جاری وو چې امیر خان ۱٦۸۱ء \ ۱۰۹۲ھ

کښې اشرف خان ګرفتار کړو[1] - د اشرف خان په ځائے د هغهٔ شپاړس کلن زویې سردار شو - او مغل سره یې روابط استوار کړل - اوس د بهرام خان او افضل خان تر مېنځ د منصب رقابت شروع شو عن چې ١٧١٢ء \ ١١٢۴هـ کښې بهرام خان وفات شو - او افضل خان بلا شرکت غېر د مغل د منصب وارث شو - او دغسې د خټکو د مشرۍ سیادت او قیادت مستقل طور د افضل خان اخلاف ته منتقل شو - د احمد شاه ابدالی په زمانه سعادتمند خان بخطاب سرفراز خان د لوئے مرتبې څښتن وو - او د اټک و دریائے جهلم تر مېنځ د ټولې علاقې جاګیردار وو - ګوپال داس د عباس خان بن فیروز خان بن نورالله خان بن سعادتمند خان بن سعدالله خان بن محمد افضل خان متعلق لیکی :-

,, کہ جب مہاراجہ رنجیت سنگھ والی پنجاب دریائے اٹک سے پایاب عبور کرکے نوشہرہ میں محمد عظیم خان و دوست محمد خان وغیرہ سرداران بارک زی سے مقابلہ کو آیا۔ تو عباس خان نے اپنے دلی اخلاص سے کسی محل خطر جان سے مہاراجہ موصوف کی حفاظت جان کی۔ اس لئے وہ مہاراجہ رنجیت سنگھ کے نزدیک بھی زمرۂ مخلصین سے شمار ہوکر عہدۂ خالی پر سرفراز کیا گیا۔ بلکہ واسطے تو کید بنائے دوستی مہاراجہ سے دستار بھی بدل ۔[2] ،،

---

[1] حېرانی ده چې یو اړخ د امیر خان په ذریعه د خوشحال او مغل تر مېنځ رزمه کېږی او بل پلو د هغهٔ زویې اشرف خان ګرفتاره ږی -

[2] تاریخ ضلع پشاور . ص ٣٨١

مونږ کۀ د خوشحال خان ديوان يا تاريخ مرصع وګورو ـ نو شايد چې د نيکۀ او نمسی د قلم نه داسې کنځل او سپک الفاظ پاتې شوی وی چی د بهرام خان په نصيب رسيدلی نۀ وی ـ

" په بد فرجام کښې دا څو خويونه جبلی پراتۀ وو ـ محيل ،مزور مکار مفسد ، منافق ،فضولی باوجود د حماقت دا حال ذاتی لری[۱] "

مونږ کۀ د خوشحال ټول ديوان چاڼ کړو ـ نو شايد کۀ د بهرام په تعريف مونږ ددې يو شعر نه بل ځائے چرته صفت بيا مومو

عطارد دې نور قلم لــه لاسـه کېږدی

چې په دا خوبی بهرام انشاء املا کا

د بهرام خان د کلام مجموعه ممکن ده چې يا خو افضل خان سوزولې وی ـ او يا د هغۀ په کلام يې د خوشحال خان نوم ور سور کړے وی ـ او دغسې د بهرام شاعری يې ټول عمری د ورکې په تيرو کښې ګمنام کړی وی ـ

,, بهرام خان خوشحال خان کا وہ بیٹا ہے ـ جس کی سوا تین سو سال سے متواتر کردار کشی کی جا رہی ہے ـ اس کی بنیاد یا تو تاریخ مرصع ہے ـ یا خوشحال خان کا کلام--------- اس نے بہرام خان کو جس انداز میں پیش کیا ـ بد قسمتی سے آنے والے مؤرخین اسی پر یقین کرتے ہوئے بہرام خان کے ساتھ انصاف نہ کر سکے[۲] ،،

---

۱ تاريخ مرصع ، ص ۳۰۲

۲ پشتون کون ، پريشان خټک ، ص ۴۵۱

,, افضل خان نے اپنی ذاتی اور سیاسی اغراض کے لئے خوشحال خان کی حقائق نگاری کو بھی مسخ کیا ہے۔ اور جو کچھ اپنی طرف سے لکھا ہے۔ اس میں تو بار بار حقائق سے انحراف کر کے تاریخ کا دھارا اپنی مرضی کے مطابق موڑنے کی کوشش کی ہے [1] ،،

,, اس زمانے کے حالات و واقعات کے متعلق افضل خان نے تاریخ مرصع میں جو تفصیلات لکھی ہیں۔ ان کا مرکزی نکتہ ایک ہے۔ اپنی بھلائی اور بڑائی، اور بہرام کی لڑائی جس پر یقین کر کے بہت اچھے اچھے مؤرخین دھوکا کھا گئے ہیں [2] ،،

د ګران او محترم استاد ښاغلی پریشان خټک دبیان په صداقت کښې د افضل خان د دروغ ګویی دا یو مثال به کافي وی۔

" په وخت د نزع چې فرزندان ورته ټول وو - هغوئ ته یې دا وصیت وکړو - چې کۀ مو بهرام وړاندې وروستو په لاس کښېوزی مړ یې کړئ - نیمائ یې زما سرته ،نیمائ یې زما پښو ته وسېزئ - هله به زما روح له تاسو خوشنود شی [3] "

,, افضل خان نے حسب معمول غلط بیانی سے کام لیتے ہوئے تاریخ مرصع میں لکھا ہے۔ جو بیٹے اس کے ساتھ تھے۔ ان سے مرتے دم وصیت کی۔ کہ اگر بہرام تمہارے ہاتھ آ جائے۔ تو اس کے دو ٹکڑے کر کے آدھا میرے قبر کی سر کی طرف اور آدھا پیر کی طرف گاڑ دو۔ حالانکہ سارے حالات و واقعات سے پتہ چلتا ہے کہ مرتے وقت اس کے پاس اپنے بیٹوں میں سے کوئی بھی موجود نہ تھا [4] ،،

---

۱ پشتون کون از پریشان خټک ، ص ۴۵۲

۲ ایضاً ، ص ۵۶۲

۳ تاریخ مرصع ، ص ۴۸۱ .

۴ پشتون کون ، ص ۵۷۰

۱۷۱۲ء \ ۱۱۲۴هـ کښې چې بهرام وفات شی ـ نو دتاریخ مرصع مؤلف د هغهٔ د مرګ واقعه په دې شکل بیانوی :-

" دے مړ شو ـ تابوت یې نوښاریانو راواخېستو چشمی ته یې راوړو له خپله بده خصلته یې هېڅوک په جنازه حاضر نشول ـ تاریخ یې مؤلف دا رنګ وئیلے دے ـ

چون عاق والدین مظالم زجهان برد
امروز زیر خاک به ناکام جان سپرد
تاریخ فوت او شده در فکر خود چون جستم
بهرام شادی حرام به بد حال وی بمرد

راځئ چې اوس دخوشحال خان د خپل زویې بهرام خان په مخالفت او ذم و هجو څو شعرونه وګورو :-

د خوشحال عقل خطا نهٔ وو نور څهٔ وو
چې خانی یې په بهرام کړله نامزده

راشه ګوره د بهرام د نفاق چر
ګاه سنی ګاه رافضی کړے کافر

څوک بهرام غوندې منحوس بدبخت بخیل شی
په شامت یې خېل خانه شی تار په تار

بهرام هغه خنزیر دے
چې لائق دے د تفنګ

زما توبه ده د بهرام له خېره
ددهٔ له شره امان پناه غواړم

بهرام کهٔ زویې د خوشحال خان خټک وو
هنر ئې نهٔ وو څنې خبر واخله

شُوم بهرام مې د خان غم شو
زهٔ هم غم ددهٔ د خان شوم

د بهرام له حاله څهٔ وایم و چاته
حال د خپل زویه ښکاره دے و بابا ته

بهرام ښځه ده بدرنګه
رنګا رنګ زېور پرې پورې

تا هنر د سرداری نهٔ زده بهرامه
سرداری دې په خپل دور کړه بدنامه

دا هم ځـــائے د تعجب دحېرانی دے
چې لښکرې په خوشحال کا بهرام خان

هغه زویه خــو په ګور ښۀ دے خوشحاله
چې بهرام غوندې یوازې د خپل کور وی

نۀ دا یـــو عېب زما نـــۀ ډېر هنره
چې بـــهـــرام زما پسر زۀ یې پدر یم

سکندر خان چې د خپل ورور بهرام خان مخالف او د خپل ورارۀ افضل خان مرستیال وو - په خپل کلام کښې ځائے په ځائے بهرام خان غندی :-

د پښې وار اوس پـــه سکندر راوړه فلکه
رقص دې وکړو د منحوس بهرام په کام

د بـــهـــرام خــو خانی بویه
کـــۀ ئـــې نـۀ وی څۀ وقـــار

په راتلۀ د منحوس لاړل له ختکه
برکت خېریت عـــزت دولت ارام

مشر ورور په مصلحت ددۀ په قېد دے
په هفته کـــوی پــه پلار پسې لهام

په شلمه د رمضان[1] په جانه کوږ کښې
افضل خان سره یک رنګ پـــه اهتمام

خوشحال خان د اشرف خان او بهرام خان نه علاوه د نورو زامنو په مدح او ذم هم ډېر څۀ وائ ـ دلته څو مثالونه وګورئ :-

یو مکتوب د صـــدر خان را لره بس دے
اوښکې غبرګې تویؤم چې یې جواب کښم

جدائ د صـــدر خان لکه سور اور وه
کۀ د واړو فرزندانو غم چور چور کړم

زړۀ مې حظ له صـــدر مومی
زر زر راشـــی زر زر درومی

صدر خان لا چرې جنـــګ لیدلے نۀ وو
په دا جنګ یې نېزه سره کړه په خصام

[1] ٢٠ رمضان ١٧٠٥ء / ١١١٦هـ

کۀ خـــدائے يې راته پرېږدی
ذوالفقار دے صـــدر خان

عـــابـــد خان زما شنقار دے
پـــه غـــوټه وهی دوه ښاړی

عابـــد خان په کار کامل دے
کار فـــرمـــا دے په ښۀ شان

عابد خان په دامحنت راسره مل دے
چې ګانډۀ شی پرې زمـــا د زړۀ پرهار

چې په مخ يې فتح درومی عابد خان دے
په هر ځـــائے د خپـــل بابا کا تازه نام

د خوشحال په دعا غوږ و سترګې وکړې
کۀ بهرام عـــابـــد دی دواړه کړ و کور

هغه مـــلـــک واړه ثـــمر دے
چې پکښې زمـــا سکندر دے

خالد خان نجو شاكر طاهر دا هم دی
مجاهد كامران همه شــــه برخوردار

خـــالد خان په كاروبار كښې
كـــلــــه ښهٔ كـلـــه نادان

لـــكـــه عـــابد وكړهٔ يا بد فرجام وكړهٔ
دا حال په هر چا دے كهٔ په خوشحال شته

بهرام خان دے سعادت دے هم يحیٰ دے
په خصلت كښې سره يـــو تـــر بـــل بتر

اشرف خان ميرباز دې هم غلوی خوشحاله
ورسره لا د يـــحــــیٰ غـــونـــدې دهن

څوک يحیٰ غوندې اودهٔ غافل پيدا شی
چې هيـــڅ كـــار نيولے نهٔ شی استوار

يحیٰ و كـــار تـــه زغـــلی
كـــار ويـــران كا په زمان

کۀ د چــا له لاسه ومرم ګمان مکړه
چې بهرام سدوبه روغ کا د چا څلی

څوک سدو غوندې نامرد عبدالزوجه وی
پــه تنـګسه له خپله پلاره شی وېزار

ســدو پــه کــار پوهېږی
کۀ کارکن نۀ دے پــه ځان

راشه ګوره خــلقـه نصیب په څو خوری
تورې نور ځوانان وهی منصب سدو خوری

مشــران مې لا بــلا دی
کشــران دی لا لــچــر

مصطـفٰی وتــه وګــوره
پــه بــهــرام وکړه نظر

څوک مالو غوندې جلو غوندې پېدا شی
سراسر واړه نــابــود او نــاپــکار

و عالم تـه خوشحال زوړ زويې يې ځوانان دی
د زړو بــلا پـــه سر ددې ځـــوانـــانـــو

کۀ د زويو مې لښکر دے هېڅکاره دے
له د دوئ له غمه هسې تـار په تار شوم

چې خپل پلار شړی په تورو په لښکرو
په دا هسې زويو سل ځـله لعنت دے

ده خوشحال خټک کۀ سل زويه نمسی دی
لـــه لائـق د خـــانی نـــۀ وينم پسر

# د خوشحال خان وفات

## ( ١٦٨٩ء \ ١١٠٠هـ )

---

نۀ پوهېږو چې شهزاده شاه عالم بهادر شاه او صوبیدار کابل امیر خان سره ١٦٧٧ء \ ١٠٨٨هـ کښې صلح صفایی ، وفادارۍ او انعام و اکرام حصول نه وروستو بیا داسې کومه بدګمانی پېدا شوه - چې خوشحال خان خټک کور نه بې درکه موسیٰ درې سره جوخت د حسن خېل افریدو په علاقه د ډنبرې په مقام بې اسرې وفات شو اشرف خان هجری وائ :-

یعنی نن هغه امام د ننګیالو
په ډنبره غریب لاړ ډکه یې خوا ده
مسافر شو هغه شېر د جبالونو
چې زهره ځینې اوبۀ د اورنګ شاه ده
نۀ یې زویه پرې حاضر نۀ برادر وو
ساه یې قبضه له غمونو په صحرا ده

نهٔ یې مخ د خپلو ولیدو په سترګو
نهٔ یې کړې چا په رنځ کښې دلاسه ده

شاه جهان سره بې کچه وفاداری ، مینه او د هغهٔ په شان کښې قصیدائ نغمې وې یا اورنګ زیب نه بې زاری ، د هغهٔ خلاف کرکه نفرت او هجویائ غندنې او یا د بوډا خوشحال په زړهٔ کښې شاه جهان سره ننګ پالل وو - او یا بیا د مغل په زړهٔ کښې اوس هم ویره وه چې زوړ خوشحال به لکه د ځوان خوشحال میدان ته را ودانګی او زمونږ لوئے عسکری قوت به تار تار کړی - کوم چې دغه وخت ناممکن وو - د ایمل خان او دریا خان د وفات نه وروستو پښتون قبیلوی اتحاد هم پاره پاره وو - چې بوډا خوشحال ته په داسې حالت کښې چې اول د هغهٔ زامن او بیا نمسے افضل خان د مغل نمک خوار وو - یو مرکز ته راټولول ګران وو - دا او داسې نور ډیر سوالونه د هغهٔ په مرګ سوالیه نخښې دی - چې حل یې ضروری دے -

د روښانی مسلک شاعر او د بایزید روښان نمسے مرزا خان انصاری د احداد په ۱۶۲۶ء ا ۱۰۳۵هـ کښې د شهادت په موقعه وائ :-

د روښان د کـــور ســـرور وې
د افـــغـــان د ســـر دســـتـــاره

بقـــايت د شـــهـــادت دې مبارک شه
چې دا هسې سر بازی دې کړه اختياره

دغسې اشرف خان هجری هم خپل پلار خوشحال خان په
داسې فخريه او امتيازی الفاظو نمانځی :-

رفت آں میر روہ شاہ افغان
کہ بہ خوبی امیر افغان بود

# کتابیات

---

## ( پښتو )


بریکوټی ، شېرافضل خان " دبدبهٔ خوشحال " ملت پرنټرز لاهور ۱۹۹۵ء

بهاند ، پوهنیار لطیف " د هجری منتخبات " کابل ۱۹۸۴ء

حسرت ، محمد زبېر " د خوشحال بابا تاریخ گوئ " مردان ۱۹۹۴ء

حبیبی عبدالحئ " سوات نامه " افغانستان ۱۹۷۹ء

خټک ، ډاکټر راج ولی شاه " زیست و روزگار د فقیر جمیل بېگ "
پښتو اکېډېمی پېښور ، ———

خټک ، ډاکټر راج ولی شاه " مناقبِ جمیل بېگ " پښتو اکېډېمی پېښور

خټک ، محمد عرفان " د ستر خوشحال افکار" اکوړه خټک ۱۹۹۷ء

خټک ، عبدالقادر " گلدسته "

خټک ، عبدالقادر " حدیقهٔ خټک " پېښور ۱۹۶۹ء

خټک ، معزالدین " دلیل العلیل ( قلمی نسخه )" ناچاپ ۱۸۵۴ء

خلیل ، محمد جاوېد " په صوبه سرحد کښې د مختلف ادبی ټولنو
او جرگو تنظیمونه او د هغوئ کار " پېښور ۱۹۹۴ء

خلیل ، همېش " سوات نامه " اکوړه خټک ۱۹۸۶ء

رشتین ، صدیق الله " طب نامه " کابل ۱۹٦٦ء

رشتین ، صدیق الله " دستار نامه " کابل ۱۹٦٦ء

رفیع ، حبیب الله " آواره شېدا " پېښور ۱۹۹۱ء

زیار ، مجاور احمد " فراقنامه " کابل ۱۹۸۴ء

سنګری ، محمد شېرین " توریالے پښتون " کابل ۱۹۷۱ء

عبدالقادر ، مولانا " د پښتو فلسفه " پېښور ۱۹٦۴ء

عثمان ، ډاکټر عارف " خوشحال خان خټک او ددهٔ ادبی مکتب"

کابل ۱۹۸۲ء

کاکا خېل ، بهادر شاه ظفر "پښتانهٔ د تاریخ په رڼا کښې "

یونیورسټی بک ایجنسی پېښور ، ۱۹٦۵ء

کامل ، دوست محمد خان " دیوان سکندر خان خټک " ادارهٔ

اشاعت سرحد پشاور ۱۹۵۳ء

کامل ، دوست محمد خان " تاریخ مرصع " یونیورسټی بک

ایجنسی پېښور ۱۹۷۴ء

کامل ، دوست محمد خان " کلیات خوشحال خان خټک "

پېښور ۱۹۵۲ء

متین ، عبدالمتین " د کامګار خټک دیوان " کابل ۱۹۷۹ء

معتمد ، محمد اکبر "ننګیالے پښتون " کابل ۱۹٦٦ء

# اردو


حسین، ڈاکٹر محمد بشیر ,, تاریخ خان جہانی ومخزن افغان،، اردو سائنس بورڈ لاہور ۱۹۷۶

خان، روشن ,, تاریخ حافظ رحمت خانی،، پشاور ۱۹۷۶ء

خان، صمصام الدولہ شاہنواز ,, مآثر الامراء جلد اول تا سوم،، ترجمہ مرکزی اردو بورڈ لاہور ۱۹۷۴ء

خان، محمد حیات ,, حیات افغانی،، ۱۸۶۱ء

خلیل، محمد حسن ,, تاریخ نامہ،، پشاور ۲۰۰۴ء

خٹک، پریشان ,,پشتون کون،، پشاور ۱۹۸۳ء

داس، گوپال ,, تاریخ ضلع پشاور،، ۱۸۷۰ء

کاکا خیل، بہادر شاہ ظفر ,, شیخ رحمکار،، پشاور ۱۹۸۶ء

کامل، دوست محمد خان ,,خوشحال خان خٹک،، ادارۂ اشاعت سرحد پشاور ۱۹۵۱ء

کنبوه محمد صالح ,,شاہ جہان نامہ (عمل صالح) جلد اول تا سوم،، ترجمہ مرکزی اردو بورڈ لاہور ۱۹۷۰ء

کیرو، سر اولف ,,پٹھان،، ترجمہ سید محبوب علی پشتو اکیڈیمی پشاور ۲۰۰۰ء

گنڈاپور، سردار شیر محمد خان ,,تاریخ پشتون،، ترجمہ سراج احمد علوی، کراچی ۱۹۸۶ء

مہر، غلام رسول ,, طبقات ناصری،، مرکزی اردو بورڈ لاہور ۱۹۷۵ء


# فارسی


خان، محمد بختاور ,, مراۃ العالم تاریخ اورنگزیب،، لاهور ۱۹۷۹ء

خان، شیخ ابوالفتح قابل ,, اداب عالمگیری جلد اول تا دوم،،
مرکزی اردو بورڈ لاهور ۱۹۷۴ء

درویزه، اخون ,, تذکرة الابرار و الاشرار،، پهبنور ۱۹۲۸ء

لاهوری، ملا عبدالحمید ,, بادشاه نامه،، کلکته ۱۸۲۸ء

# انگریزی

Al- Biruni The "Chronology of Ancient Nations,, Sachau.C.E Franfurt 1967
Government Punjab " Gazetteer Peshawar District,, Lahore 1897- 98
Ibbetson, Sir Denzil " A Glossory of The Tribes of The Punjab and N.W.F.P
Khattak, Ghani Khan "Khushal Khan,, IslamAbad 2002 Lahore 1978
Kapoor, Gurbaksh Sing "History of India,, Delhi 1960
Mahajan, V.D "The Sultanate of Delhi,, Delhi 1988
Mahajan, V.D "Moghul Rule in India,, Lahore
Mahmud, S.Fayyaz "A Short History of Islam,, Karachi 1960
Rahim, Abdul "The History of Afghans in India,,
Rashid, Sh.A "A Short History of Pakistan,,
Sarkar, Jadunath " History of Aurangzeb,, vol vii Calcutta 1912
Zafer Hussain Chaudhri "Manual of Pre- emption Law Lahore 1997.

# د لیکوال نور چاپ کتابونه

١. عبدالحمید بابا ( ژوند او شاعری )

٢. رومانویت او عبدالحمید بابا

٣. ګوری اسپی ( د باړه مومند تاریخ جلد اول )

۴. د باړه مومند تاریخ ( جلد دوم )

۵. د باړه مومند تاریخ ( جلد سوم )

٦. پنجاب او پښتانهٔ

٧. د عبدالرحمٰن بابا او مجنون د مینې داستان

٨. هندکی او هندکو

٩. زاړهٔ یادونه ( شاعری )

# Khushaliat

# Au

# Haqa-eq

(Inteqadi Jaj)

By

**KHAWAJA MUHAMMAD SAYEL**
Deh-Bahadur Peshawar